# کشف الباری

## عمافی

## صحیح البخاری

**تالیف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان شیخ الحدیث

جامعه فاروقیه کراچئ

# کتاب الحیض

**خصوصیات**

**جلد ⑱**

- ← داحادیثو تخریج
- ← د تعلیقات بخاری تخریج
- ← داسماء الرجال مختصر تعارف
- ← د گرانو لغاتو لغوی صرفی اونحوی حل
- ← ماقبل باب سره د ربط پوره تحقیق
- ← دشرحی دهرې خبرې لاندې په حاشیه کښې حواله
- ← د ترجمة الباب مقصد بیانولو کښې پوره تحقیق
- ← د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان اوبیا د مذهب حنفی ترجیح
- ← د بخاری د احادیثو اطراف خودل

**خورونکی:** ← فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

شارح:- صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان

شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچۍ

د ملاويدو پتې: د فيصل کتب خانه پېښور څخه علاوه

- رحیمی کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۱۶۱۳۱۳
- اسلامی کتب خانه خوست--
- دیوبند کتب خانه خوست-- ۰۷۹۹۸۸۶۶۸۰
- روغانیول کتب خانه جلال آباد
- دعوت کتب خانه جلال آباد-- ۰۷۷۶۰۹۷۹۶۵
- رشیدیه جدید کتب خانه کابل
- انتشارات نعمانیه کابل
- انتشارات علامه تفتازانی کابل-- ۰۷۷۷۴۹۰۵۰۰
- قدرت کتب خانه کابل--
- واحدی کتب خانه خوست
- صداقت کتب خانه کابل-- ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷
- مکتبة القرآن والسنة کابل
- مکتبه صدیقیه غزنی
- مکتبه فریدیه خوست
- مسلم کتب خانه جلال اباد-- ۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶
- غزنوی کتب خانه غزنی -- ۰۷۴۸۵۷۵۱۹۹

خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنگی پېښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵........۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

بسم الله الرحمن الرحيم

## مقدمه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رب العالمين، على ما أنعم ويسر، فهو ولى كل خير، إليه يرجع كل فضل، وهو الذى بنعمته تتم الصالحات، وبتيسيره يصل العبد الضعيف إلى الفضائل والمكرمات، والصلوات الناميات الزاكيات، والتسليمات المباركات على سيدنا ومولانا محمد سيد السادات، صاحب المعجزات الباهرات، والكلمات العاليات، الدرجات الرفيعات.

وصلى الله وسلم وبارك عليه وعلى آله وأصحابه واتباعه إلى يوم الدين، وحشرنا ووالدينا ومشائخنا وذريتنا وكل من له حق علينا تحت لواء الحمد، يوم لا ينفع مال ولا بنون إلا من أتى الله بقلب سليم.

وبعد:

الله تعالى چې کوم برزګان دخپل دين د خدمت دپاره منتخب کړی دی په هغوی کښې يو شخصيت شيخ الحديث استاذ العلماء حضرت مولانا سليم الله خان صاحب دامت برکاتهم هم دې.دحضرت شيخ الحديث سليم الله خان دامت برکاتهم دينی خدمات د چا څخه پټ پناه نه دی.په دې خدماتو کښې يو خدمت د علم حديث سره تعلق ساتی.کوم چې يو طرف ته د تدريس په صورت کښې د شپې او ورځې خوريږی.او بل طرف ته د تاليف او تصنيف په صورت کښې هم جاری او ساری دې.هم د دې سلسلې په زنزير کښې يوه کړئ د صحيح البخاری يوه عظيم الشانه شرح ،،کشف البارى عما فى صحيح البخارى ،،هم ده. د کومې چې تراوسه پورې چاپ شوو پنځلو جلدونو کښې د صحيح البخاری د دويم جلد شرح کافی حده پورې شوې ده او د اولنی جلد د څه حصې شرح منظر عام ته راغلې ده.

د تخصص فى الفقه د فراغت څخه پس احقر ته هم د حضرت شيخ الحديث دامت برکاتهم په تقرير باندې د کارکولو موقع ملاؤ شوه.په دې سلسله کښې احقر ته د کتاب الحيض د تحقيق او مراجعت کار حواله کړې شوې وو.اګرچه د خپلې کم علمئ او د تاليف او تصنيف سره د کم مناسبت په وجه دې عظيم خدمت ته تياريدل يوه مشکله مرحله (ګړئ) وه.خو هرکله چې عزتمندو استاذانو خاص کر قدرمند او مشفق او مربی حضرت مولانا محمد يوسف افشانی صاحب زيد مجده راته داد ګيرنه راکړه نو احقر د الله تعالى په ذات باندې بهروسه اوکړه او دې خدمت ته په ذهن او زړه سره تيار شو.

نو د حضرت شيخ الحديث صاحب دامت برکاتهم په حکم سره د حضرت الاستاذ مولانا نور البشر صاحب دامت فيوضهم په سرپرستئ کښې مې کارشروع کړه.اولګ بګ درې کاله د شپې او

ورځې محنت،اود تحقيق اوترتيب اومراجعت دمختلفومراحلوڅخه تيريدوڅخه پس نن د الله تعالى په فضل سره داكارچهاپ شواومنظرعام ته راغلو.

كتاب الحيض ټول په ديرشويابونو باندې مشتمل دې.په دې ديرشويابونوكښې ټول۴۷ احاديث دى.په دې ۴۷ احاديثوكښې ۳۴ احاديث مرفوع دى اوباقى ديارلس (۱۳) تعليقات دى.دغه شان په كتاب الحيض كښې د حضرات صحابه كراموا وتابعينو ۱۵ آثار هم مروى دى.

الحمد لله د ټولوبابوپه شرح كښې د هغه خبروخيال ساتلې شوې دې د كوم اهتمام چې په مخكنو جلدونوكښې شوې وو.لكه دهرباب دسابقه باب سره مناسبت، د ترجمة الباب مقصد ،دهريوحديث اوهريوتعليق د ترجمة الباب سره مناسبت، درجال حديث تراجم اوتعليق، دلغاتوحل، اود عربى عباراتونوترجمه اومفهوم وغيره.

حضرت شيخ الحديث دامت بركاتهم د بوډاتوب،اود زياتو مصروفياتواوسختې كمزورۍ باوجود وخت په وخت كاركتلې دې.د قابل اصلاح ځايونوښودنه ئې راته كړې ده.اوپه كومو كومو ځايونوكښې چې د تصحيح ضرورت وو نودهغې طرف ته ئې راته لارخودله ده.اوبيا دحكم مطابق د هغه كارونو تصحيح ئې هم كړې ده.

دحيض ،نفاس اواستحاضه مسائل پيژندل ډيرزيات ضرورى دى.ځكه چې دروښانه شريعت ډير بنيادى احكام لكه طهارت، مونځ،د كلام پاک تلاوت روژې ،اعتكاف،حج ،طواف اوعدت وغيره ،داټول احكام دحيض،نفاس اواستحاضه په مسائلو باندې موقوف دى. هم د دې وجې علامه شامى رحمه الله فرمائى چې د حيض ،نفاس او استحاضه مسائل زده كول ډير اهم او ضرورى او د اهمو واجباتو څنى دى.او د دې علت دا دې چې د يو څيز د پيژندلو اهميت او ضرورى كيدل د هغې څيز دنقصان نه پيژندلو په وجه وى او دا معلومه ده چې د حيض ،نفاس او استحاضه مسائلو نه پيژندلو نقصان اوضرر د نورو مسائلو نه پيژندلو د نقصان په نسبت ډير زيات دې.د دې وجې د دې مسئلو پيژندل د نورو مسئلود پيژندلو څخه زيات ضرورى دى.[] حاشيه ابن عابدين (۴۷۴\۱)-

نود حيض ،نفاس او استحاضه د مسئلو د ضرورت او اهميت په وجه د دې مسائلو په آسان اوسهل انداز كښې د بيش كولو اهتمام كړې شوې دې.اوخاص كر د استحاضه د بعضې گرانو مسئلو چې څومره كيدې شوه د هغې د حل كولو كوشش شوې دې.

د كار پوره بروف ريډنگ (تصحيح) احقر په خپله كړې دې.او د كار كولو په دوران كښې چې په كوم مشكلات پيښيدل نو د هغې د حل دپاره راته د حضرت مولانا نور البشرصاحب دامت بركاتهم څخه علاوه د استاذ محترم حضرت مولانا عزيز الرحمن صاحب دامت بركاتهم او خاص

کړ د استاذ محترم حضرت مولانا حبیب الله زکریا صاحب دامت برکاتهم او د تصنیف او تالیف د شعبه د نورو ملګرو مدد او تعاون حاصل وو. استاذ الحدیث ناظم اعلی جامعه فاروقیه حضرت مولانا عبیدالله صاحب زید مجدهم کوم چې د شعبه تالیف وتصنیف مسؤل دې راسره د تصنیف ،تالیف تحقیق او مراجعت په دې محنت طلب او نازک کار کښې پوره تعاون کړې دې او په دې کښې چې د څومره وسائلو او اسبابو ضرورت پیښ شوې دې هغه ټې راته راکړی دی او وخت په وخت ټې قیمتی مشورې هم راکړی دی په دې باندې احقر د هغوی د زړه د کونی (بیخ) څخه ډیر زیات مشکور او ممنون دې. الله تعالی دې دې ټولو حضراتو ته ډیرې ښې بدلې ورکړی.

په آخر کښې د احقر د ټولو څخه اولنې خواست د اهل علم حضراتو څخه دا دې چې دا یو خاص قسم علمی کار دې د کوم د پاره چې په څو قسمه علومو کښې مهارت پکار دې. خو زه د دې صلاحیتونو څخه خالی یم د دې وجې کیدې شی چې د کار په ترتیب او تحقیق کښې د لاعلمئ په وجه څه خبرې پاتې شوی وی د دې وجې د عالمانو په خدمت کښې ډیر په ادب او احترام سره خواست دې چې هغوی دې راته دغه په ګوته کړی انشاء الله زه د خپلو غلطو په اصلاح باندې خوشحالیږم. او مونږ به د دغه حضراتو ډیر شکر ګذار یو.

دویم خواست د خاصو او عوامو څخه دا دې چې د حضرت شیخ الحدیث دامت برکاتهم العالیه د پاره خصوصی دعاګانې کوئ چې الله تعالی دوی ته د صحت او عافیت سره اوږد عمر ورکړی .حضرت شیخ الحدیث حفظهم الله تعالی ورعاه د ژوند هر یو باب زمونږ د پاره د خپلولو او د تابعدارئ کولو نمونه ده. الله تعالی دې حضرت ته د ټولو ذمه واریانو څخه په ښه طریقه د فارغیدو توفیق ورکړی

دعا ده چې الله تعالی دا کار د احقر مرتب د پاره او د ده د استاذانو د پاره او د ده د مور پلار او متعلقینو د پاره او په دې کښې چې چا هر قسم مدد کړی وی د هغوی د پاره او د ټولو دوستانو د پاره د آخرت ذخیره او ګرځوی. آمین.

مبارک علی بن محمد ریاض

د جامعه فاروقیه کراچئ د تالیف او تصنیف د شعبه استاذ او ملګری

۱۲ ربیع الثانی ۱۴۳۵ هجری مطابق ۲۲ فروری ۲۰

او زه احقر مترجم شاه فیصل بن نبی ګل ترې نن د خیالی په ورځ ۱۰ ذی القعده ۱۴۳۷ هجری موافق ۱۳ اګست ۲۰۱۶ عیسوی فارغ شوم.

| عنوانات | صفحه نمبر |
| --- | --- |

عنوانات | صفحه نمبر

عنوانات — صفحه نمبر

عنوانات | صفحه نمبر

عنوانات | صفحه نمبر

عنوانات | صفحه نمبر

عنوانات | صفحه نمبر

| عنوانات | صفحه نمبر |
| --- | --- |

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

عنوانات | صفحه نمبر

عنوانات | صفحه نمبر

صفحه نمبر

عنوانات

| عنوانات | صفحه نمبر |
| --- | --- |

| عنوانات | صفحه نمبر |
| --- | --- |

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

عنوانات صفحه نمبر

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

عنوانات | صفحه نمبر

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|
|  |

عنوانات — صفحه نمبر

| عنوانات | صفحه نمبر |
| --- | --- |

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

عنوانات | صفحه نمبر

عنوانات | صفحه نمبر

# فهرست اسماء الرجال المترجم لهم

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كِتَابُ الْحَيْضِ

**ماقبل سره ربط:** امام بخاری رحمه الله د کتاب الغسل نه پس د کتاب الحیض ذکر فرمائی. چونکه دغسل جنابت تعلق د سړی اوښځې دواړو سره دې په دې وجه نې د غسل احکام اول ذکر کړل اوحیض د ښځو سره خاص دې په دې وجه دغسل نه پس اوس د حیض احکام ذکر کولې شی. [1]

په ښځو راتلونکې وینه درې قسمه وی.[2] ① حیض ② استحاضه ③ نفاس.

**د لفظ حیض لغوی تحقیق:** د حیض لغوی معنی سیلان یعنی بهیدل ده. چنانچه "حاض السیل وفاض" او "حاض الوادي" هغه وئیلی شی کله چه اوبه په وادئی کښې اوبهیږی او "حاضت السمرة تحیض حیضاً" هم هغه وخت وئیلی شی کله چه د کیکرد ونې نه سرې اوبه راوځی. دغه شان "حاضت المرأة تحیض حیضاً ومحاضاً وحیضاً" هله وئیلی شی کله چه ښځې باندې د وینو راتلو په وختونو کښې وینه راشی.[3]

امام زهری رحمه الله فرمائی چه حوض ته حوض هم ځکه وائی چه دهغې طرف ته اوبه رابهیږی.[4]

او د یوقول مطابق د حیض لغوی معنی "الدم الخارج" ده. چنانچه "حاضت الأرنب" هغه وخت وئیلی شی کله چه خرګوش یعنی سوې باندې وینه راشی.[5] لیکن په دې دواړو اقوالوکښې تضاد نشته دې ځکه چه حیض دم خارج هم دې او په دې کښې صفت د سیلان یعنی د بهیدو صفت هم دې. حاض، حاص، جاض اوحاد ټول هم د حیض په معنی کښې استعمالیږی.[6]

**قوله: الحیض** بالفتح مصدرِ مره دې کوم ته چه مصدرِعدد هم وائی چه دهریوکار عدد بیانوی او دا فعل ثلاثی مجرد نه "فَعْلَةٌ" په فتح د فاء او سکون د عین په وزن باندې راځی لکه وقفت، وقفة ووقفتین ووقفات چه زه یوځل دوه ځل یا درې ځل نه زیات حصارشوم [7] لهذا د حیضة معنی هم "المرة الواحدة" ده یعنی د یوځل وینه.[8]

---

[1] فضل الباری: ۲/ ۴۲۴.

[2] الکنایة علی هامش فتح القدیر: ۱/ ۱۴۲.

[3] عمدة القاری: ۳/ ۳۷۷معارف السنن: ۱/ ۴۶۹معجم الصحاح: ۲۷۸-۲۷۷.

[4] لسان العرب: ۳/ ۴۱۹.

[5] عمدة القاری:۳/ ۳۷۷.

[6] عمدة القاری: ۳/ ۳۷۷لسان العرب: ۳/ ۴۱۹معارف السنن: ۱/ ۴۶۹.

[7] المغرب فی ترتیب المعرب: ۱/ ۲۳۷شرح ابن عقیل: ۳/ ۱۳۲.

[8] معجم الصحاح ص: ۲۷۷مختار الصحاح ص:۹۳.

**قوله: الحِيضة** په كسره سره، د حيض ويني ته هم وائی او د حيض چيړې ته هم يعنی كرسف ته وائی.
چنانچه په حديث كښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها به د تواضع په توګه فرمائيل:
«ليتنی كنت حِيضة ملقاة»
**ترجمه**: افسوس چه زه غورزيدونكې كپړه وې. ددې جمع الحِيض په كسره دحاء او فتح د ياء راځی.
**قوله: المَحِيْضَة**، په كسره دميم اوسكون د حاء، ددې معنی هم دحيض چيړې يعنی د كرسف دی ددې جمع محايض راځی.
**په لفظ د حائض سره متعلق د علماء نحو اختلاف**: لفظ حائض بغيرد تاء فصيح لغت دې او علامه جوهری رحمه الله د امام فراء رحمه الله نه حائضة په تاء سره هم نقل كړې دی.(۱) د نحو دعلماؤ ددې لفظ باره كښې كافی اختلاف دې. چنانچه امام خليل رحمه الله فرمائی چه كله بالفعل وينه نه راځی نو داسې ښځې ته به حائض ونيلی شی اودا لفظ بالفعل د حيض وينه نه موجود كيدو د وجې نه حائضې «بمنزلة المنسوب إلى الحيض» يعنی: د حيض والا په معنی كښې دی. لكه لفظ ذارع «زغره اغوستونكې» نابل «غشې ويشتونكې» تامر «د كهجورو والا» لابن «ديرو پينووالا» طالق «طلاق شوې ښځه» طامث «د حيض والا ښځه» او قاعد «آئسه ښځه» وغيره هم دغه شان مستعمل دی. لهذا ددې قول مطابق «امرأة حائضة» به هغه وخت ونيلی شی كله چه په ښځه بالفعل وينه راځی. يعنی د قول تعبيرد فرق سره دامام زمخشر رحمه الله نه هم نقل دی. چنانچه هغوی هم لفظ حائض استعمال د غير حالت حيض دپاره خودلې دې او حائضة په تاء سره استعمال بالفعل په حيض كښې اخته ښځې دپاره خودلې دې.
**يواشكال اودهغې جواب**: په دې وجه امام زمخشری رحمه الله ددې اشكال په جواب كښې په قرآن پاك كښې لفظ «مرضعة» په تاء سره ولې استعمال شو؟ فرمائی چه مرضعة هغه ښځې ته وائی چه بالفعل پيئی وركوی او په آيت مبارك كښې هم دغه معنی مراد ده خو مرضع د پيئووركونكې ښځه «چه بالفعل پيئی نه وركوی» ته وائی.
امام سيبويه رحمه الله فرمائی چه دا لفظ دمذكرصفت دې اوهغه مذكر لفظ شئ، يا لفظ انسان، يا لفظ سړې وی يعنی شيئ حائض، أوإنسان حائض أو شخص حائض، لهذا ددې قول مطابق «امرأة حائض» ونيل به صحيح نه وی اود كوفيانو مذهب دادې چه دا لفظ دعلامت دتانيث نه مستغنی دې ځكه چه دا صرف هم دمؤنث صفت واقع كيږی.«لهذا د دې قول مطابق «امرأة حائضة» ونيل به صحيح نه وی»ليكن دكوفيين په مذهب باندې نقض وارد كيږی اوهغه نقض دادې چه لفظ بَازِل «تجربه كار» او لفظ ضامر «نرې اوماندده بدن والا» هم د حائض په وزن باندې دې مګر دا الفاظ مؤنث سره خاص نه دی بلكه د مذكر اومؤنث دواړو دپاره استعماليدې شی.چنانچه «حمل بازل» هم ونيلې شی او «ناقة بازل» هم ونيلی شی. دغه شان حمل ضامر هم ونيلی شی اوناقة ضامر هم ونيلی شی.(۲)

---

۱) معجم الصحاح ص: ۲۷۷مختارالصحاح ص:۹۳معارف السنن: ۱/ ٤٦٩.
۲) عمدة القاری: ۳۷۷، ۳/ ۳۸٤.

د حائض جمع حُيَّض او حَوَائِض راځي [1] په ښځو کښې بجو بناپېرك او سوې باندې هم وينه راځي اود يو قول مطابق سپنې اوښه او چمچور کښې باندې هم وينه راځي. [2]
د حيض وينې ته د حيض نه علاوه هم په نورو لسو نومونو سره تعبير کولې شي چنانچه حيض ته (الطَّمث، العِراك، الضِحك، القَرء، الإكبار، الإعصار، الفِراك، الدراس، الطَّمس او النفاس هم وائي. د حيض سره دا ټول يولس نومونه شو په دې کښې مشهور رومبنی شپږ دي. [3]

**دحيض شرعي تعريف:** د حيض تعريف د شريعت په اصطلاح کښې دادې: ((دم صادر من رحم خارج من فرج داخل ولو حكماً بدون ولادة)) [4] يعنې حيض هغه وينه ده چه بغير د ولادت ولد رحم نه شروع شي اود فرج داخل نه بهر راشي که حقيقتاً وي اوکه حكماً.

**په تعريف کښې ذکرشوو قيودو اوفصولو فائدې:** په مذکوره تعريف کښې د رحم نه مراد وعاء الولد يعنې بچه دانئ ده. ددې قيد فائده داده چه په دې سره استحاضه، نکسير، ددبرنه وتونکي وينه د زخم نه بهيدونکې وينه اود ولادت نه وړاندې راتلونکې وينه ټول خارج کيږي. ځکه چه د استحاضه وينه د رحم نه نه خارج کيږي بلکه د عازل نومې رګ نه خارج کيږي. [5] دا رګ رحم سره نيزدې پورته طرف ته واقع کيږي. [6]
ولادت نه وړاندې راتلونکې وينه اود مشهورقول موافق په صغيره باندې راتلونکې وينه هم استحاضه ده په دې وجه دا دواړه هم د رحم د قيد نه خارج کيږي. (د صغيره په حکم کښې اختلافي اقوال او تطبيق به د راتلونکی عنوان لاندې ذکر کولې شي). او چونکه د رحم نه هم د ښځې رحم مرا دې په کوم باندې چه مقام بحث پخپله قرينه ده په دې وجه خناورو او خنثی مشکل باندې راتلونکې وينه هم ددې نه خارج ده.

**قوله: خارج من فرج داخل:** په قيدسره دامام محمد رحمه الله غير مفتی به قول نه احتراز کول مطلوب دی ځکه چه هغوی فرمائي چه د حيض حکم صرف د نزول دم په احساس کيدو سره ثابتيږي خروج دم ضروري نه دې. (ددې اختلاف نور تفصيل عنوان "د حيض حکم به کله ثابتيږي" لاندې راځي).

په تعريف کښې د "لوحكماً" قيد اضافه کولوسره طهر مخلل او خالص سپينوالي نه علاوه ټول رنګونه داخل کول مقصود دې چه هلته سره ددې چه په حقيقت کښې وينه نه وي خو داهم د دم يعنې وينې په حکم کښې دی. مثلاً دوه ورځې وينه راغله بيا څلور ورځې طهر پاتې شو بيا دوه ورځې وينه راغله نودا به ټول اته ورځې حيض شي او په مينځ کښې چه کوم د څلورو ورځو طهر دې دا د پنځلس ورځونه دکم کيدو وجې نه په حکم د دم متوالي دې.

---

[1] مجمع بحار الأنوار: ٦١٥/٢ معجمع الصحاح ص: ٢٧٧ مختار الصاح ص: ٩٣.
[2] مجمع بحار الأنوار: ٦١٦/٢ إرشاد الساري: ٥٣٣/١.
[3] معارف السنن: ٤٦٩/١.
[4] رسائل ابن عابدين، الرسالة الرابعة: منهل الواردين من بحار الفيض على ذخير المتأهلين في مسائل الحيض: ٧٤/١-٧٣.
[5] رسائل ابن عابدين، الرسالة الرابعة: ٧٣/١.
[6] الكنز المتواري: ٢٤٥/٣.

د بدون ولادة قيدسره د نفاس نه احتراز دې ځکه چه نفاس د ولادت نه پس وي. په مذكوره تعريف كښې د إياس د قيد اضافه نه ده كړې شوې ځكه چه د آئسه متعلق مختار قول هم دغه دې كه هغه د نصاب حيض په اندازه توره يا خالص سره وينه ښكاري نودغه حيض دې لهذا په داسې صورت كښې دغه په تعريف كښې داخل دې اوكه چرې دتورې يا خالص سرې وينې رنګ اونه وينې نودغه استحاضه ده اواستحاضه درحم د قيد نه خارج ده[1] په دې وجه د دغه قيد داضافه ضرورت نشته دې.

**په صغيره باندې د راتلونكې وينې حكم:** د متقدمينو اومتاخرين په مينځ كښې په دې امر كښې اختلاف دې چه صغيره باندې راتلونكې وينه استحاضه ده يا څه بل څه دی؟ نو په دې سلسله كښې متقدمين حضرات فرمائي چه دا استحاضه ده خو بعض متاخرين فرمائي چه دا استحاضه نه ده بلكه د درېوارو قسمونونه جدا يوڅلورم قسم دې كوم ته چه د دم ضائع نوم ووركړې شوې دې. دا حضرات د استحاضه نه ګرځولو يوه دا وجه بيانوی كه چرې دا د ا ستحاضه وينه وه نو په دې باندې به د استحاضه احكام لكه مونځ اودس او روژه وغيره ټول احكام جاري كيدل ليكن په صغيره باندې د دغه وينې د وجې نه د استحاضه احكام نه جاري كيږي. او دويمه وجه دا بيانوی كه چرې استحاضه دم حيض سره يوځائي شي نودا فاسد كوی خو په صغيره باندې راتلونكې وينه كه چرې دم حيض سره ملاؤ شي نوددې دپاره مفسد نه ده.

ددې اختلاف لرې كولودپاره صاحب د كفايه امام نجم الدين زاهدی رحمه الله په حواله سره نقل كوی چه دا صرف يو ظاهری اختلاف دې ځكه چه متقدمينو د استحاضه دوه قسمونه بيان كړې دی. مفسد اوغير مفسد اوهم ددغه غير مفسد دقبيل نه په صغيره باندې راتلونكې وينه هم ده.[2] په دې تقرير سره په ذكر شوې مسئله كښې چه كوم ظاهری تعارض دې هغه ختميږي. واضحه دې وی چه د حيض ذكركړې شوی تعريف بنيادحيض "من قبيل الأنجاس" ګرځولو باندې دې اوكه چرې حيض "من قبيل الأحداث" اوګرځولې شی نوددې تعريف به داسې شی ((صفة شرعية مانعة عما اشترط له الطهارة، كالصلاة ومس المصحف وعن الصوم ودخول المسجد والقربان بسبب الدم المذكور)) يعنې حيض د خروج دم د وجې نه لاحق كيدونكې د شريعت يو داسې صفت دې چه مونځ مصحف ته لاس لګول جمات ته داخليدل اود جماع (وغيره) نه منع كوی.

**د حيض د دواړو تعريفونود اختلاف ثمره:** علامه رافعی رحمه الله فرمائي چه ددې اختلاف ثمره به د أيمان په باب كښې ښكاره كيږي. د مثلاپه توګه كه خاوند دانقطاع دم حيض نه پس قسم اوخوری چه ((إن كنت حائضاً فعبدي حرٌ)) نود دويم تعريف په اعتبارسره به غلام آزاد شی اود اول تعريف په اعتبارسره به آزاد نه شی.[3]

د دې مثال د وصف جنابت په شان دې لكه چه جنابت د منی په خروج او د التقاء ختانين د وجې نه لاحقكيږي او روژه مونځ او مصحف ته لاس لګول وغيره نه منع كوی. هم دغه شان حيض هم دې چه دخروج دم د وجې نه لاحق كيږي او روژه مونځ اومصحف ته لاس لګول وغيره نه منع كوی.[4]

---

[1]) رسائل ابن عابدين، الرسالة الرابعة: ۱/۷٤-۷۳.

[2]) الكفاية على فتح القدير: ۱/۱٤۲.

[3]) تقريرات رافعي: ۲/۲٤۵.

[4]) ردالمحتار على الدرالمختار: ۲/۲٤۵.

**د اياس معنى:** «إن الإياس مأخوذ من اليأس وهو القنوط ضد الرجاء. قال المطرزي: أصله إيئاس على وزن إفعال من أيأسه: إذا جعله يائساً منقطع الرجاء، فكأن الشرع جعلها منقطعة الرجاء عن رؤية الدم. حذفت الهمزة التي هي عين الكلمة تخفيفاً» [1] يعنى إياس د يأس نه ماخوذ دې دکوم معنى چه دنااميدنى ده اونااميدى د اميد ضددې. مطرزى فرمائى چه ددې لفظ اصل إيئاس دې چه د إفعال په وزن باندې دې او أيأسه هغه وخت ونيلى شى کله چه څوك نااميده او مايوس کړې شى نولکه چه ‹آئسه› ته آئسه هم ددې وجې نه وائى چه، شريعت د دم حيض د رؤيت نه نااميده کړې ده. عين کلمه چه همزه دې دا تحقيقاً حذف کړې شو نود إيئاس نه إياس جوړ شو.

**ښځه د ائسه په حکم کښې کله داخليږي؟:** د امام اعظم رحمه الله نه په دې سلسله کښې څه تحديد نقل نه دې. د امام اعظم رحمه الله په نيز اياس هم دغه دې چه که چرې مبتلى به ښځه دعمر هغه حصې ته اورسى په کوم کښې چه ددې په شان په ښځوباندې حيض راتلل بنديږي. نو په داسې صورت کښې به په دې باندې د اياس احکام جارى کيږى يعنى په عدت وغيره کښې به د مياشتو اعتبارکيږى. خو نورو فقهاؤ د اياس د مودې پنځه پنځوس کالوسره تحديد کړې دې او زمونږ په زمانه کښې فتوىٰ هم په دې باندې ده. لهذا د دغه مذکوره مودې نه پس که چرې يوه ښځه وينه اووينى نوهغه به د حيض وينه نه شميرلې کيږى په دې شرط سره چه هغه توره يا خالص سره نه وى.

بل که چرې د اياس د ثبوت نه پس يوې ښځې د مياشتو په اعتبارسره عدت تيرکړې وى. دې نه پس هغې بل ځائى کښې نکاح هم کړې وى اوبيا وينه راتلل شروع شى يا حمل ئى اوشى نو آيا په داسې صورت کښې به نکاح فاسد ګرځولې شى او د نوى سر نه به په اعتبار دحيض عدت تيره وى يابيا به نکاح صحيح ګرځولې شى. اود مستقبل په حواله سره په اعتبارد حيض دعدت تيرولوحکم ورکولې شى؟ صاحب د هدايه او ابن نجيم رحمهما الله د ظاهر الرواية کيدو د وجې نه رومبې قول اختيارکړې دې خو الصدر الشهيد اوصدرالشريعه دويم قول راجح ګرځولې دې.همدا دويم قول علامه ابن عابدين رحمه الله دهدايه دتصحيح نه اولى ګرځولې دې اوهم دا صاحب النهرالفائق "أعدل الروايات" ګرځولې دې.[2]

---

[1] ) ردالمحتار على الدرالمختار: ۳۰۸/۲.

[2] ) ردالمحتار على الدرالمختار: ۳۱۲/۲-۳۰۸.

الصدرالشهيد: عمر بن عبدالعزيز بن عمر بن مازه أبومحمد حسام الدين المعروف بالصدر الشهيد. إمام الفروع والأصول، المبرز فى المعقول والمنقول، كان من كبار الأئمة وأعيان الفقهاء. له اليد الطولى فى الخلاف والمذهب. تفقه على أبيه برهان الدين عبدالعزيز. وأقر بفضله الموافق والمخالف. وكانت ولادته سنة ثلاث وثمانين وأربعمائة، كذا قاله قاضى القضاة العلامة السبكى فى طبقات الشافعية. وله الفتاوى الصغرى والكبرى وشرح أدب القضاء للخصاف وشرح الجامع الصغير. (الفوائد البهية، ص: ۱۴۹).

صدرالشريعة: عبدالله صدر الشريعة الأصغرابن مسعود بن تاج الشريعة محمود بن صدر الشريعة أحمدبن جمال الدين عبدالله المحبوبى، صاحب شرح الوقاية، المعروف بين الطلبة بصدر الشريعة. هو الإمام المتفق عليه والعلامة المختلف إليه، حافظ قوانين الشريعة، شيخ الفروع والأصول، عالم المعقول والمنقول، فقيه أصولى خلافى جدلى محدثمفسر نحوى لغوى أديب نظار متكلم منطقى عظيم القدر جليل المحل. غذى بالعلم والأدب وورث المجد عن أب فأب. أخذ العلمعن جده الإمام تاج الشريعة محمود بن صدرالشريعةالخ وكان ذا عناية بتقييد نفائس جده وجمع فوائده.

**د حيض حكم به كله ثابتيږي؟**: امام محمد رحمه الله فرمائي چه كله ښځې ته دخپل مقر نه د وينې د وتلو احساس اوشي نودحيض حكم ثابتيږي سره ددې كه د فرج داخل نه تردغه وخته پورې خارج شوې نه وي خو امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائي چه دحيض حكم هغه وخت ثابتيږي كله چه وينه دفرج داخل نه بهر راشي.

ثمره داختلاف به په هغه صورت كښې ښكاره كيږي كه چرې يوې روژه دارې ښځې ته خاص مقام (فرج داخل) د كپړې كيخودو نه پس د نمر ډوبيدو نه وړاندې د نزول دم احساس اوشي اوهغې د غروب نه پس كپړه اوغورزوله نو په داسې صورت كښې به دامام محمد رحمه الله په نيزدغه ښځه ددې روژې قضا راوړي ځكه چه هغې ته د نزول دم احساس د نمر د ډوبيدو نه وړاندې شوې وو دكوم د وجې نه چه دحيض حكم د نمر ډوبيدونه هم وړاندې ثابت شوې وو اوحيض چونكه د روژې نه مانع دې په دې وجه به قضا لازمى راوړي. خو د شيخين رحمهما الله په نيز هغه به د دغه ورځې د روژې قضا نه كوي ځكه چه وينه د فرج داخل نه بهر نه ده راغلې صرف د نزول دم احساس ورته شوې دې او په دې سره دحيض حكم نه ثابتيږي. ليكن كه وينه د فرج داخل نه بهر راغلې وي نو په داسې صورت كښې به په اتفاق سره د روژې قضاراوړي. ځكه چه په داسې صورت كښې په اتفاق سره د حيض د ثبوت د حكم علت موندلې شوې دې. ([1]).

**داستحاضه تعريف**: استحاضه په لغت كښې هغه وينې ته وائي چه دحيض دمخصوص وختونونه علاوه جاري وي.([2]) اودشريعت په اصطلاح كښې هغه وينې ته وائي چه دغيررحم نه شروع كيدوسره د فرج داخل نه بهر راشي كه هغه وينه حقيقتاً وي اوكه حكماً. لكه د شپږو ورځو عادت ښځې ته د اووه ورځو پورې وينه، بيا دوه ورځې طهر اوبيا دووه ورځې وينه راغله دا ټولې ۱۱ ورځې شوې. په دې كښې د شروع شپږ ورځې دحيض اوباقى پنځه ورځې د استحاضه دى. اود استحاضه دوران كښې دوه ورځې چه په حقيقت كښې د طهر وې د پنځلسو ورځونه دكموالى په وجه ددم متوالى په حكم كښې دى. استحاضه ته دم فاسد هم وائي. ([3])

**د لفظ نفاس لغوى تحقيق**: نفاس مصدر دې دكوم معنى چه د بچى پيداكيدل دى او په دې مرض كښې اخته ښځې ته نُفساء وائي.د نفساء جمع نفاس راځى.دلغت علماء فرمائي چه دعربو په كلام كښې

---

شرح كتاب الوقاية من تصانيف جده تاج الشريعة وهوأحسن شروحه ثم اختصر الوقاية وسماه "النقاية" وألف فى الأصول متناً لطيفاً سماه "التنقيح" ثم صنف شرحاً نفيساً سماه "التوضيح" مات سنة سبع وأربعين وسبعمائة. (الفوائد البهية، ص: ۱۱۰-۱۰۹، الأعلام للزركلي: ۵/۵۱تاج التراجم: ۱/۲۱۸).

البهنسي: محمدبن محمد بن رجب شمس الدين وقيل: نجم الدين البهنسي، الأصلالدمشقى الحنفي، ولد بدمشق فى صفر سنة ۹۲۷هجرى وفق سنة ۱۵۲۱م وتوفى بدمشق فى جمادى الآخر سنة ۹۸۶هجرى وفق سنة ۱۵۷۸م. (معجم المؤلفين: ۱۱/۲۱۷، ردالمحتار: ۲/۳۱۱).

[1]) النهرالفائق: ۱/۱۲۹فتح القدير: ۱/۱۴۲. والله اعلم بالصواب

[2]) النهاية لابن الأثير: ۱/۴۶۰عمدةالقاري: ۳/۲۷۷معارف السنن: ۱/۴۶۹.

[3]) رسائل ابن عابدين: ۱/۷۴.

د فعلاء جمع د فعال په وزن باندې نه راځي سوا د نفساء اوعشراء چه ددې جمع نفاس او عشار (د فعال په وزن) راځي. د نفساء جمع نفساوات هم راځي.[1]

نفاس د حيض په معنی کښې هم استعماليږي لکه چه وړاندې تلو سره به د حضرت ام سلمه رضي الله عنها په روايت کښې به راځي چه کله په يوه موقع باندې ناڅاپې حضورپاك سره په حالت د اضطجاع کښې د حيض عارضه پيښنه شوه اوهغه په مزه شان اوخوئيده نو حضورپاك هغې ته اوفرمائيل "أنفست؟" آيا تاته دحيض عارضه درپيښه شوه؟ نودلته په دې حديث کښې حيض نفاس سره تعبير کړې شوې دې.[2]

البته فرق صرف دومره دې چه فعل نفاس "نفست بالفتح والضم (معروف اومجهول)دواړه شان دنفاس په معنی کښې استعماليدېشي ليکن دحيض په معنی کښې صرف"نفست بالفتح(معروف)استعماليږي.[3]

**د نفاس شرعي تعريف**: د شريعت په اصطلاح کښې د نفاس تعريف دادې: ((دم صادر من رحم خارج من فرج داخل ولو حكماً عقيب خروج أكثر ولد لم يسبقه ولد، مذ أقل من ستة أشهر)) يعنی نفاس هغه وينه ده چه د بچی د پيداکيدونه پس د رحم نه شروع کيدو سره فرج داخل نه بهر راځی، که هغه وينه حقيقتاً وی او که حکماً وی مګر شرط دادې چه د دويم بچی پيداکيدل د شپږو مياشتو نه وړاندې نه وی.

**په تعريف کښې ذکر قيود اوفصول فائدې**: په مذکوره تعريف کښې د فرج داخل د قيد نه د بچی د پيداکيدودپاره دخيتې شلولو صورت (آپريشن) نه احتراز دې خکه چه په داسې صورت کښې سره ددې چه احکام د ولادت مثلاً نقضا، عدت وغيره ثابتيږي مګر احکام نفاس نه ثابتيږي او جاری کيدونکې وينه به د زخم وينه شميرلې شي. په دې خاص صورت کښې به احکام د نفاس هله ثابتيږي کله چه وينه درحم نه خارج شي او دفرج داخل نه بهر راشي.

**قوله:: ولوحکماً** په قيد سره طهر متخلل او بياض خالص نه سواتول رنګونه داخلول مقصوددی لکه دولادت نه وړاندې ۱۵ورځې وينه راغله بيا ۲۰ورځې طهر وو، بيا ۵ ورځې وينه راغله نودا به ټول ۴۰ورځې نفاس شي اود مينځ والاشل ورځې سره ددې چه طهرتام دې خو په نفاس کښې سره ددې چه تام اوشی نوبيا هم د دوو وينو په مينځ کښې فاصل نه جوړيږی په دې شرط چه دويمه وينه د نفاس په موده کښې دننه وی.دغه شان که د بچی د ولادت نه پس وينه بالکل رانه شی نو په داسې صورت کښې هم د صحيح قول مطابق هغه ښځه نفساء شميرلې کيږی دولوحکماًپه قيدسره داخاص صورت هم په تعريف کښې داخليږی.

**قوله:: لم يسبقه ولد مذ أقل من ستة أشهر**: په قيدسره ثانی التوأمين (يعنی په يوخائی پيدا شوو بچوکښې دويم بچی) نه احتراز دې خکه چه که چرې دويم بچی د شپږو مياشتونه وړاندې وی نودهغه د پيداکيدونه پس جاری کيدونکی وينه به د نفاس نه وی بلکه په دغه خاص صورت کښې به نفاس صرف د ړومبی بچی د پيداکيدونه پس جاری کيدونکې وينه وی.[4]

---

[1] ترتيب الصحاح للجوهري ص: ۱۰۵۹.

[2] صحيح البخاري كتاب الحيض باب من سمى النفاس حيضاً رقم الحديث:۲۹۸.

[3] النهاية لابن الأثير: ۲/۷۷۷.

[4] رسائل ابن عابدين، الرسالة الرابعة: ۷۴/۱.

**داستحاضه او نفاس احكام تبعاً ذكركولووجه:** امام بخاري رحمه الله په كتاب الحيض كښې د نفاس او استحاضه احكام هم ذكر كړي دي خوچونكه دحيض ابواب زيات دي[1] اوددې واقع كيدل هم په نسبت د نفاس او استحاضه زيات وي.[2] په دې وجه امام بخاري رحمه الله دا كتاب د حيض په عنوان سره معنون كړې اوتبعاً ئې د نفاس او استحاضه احكام هم ذكركړي دي.[3]
د نفاس او استحاضه احكام تبعاً ذكركولويوه وجه داهم ده چه د نفاس وينه او استحاضه په حقيقت كښې هم دم حيض دې. چنانچه دم حيض په ايام حمل كښې د بچي خوراك وى اوكوم چه بچ شى هغه جمع كيږى اود ولادت نه پس راوځى. هم دغه شان استحاضه هم ددم حيض يو وران شوې صورت دې ځكه چه وينه كله په طبعى انداز سره راوځى نوحيض شميرلې كيږى اوكله چه د طبعى انداز نه په بل صورت كښې راځى نوهغې ته استحاضه وائى. په دې وجه د بعض حضراتو وينا ده چه په لفظ د استحاضه كښې انقلابى معنې وى په دغه معنى چه دحيض نه بدل شى استحاضه جوړه شى اود بعضو وينا ده چه په دې لفظ كښې د كثرت رعايت دې په داسې توګه استحاضه هغه وينې ته وائى چه د حيض په موده باندې زياتيږى.[4] د پخوانو طبيبانو هم دغه خيال دى چه په ايام حمل كښې هم دحيض وينه د بچى (جنين) خوراك او دده د غوښې اوځرمن جوړيدو په كار راځى مګر د دې وخت د ډاكټرانو رائې داده چه د استقراء حمل نه پس د رحم دننه غشاء كلكيږى اوپيړيږى اود جنين (بچى) حفاظت كوى او د حيض وينه په طبعى توګه طبعاً بنديږى. هم دغه وجه ده چه د حمل په حالت كښې د حيض راتلل طبعى فعل نه دې بلكه مرض شميرلې كيږى اودجنين خپله وينه غوښه اوځرمن هم پخپله دهغه په اندامونوكښې پيداكيږى اود مور د طبعى وينې نه هغه صرف خپل خوراك او هوا حاصلوى. لكه د نوى طبيبانو د تحقيق مطابق د جنين په غتيدو كښې د حيض د وينې هيڅ دخل نشته دې.دغه شان په سينوكښې دپينو پيداكيدل هم دطبعى اوصفاوينې نه كيږى نه چه د حيض دوينې نه ځكه چه د حيض د وينې ادرار(دور، موده) خودمياشتې وى اود پيئو پيداكيدل هروخت كيږى لهذا پيئى د صفا اوطبعى وينې نه په سينو كښې دننه تياريږى.هم دغه وجه ده چه په سل ودق او آتشك او جذام كښې راګيروښځو پيئى هم ددغه جراثيمونه بالكل پاك اوصفا وى اوبچو ته دغه بيمارئى د مور د پيئونه هيڅ كله نه لګى.البته دبيمارو قرب اودهغې دبدن اولباس خيرنوالې وغيره هغه بيمار وى.[5]

وقول الله تعالى ﴿وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّى يَطْهُرْنَ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ﴾ /البقرة: ٢٢٢/.

**ترجمه:** اوخلق تاسونه دحيض دحكم پوښتنه كوى تاسوورته اووايئى چه هغه ګنده څيزدې، نو په حيض كښې تاسو د ښځونه جدا اوسيږئى اوهغوى ته مه نيزدې كيږئى تركومې چه هغوى پاكې نه شى. بياچه كله هغوى په ښه شان سره پاكې شى نوهغوى سره ورځئى د كوم ځائى نه چه الله تعالى

---

[1] لامع الدراري: ٢٣٨/٢الكنزالمتواري: ٢٤٥/٣الأبواب والتراجم:٦٣
[2] عمدة القاري:٢٥٤/٣.
[3] إرشادالساري: ٥٣١/١.
[4] تقريربخاري: ٩٤/٢.
[5] أنوار الباري: ٣٧١/١٠.

تاسو ته اجازت درکړې دې. یقیناً الله تعالی محبوب ساتی توبه کونکی او محبت ساتی پاك صفا اوسیدونکی.([1])

**په قرانی ایاتونو راوړلوکښې د امام بخاری صنیع**: د امام بخاری رحمه الله طرزدې چه کله د یوخاص جنس ابواب شروع کوی نود هغې په مناسبت سره څه آیت هم ذکرکوی. د کوم منشاء چه دا وی چه دا آیت د دې موضوع د ابواب دپاره جامع او د اصل حیثیت لري. او اوس چه ددې جنس څومره ابواب هم ذکرکولې شي هغه به ددې آیت تفسیر اوتشریح ګنړلې شی.([2])

بل څنګه چه دا آیت د احکام حیض دپاره جامع دی دغه شان د احکام حیض په ابتداء باندې هم دال دې. چنانچه امام بخاری رحمه الله هم د دغه جامعیت، شمول اود احکام حیض په ابتداء باندې د دلالت کولو د وجې نه کتاب الحیض د سورت بقره دپورته ذکرشوی آیت نه شروع کړې دې.([3])

«وقول الله تعالی» د اصیلی په روایت کښې په جر سره نقل دې. په دې صورت کښې به د دې عطف په ما قبل کښې د حیض په لفظ باندې وی. لکه څنګه چه لفظ کتاب مضاف دې او په یو روایت کښې رفع سره هم نقل دې او په دې صورت کښې به د دې عطف په لفظ کتاب باندې وی.([4])

**قوله: المَحِیض**: مفعل په کسره د عین په وزن دې او باب (ض) د صحیح الآخر اومثال واوی نه مطلقاً مَفْعِل وزن د اسم ظرف مکان په معنی کښې استعمالیږی. لکه مَضْرِب، مَحْبِس، مَجْلِس، مَحِیض، مَبِیت، مَقِیل وغیره اومصدر میمی ثلاثی مجردنه مفعَل فتح دعین په وزن باندې راځی لکه مَقْتَل، مَضْرَب، مَعْلَم وغیره مګر کله دمَفْعِل په وزن هم راځی لکه مَکْبِر، مَرْجِع، مَبِیت، مَقِیل، مَحِیض، مَعْجِز، مَزِید وغیره. حاصل د کلام دادې چه وزن مفعِل د ظرفیت والا په معنی کښې اصالةً او حقیقتاً استعمالیږی او مصدریت (مصدر میمی) والا په معنی کښې مجازاً استعمالیږی.([5])

په آیت مبارك کښې لفظ محیض دوو ځایونوکښې ذکر دې. حضرات احناف او حضرات شوافع امام محمد امام نووی علامه زمخشری ابن عطیه امام طبری اوجمهور مفسرین رحمهم الله په نیز په رومبی مقام کښې لفظ محیض داسم مصدر په معنی کښې دې.([6]) او په دې باندې دلیل دا پیش کوی چه هم په دې آیت کښې ﴿هُوَ أَذًى﴾ چه دغه محیض تکلیف دې اووصف أذی محیض سره هم په هغه صورت کښې یوځائی کیدې شی کله چه لفظ محیض دمصدر په معنی کښې وی لهذا تقدیری عبارت به داسې شی. ((ویسئلونك عن حکم المحیض)).([7])

---

[1]) بیان القرآن: ۱/۱۴۴.

[2]) فضل الباری: ۲/۴۶۲.

[3]) تقریر بخاری: ۲/۹۴.

[4]) إرشادالساری: ۱/۵۳۱.

[5]) أحکام القرآن لابن العربی: ۱/۲۲۲تفسیرالطبری: ۲۲۴.

[6]) المجموع شرح المهذب: ۲/۳۴۳شرح صحیح البخاری: ۱/۲۱۶روح المعانی: ۱/۵۱۵الدرالمصون: ۱/۵۴۳أحکام القرآن للقرطبی: ۳/۴۷۵الکشاف للزمخشری: ۱/۴۳۲.

[7]) أحکام القرآن للجصاص: ۱/۴۰۷الدر المصبون: ۱/۵۴۳.

امام رازی رحمه الله فرمائی چه لفظ محیض په دواړو ځایونو کښې په حقیقی معنی (ظرف مکان) کښې دی. د دې د پاره که چرې مونږ دلته محیض ظرف مکان (فرج) په معنی کښې نه اخلو بلکه د ظرف زمان یا مصدر په معنی کښې اخلو نو په وړاندې مقام کښې هم د دغه معنی مراد کیدو په صورت کښې د آیت مبارك معنی داشی «فاعتزلوا النسآء في زمان الحیض» چه د حیض په زمانه کښې د ښځونه ځان اوساتئ په کوم سره چه د پوره بدن نه د استمتاع ممانعت مفهوم کیږی او ښکاره خبره ده چه دا حکم خلاف واقع دې. د کوم په نتیجه کښې به لازماً نسخ د آیت یا تخصیص د آیت لاز اختیارولې شی ځکه چه فوق السرة (د نامه نه پورته) او تحت الرکبته (زنګونونه ښکته) د استمتاع په جواز باندې اجماع ده. خو محیض د ظرف مکان په معنی کښې د اخستو په صورت کښې معنی صحیح پاتې کیږی او دغه قسم محظو لازم نه راځی. لهذا معنی به شی: «فاعتزلوا النسآء في موضع الحیض» یعنی ښځوسره دهغوی په فرج کښې د جماع نه ځان اوساتئ (د حیض په زمانه کښې). او دا امر بالکل واضح دې چه کله یو لفظ په دوو معانوکښې مشترك وی او په یوه معنی باندې د لفظ محمول کولوکښې څه محظور نه لازمیږی او په بله معنی کښې د محمول کولو په صورت کښې یو محظور لازم نه راځی نو دغه لفظ په داسې معنی باندې محمول کول اولی دی په کوم کښې چه څه محظور لازم نه راځی.

امام زهری رحمه الله فرمائی چه دا ټول بحث خو هغه وخت دې کله چه لفظ محیض په معنی مصدری او ظرف مکان کښې مشترك اومنلې شی ولې حقیت دادې چه د محیض استعمال د ظرف مکان د پاره زیات هم دې اومشهورهم، په دې وجه محیض د ظرف مکان په معنی کښې اخستل په هر اعتبارسره صحیح دی.(۱)

قاضی ابن العربی رحمه الله په رومبی مقام کښې دریواړه احتمالات ذکرکړی دی هغه فرمائی چه د لفظ محیض نه اسم مصدر ظرف مکان او زمان دریواړه معنې مراد کیدې شی.(۲)

ترکومې چه تعلق دې د ﴿هُوَ أَذًى﴾ نه د استدلال نو جواب دادې چه حیض کله فی نفسه أذی اوتکلیف دې؟ دا خود یو خاص قسم وینې نوم دې کوم چه بدن دې ولې أذی اوتکلیف د یومخصوص کیفیت نوم دې کوم چه عرض دې او جسم نفس عرض نه کیږی په دې وجه لازمی به داسې ویناکولې شی چه مراد دادې «أن الحیض موصوف بکونه أذی» یعنی حیض دهغه خاص کیفیت سره موصوف دې اوچه کله دا جائزدې نو بیا به داهم جائز وی چه محیض د ظرف مکان په معنی کښې وی اوأذی سره موصوف هم وی لهذا تقدیری عبارت به داشی «هو ذو أذی، أي: موضع الحیض ذو أذی» چه فرج د تکلیف والا ځائی دی.(۳)

امام نووی رحمه الله په دې باندې اجماع نقل کړې ده چه په رومبی ځائی کښې لفظ د محیض د اسم مصدر په معنی کښې دې (۴)مګر د اجماع دا قول په ظاهره دامام رازی رحمه الله او قاضی ابن العربی رحمه الله د اختلاف د وجې نه صحیح نه معلومیږی. والله تعالی اعلم بالصواب.

---

(۱) التفسیر الکبیر للرازی: ۵۵/۶.

(۲) أحکام القرآن لابن العربی: ۲۲۲/۱.

(۳) التفسیر الکبیر للرازی: ۵۵/۶.

(۴) المجموع شرح المهذب: ۳۴۳/۲.

پاتې شوه خبره په دويم مقام باندې چه د لفظ محيض نه څه مراددې، نودا امام نووی رحمه الله ليکلی دی چه په دې دويم مقام کښې درې احتمالات کيدې شی دزمان حيض هم اود اسم مصدر هم. جمهور مفسرين حضرات رحمهم الله اود ابن عباس رضي الله عنهما رائې داده چه په دويم مقام باندې د لفظ حيض نه مراد ظرف مکان يعنی موضع حيض (فرج) دې اوهم دغه دازواج مطهرات رضي الله عنهن نه هم نقل دی.[1] خو امام رازی رحمه الله فرمائی چه لفظ محيض په دواړو ځايونوکښې خپله حقيقی معنی (ظرف مکان) کښې دې.[2] اود شوافع رحمهم الله په نيز دواړو مقاموباندې محيض اسم مصدريعنی د حيض په معنی کښې دې.[3]

﴿قُلْ هُوَ أَذًى﴾: لفظ أذى سره متعلق څلور اقوال دی: ① امام سدی رحمه الله اوامام قتاده رحمه الله فرمائی چه أذی، قذر يعنی ګندګی ده. ② امام مجاهد رحمه الله اوفرمائيل چه دا دم يعنی وينه ده. ③ دريم قول دادې

چه أذی نجاست ته وائی. ④ څلورم قول دادې چه أذی داسې مکروه اوناخوښه څيزته وائی چه د خپلې بدبوئی او نجاست د وجې نه د انسان دپاره دتکليف سبب وی.

قاضی ابن العربی رحمه الله څلور واړه اقوال ذکر کولونه پس څلورمن قول صحيح ګرځولې دې ځکه چه څلورم قول رومبنو دريواړو ته شامل دې.[4]

نورو شراح حضراتو هم نيزدې نيزدې د دې لفظ هم دغه معنی بيان کړې ده. چنانچه علامه خطابی رحمه الله فرمائی: ((الأذى: المكروه الذي ليس بشديد كما قال الله تعالى: ﴿لَن يَضُرُّوكُمْ إِلَّا أَذًى﴾))[5] يعنی أذی داسې تکليف ته وائی په کوم کښې چه سختی نه وی.[6]

لهذا په مذکوره مقام کښې به هم دغه معنی مراد وی اود آيت مراد به داوی چه حالت حيض کښې موضع اذی يعنی موضع حيض نه به ځان ساتلې شی نه چه د پوره بدن نه. ځکه چه په دې تکيف کښې دومره شدت هم نشته چه د جميع بدن طرف ته حکم د اجتناب متعدی شی. په دې وجه به د اهل کتاب اومجوسيانو په شان به داسې نه شی کولې چه ددوی نه به بالکليه اجتناب کولې شی تردې چه هغوی به د کورونونه هم اوويستلې شی.[7]

امام قرطبی رحمه الله د دغه پورتنی مقام تفسير کولوسره فرمائی چه حيض په أذی سره تعبيرکولووجه داده چه أذی هريو تکليف ورکونکی څيزته وائی اوچونکه حيض هم د خپل بدبوئی د وجې نه پخپله دښځې اود خاوند دپاره هم دتکليف سبب وی په دې وجه دا د أذی سره تعبيرکړې شوې دی. چنانچه په حديث کښې هم دا لفظ د أذی هم په دې معنی کښې استعمال شوې دې. ارشاد نبوی ﷺ دې: ((وأدناها إماطة الأذى عن الطريق)) يعنی دايمان د ټولو نه ادنٰی شعبه داده چه د لارې نه تکليف ورکونکې څيز لرې کړې شی. او فی الجمله لفظ أذی قذر يعنی خيرې اوګندګئی نه کنايه ده لکه چه د

---

[1] المجموع شرح المهذب: ٣٤٣/٢روح المعانی:٥١٥/١.

[2] التفسير الكمبير للرازی: ٥٥/٦.

[3] شرح صحيح البخاری: ٢١٦/١.

[4] أحكام القرآن لابن العربی:٢٢٣/١.

[5] (آل عمران:١١١)

[6] فتح الباری:٥٢٦/٢عمدة القاری:٣٧٧/٣شرح صحيح البخاری: ٢١٦/١.

[7] شرح صحيح البخاری: ٢١٦/١.

حضورپاك ﷺ ارشاد دي «**أميطوا عنه الأذى**» د أذى نه مراد د نوى پيداشوى بچى د سر ويښته دى كوم چه په اوومه ورځ باندې خرولې شى او په حديث مبارك كښې دې ته أذى په معنى د خيرى اوګندګنى سره تعبير كړې شوى دى. دغه شان په ناخوښه خبره باندې هم د أذى اطلاق كيږى. [1]

لكه چه دالله تعالى ارشا مبارك دې: ﴿لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ﴾ **ترجمه**: تاسو په احسان كولوسره يا په تكليف رسولوسره (يعنى ناخوښه خبره كولوسره) خپل خيرات مه برباد كوئى. علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه حيض ته أذى دهغې دبدبوئى او ګندګنى او نجاست د وجې نه وائى. [2]

**د ايت مبارک د ذكر كولو فائده**: په دې مقام باندې يو اشكال كيږى چه د امام بخارى رحمه الله دلته د دغه آيت ذكر كولو څه فائده ده اوددې نه ئې څه حكم وغيره نه دې مستنبط كړې؟ جواب دادې چه د آيت مبارك ذكركولو كم نه كم فائده داده چه په دې سره د حيض د نجس كيدو او په حالت دحيض كښې د وجوب اعتزال د حكم پته لګى. [3]

**دحيض په حالت كښې د جماع كولوسره متعلق د مذاهب بيان**: دحيض په حالت كښې د جماع په حرمت باندې د ټولو اتفاق دې بلكه داحلال ګڼړل ئې كفرګرځولې دې. [4]

بل د نامه نه ترزنګونونو پورې نه علاوه د بدن نه د استمتاع په جواز باندې هم اجماع ده البته دجماع نه بغير د نامه نه تر زنګونونو پورې مينځمې حصه د بدن نه د استمتاع بلا حائل باره كښې اختلاف دې. امام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك رحمه الله امام شافعى رحمه الله اواكثر اهل علم داهم حرام ګرځوى او امام احمد رحمه الله امام محمد رحمه الله اسحاق رحمه الله امام ابوداؤد رحمه الله وغيره دې ته جائز وئيلى دى. [5]

**دعلامه شوكانى رحمه الله كلام**: علامه شوكانى رحمه الله فرمائى د حيض په حالت كښې د جماع حرمت قرآنى نص احاديث صحيحه او اجماع نه ثابت دې او په دې حالت كښې جماع حلال ګڼړونكې كافر دې او څوك چه دا حلال نه ګڼړى اوهغه په هيره سره داسې اوكړى يا هغه ته د حيض پته نه وى يا هغه ته د حرمت جماع علم نه وى يا هغه مكره وى نو په دې ټولو صورتونوكښې په ده باندې نه ګناه شته اونه كفاره ليكن داحلال ګڼړونكې هم كه چرې قصداً داسې فعل كوى نولكه چه هغه د ګناه كبيره ارتكاب اوكړو. ددې په ګناه كبيره كيدو دامام شافعى رحمه الله نه نص نقل دې. په داسې سړى باندې توبه لازم ده. البته د وجوب كفاره په سلسله كښې د علماؤ په مينځ كښې اختلاف دې.

تر كومې چه تعلق دې د غيرجماع يعنى د عين فرج نه يوځوا ته د بدن د باقى حصې نه داستمتاع نوددې دوه صورتونه دى: ① د نامه د پاسه اود زنګونونه ښكته د بدن نه استمتاع نودا په اتفاق سره حلال دى بلكه د دې په جواز باندې يو جماعت اجماع هم نقل كړې ده. ② د قُبل او دُبرنه علاوه د نامه نه لاندې تر زنګونو پورې مينځمې حصه د بدن (فخذ وغيره) نه استمتاع وى نو په دې كښې درې اقوال دى:

---

[1]) أحكام القرآن للقرطبي:٨٥/٣.

[2]) فتح البارى: ٥٢٦/٢.

[3]) عمدة القارى:٣٧٨/٣.

[4]) المجموع شرح المهذب: ٣٥٩/٢.

[5]) المجموع شرح المهذب: ٣٦٦/٢-٣٦٤معارف السنن: ٥١٠/١أحكام القرآن للجصاص: ٤٠٨/١الكشاف للزمخشرى : ٤٣٣/١.

رومبی اومشهورقول دادې چه د استمتاع داصورت هم حرام دې او هم دا د امام مالک رحمه الله امام ابو حنیفه رحمه الله اود ډیرو اهل علم لکه سعدبن المسیب شریح، طاؤوس، عطاء، سلیمان بن یسار اوقتاده رحمهم الله مذهب دې. (١)

دویم قول دادې چه دا حرام نه دی بلکه جائز دی اوهم دا د حضرت عکرمه امام مجاهد امام شعبی امام نخعی امام حاکم سفیان ثوری اوزاعی امام احمدبن حنبل محمدبن الحسن اصبغ اسحاق بن راهویه ابوثور ابن المنذر او داؤد رحمهم الله مذهب دې.

دریم قول دادې چه که مباشر دتقوی په وجه یا د شهوت د کمزورتیا د وجې نه په ضبط نفس باندې قادر دې نود هغه دپاره به د استمتاع دا صورت جائز وی اوکه چرې قادر نه وی نو جائزنه دې. (٢)

**دحیض په حالت کښې د جماع د دویم صورت د مجوزینو دلائل:** ① صحیح مسلم کښې دحضرت انس رضي الله عنه نه روایت دې چه یهودیانو به خپلې ښځې دحیض په حالت کښې د کورونو نه ویستلې هغوی سره به ئې نه خوراک څښاک کولو اونه به ئې جماع وغیره کوله نوصحابه کرامو رضي الله عنهم په دې حواله سره د حضورپاک نه سوال اوکړو نو الله تعالی دا آیت مبارک نازل کړو: ﴿ وَيَسْئَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ ﴾ الآیه او بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل: «اصنعوا کل شیء إلا النکاح» یعنی بغیرد جماع نه باقی حصې دبدن نه استمتاع جائز ده. (٣)

② کله چه دحضرت عائشه رضي الله عنها نه پوښتنه اوکړې شوه چه د حیض په حالت کښې د سړی دپاره څه حکم دې؟ نوهغې رضي الله عنها اوفرمائیل: «کل شیء إلا الفرج» بغیرد جماع نه دبدن دباقی حصې نه استمتاع جائز ده. (٤)

**دحیض په حالت کښې دجماع د دویم صورت د مانعینو دلائل:** ① صحیح مسلم کښې دعائشه رضي الله عنها نه روایت دې چه کله به مونږ (ازواج مطهرات) نه څوك دحیض په حالت کښې شو اوحضورپاك به مباشرت کول غوښتل نوهغې ته به ئې د لنګ اچولو حکم کولو دې نه پس به ئې مباشرت کولو. دغه شان د مضمون روایت د حضرت میمونه رضي الله عنها نه هم نقل دې چه حضورپاك به د خپلو بیبیانونه د حیض په حالت کښې د لنګ نه پورته حصه دبدن نه استمتاع کوله. (٥)

② حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه «أیکم یملك إربه کما کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یملك إربه» یعنی څوك دې په تاسو کښې چه په خپل شرمګاه باندې داسې قدرت لری لکه څنګه چه حضورپاك لرلو. (٦)

③ امام مالك رحمه الله په موطاکښې د زید بن اسلم رضي الله عنه مرسل روایت نقل کړې دې په کوم کښې چه دی یو سړی د حضورپاك نه سوال اوکړو چه زما دپاره څه حلال دی کله چه زما بی بی حائضه وی؟ نو حضورپاك اوفرمائیل «لتشد علیها إزارها ثم شأنك بأعلاها» یعنی ستاد پاره د (بی بی) د ازار بند تړلونه

---

(١) وهوالمنصوص لإمام الشافعي رحمه الله فی کتاب الأم کتاب الحیض باب ما یحرم أن یؤتی من الحائض: ١٢٩/٢.

(٢) نیل الأوطار: ٢٩٧/١فتح الملهم: ٩٧-٣/٩٦.

(٣) باب جواز غسل الحائض رأس زوجها الخ رقم الحدیث: ٦٩٤المجموع شرح المهذب: ٣٦٢/٢.

(٤) شرح ابن بطال: ٤١٧/١مکتبة الرشد التمهید لما فی المؤطامن المعانی والأسانید: ١٧٣/٣فتح الملهم: ٩٦/٣.

(٥) صحیح مسلم کتاب الحیض باب مباشرة الحائض فوق الإزار رقم الحدیث: ٦٧٩، ٦٨١

(٦) المرجع السابق رقم الحدیث: ٦٨٠

يورته حصه د بدن نه استمتاع حلال ده.[1] داحديث شريف په هغه حكم بيانولوكښې بالكل صريح دې چه د نامه نه لاندې استمتاع جائز اوحلال نه ده ځكه چه حضورپاك په صفا اوواضحه انداز كښې صرف د نامه د پاسه د بدن د حصې نه د استمتاع اجازت وركړې دې.[2]

④ امام ابوداؤد رحمه الله هم حزام بن حكيم عن عمه په سندسره هم ددې مضمون يوروايت نقل كړې دې او په دې باندې ئې سكوت فرمائيلې دې.[3]

اوداخبره د تحقيق نه ثابته ده چه دامام ابوداؤد رحمه الله په يوحديث باندې خاموشي اختيارول ددې قابل حجت كيدو دليل دې. كما قاله ابن الصلاح والنووى، رحمهما الله بلكه پخپله امام ابوداؤد رحمه الله نه ددې خبرې صراحت موجود دې چه دكوم حديث سره متعلق هغه سكوت اختياركړې او په هغې باندې ځه كلام اونه كړې نوهغه حديث دهغوى په نيزد حجت قابل دې.[4] دا روايت حافظ ابن حجر رحمه الله هم تلميص الحبير كښې ذكركړې دې اوپه دې باندې كلام نه دې كړې.[5]

⑤ حضرت عمر رضي الله عنه فرمائى چه ماد رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه حالت حيض كښې د سړى دپاره ځه حلال دى؟ نوحضورپاك اوفرمائيل «مافوق الازار».[6]

**دمجوزينوحضراتوطرف نه دممانعت درواياتو جواب:** مجوزين حضرات فرمائى چه په كومو رواياتو كښې **مافوق الازار** الفاظ دى هغه روايات په استحباب باندې محمول دى.[7] دې دپاره چه د حضورپاك د قول «**اصنعوا كل شيء إلا النكاح**» اوحضورپاك فعل «**كان يباشر نساءه فوق الازار**» په مينځ كښې جمع شى.[8]

**دمانعين حضراتو جواب:** مانعين حضرات فرمائى سره ددې چه حديث «**اصنعوا كل شيء إلا النكاح**» صراحتا په جواز باندې دلالت كوى مگرد حرمت قول سدالل ذريعه دې. ځكه چه حدود الله اومحارم ته نيزدې تلوكښې دا انديښنه وى چه په حدوكښې تجاوز يا محارم كښې واقع نه شى لكه چه د رمې د چا چراه گاه سره نيزدې ځرولوكښې د رمې دغه چراه گاه ته د ننوتلو ويره وى. چنانچه صحيحين كښې

---

[1] الموطا للإمام مالک كتاب الصلاة رقم الحديث: ١٤٦.

[2] أوجزالمسالک: ٥٨٢/١-٥٨١.

[3] سنن أبى داؤد كتاب الطهارة باب فى المذى رقم الحديث: ٢١٢.

[4] الباعث الحثيث (شرح اختصار علوم الحديث) أبوداؤد منظان الحديث الحسن ص: ١٣٦مكتبة المعارف للنشر والتوزيع، النكت على كتاب ابن الصلاح: ٤٣٥/١دار الراية للنشر والتوزيع تدريب الراوى فى شرح تقريب النواوى: ٢٤٦/١-٢٤٥دارالعاصمة للنشر والتوزيع.

[5] تلخيص الحبير فى تخريج أحاديث الرافعى الكبير باب الحيض: ٢٩٤/١مؤسسة قرطبة، دارالمشكاة فتح الملهم: ٩٧/٣

[6] شرح معانى الآثار كتاب النكاح باب الحائض رقم الحديث: ٤٣٧٧عالم الكتب مسندالإمام أحمد، مسندعمر بن الخطاب رضى الله عنه: ٢٤٧/١رقم الحديث:٨٦مؤسسة الرسالة.

[7] أوجزالمسالک كتاب الطهارة: ٥٨٠/١معارف السنن: ٥١٠/١.

[8] المجموع شرح المهذب: ٣٦٣/٢.

د نعمان بن بشير رضي الله عنه مرفوع روايت دې. ((من وقع في الشبهات كراع يرعى حوال الحمى، يوشك أن يواقعه))[1]
يعنى كوم سړې چه محارم ته نيزدې شو نواندېښنه ده چه هغه ددې ارتكاب اوكړى او د مانعينو دلائل د عنوان لاندې چه كوم روايات ذكركړې شوى دى هغه ټول هم ددې حكم سدالل ذريعه كيدو طرف ته اشاره كوى.([2])

**دعلامه شبيراحمدعثمانى رحمه الله كلام:** علامه شبيراحمدعثمانى رحمه الله فرمائى چه دومره خبره خو واضحه ده چه ﴿ فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيضِ ﴾ كښې دحيض په حالت كښې د ښځونه د جدائى اختيارولو مطلب هيڅ كله دانه دې چه دوى سره خوراك څښاك او ملامست (يوځائې ښكلول) وغيره هم ترك كړې شى خكه چه داخود يهودو فعل دې بلكه مطلب دادې چه په داسې حالت كښې هغوى سره صرف جماع مه كوئى. هم دغه دحضرت انس رضي الله عنه د روايت ((اصنعوا كل شيء إلا النكاح)) اودحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د قول (كل شيء إلا الفرج) صريح مدلول دې او چونكه ﴿فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيضِ﴾ ترتب ﴿هُوَ أَذًى﴾ باندې كيږى په دې وجه د اعتزال اوجدايئى د حكم اعتبار هم په محل أذى يعنى فرج باندې وى اوداسې به مراد بالكل واضح شى چه د حيض په حالت كښې جدائى اختيارولو مطلب د جماع نه ځان ساتل دى.

وړاندې دى چه ﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ ﴾ د كوم نه چه هم دغه معلوميږى چه دا نوې حكم صرف د تاكيد دپاره نه دې بلكه دتحريم جماع نه پس ددې مبادئى قريبه نه هم منع كول اوبنديدلودپاره دې. دغه د نفس جماع حرمت ﴿ فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيضِ ﴾ سره به اوشى اود مبادئى قريبه حرمت﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ ﴾ سره اوشى. بيا چونكه دغه قرب منهى عنه يعنى﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ ﴾ مجمل وونو محضورپاك په خپل قول ((لك مافوق الإزار)) اوفعل ((كان يباشرنساءه فوق الإزار)) سره ددې قريب منهى عنه تحديداوكړو اوحرمت فرج او حريم فرج يعنى((مابين السرة والركبة))طرف ته اشاره اوكړه. لهذا په دې اجمال اوتفصيل سره معلومه شوه چه دحضورپاك قول ((إلا النكاح)) نه مراد هم ((النكاح وما قاربه)) دې.يعنى جماع اوكوم چه محل د جماع سره نيزدې دى اودحضرت عائشه رضي الله عنها قول ((إلا الفرج)) نه مراد هم ((الفرج وحريمه)) دې يعنى فرج او دې سره نيزدې حصه دبدن.

**دمبادئى قريبه نه د ممانعت تمثيل:** ددې خبرې مثال چه د قرب شئ نه منع كول دهغه شئ د بعض مبادئى قريبه نه په منع كولو باندې دلالت كوى. پخپله په قرآن مجيد كښې موجود دى. چنانچه علامه آلوسى رحمه الله ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَى ﴾ ([3]) په تفسيركښې فرمائى چه ((أي: بمباشرة مباديه القريبة أوالبعيدة فضلاً عن مباشرته)) يعنى مباشرت د زنا خو لرې خبره ده د زنا مبادئى قريبه او بعيده ارتكاب هم مه كوئى.

---

[1]) رواه البخارى فى كتاب الإيمان باب فضل من استبرألدينه رقم الحديث: ٥٢ومسلم فى المساقاة باب أخذا لحلال وترک الشبهات رقم الحديث: ٤٠٩٤ هذا لفظ البخارى ولفظ مسلم: (ومن وقع فى الشبهات وقع فى الحرام، كالراعى يرعيى حوالحمى، يوشک أن يرتع فيه).

[2]) فتح الملهم: ٩٧/٣.

[3]) الإسراء: ٣٢.

هم دغه تفسير ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ ﴾ (١) دې. خکه چه فواحش ته نيزدې کيدل دهغې د ارتکاب دپاره داعی دې. هم دغه شان د يوسف عليه السلام په قصه کښې دی چه ﴿ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِنْدِي وَلَا تَقْرَبُونِ ﴾ (٢) أي لاتقربوني بدخول بلادي فضلاً عن الإحسان في الإنزال والضيافة يعنی ماته رانيزدې کيدل خو لرې خبره ده زما په بادشاهئ کښې هم داخل نه شې څه به لاتاسره د اکرام اوميلمستيا معامله اوکړې شي.

لهذا دلته په آيت دحيض کښې دجدا اوسيدو حکم ورکولو نه پس دغه ښخوته دنيزدې کيدو نه منع کول په حقيقت کښې د جماع مبادئی قريبه يعنی مابين السرة والركبة نه منع کول دی. ددې نه معلومه شوه چه د آيت مبارك ظاهر هم د جمهور رحمهم الله د قول موافق دی. (٣)

**د علامه ابن الهمام رحمه الله کلام:** علام ابن همام رحمه الله فرمائی چونکه امام ابوداؤد رحمه الله په خپل دې روايت کښې «د کوم ذکر چه د مانعين دليل نمبر ۴ لاندې تيرشوې دې» باندې سکوت فرمائيلې دې په دې وجه داحجت دې. دې نه علاوه دا روايت حسن دې لکه څنګه چه بعض حضراتو دا حسن ګرځولې دې اويا صحيح دې لکه چه شارح ابوزرعه رحمه الله دا صحيح ګرځولې دې اوداخبره په خپل ځائی باندې مسلم ده چه د روايت د صحيح کيدو بنياد د سند په رجال باندې وی. چنانچه علامه شوکانی رحمه الله فرمائی چه دامام ابوداؤد رحمه الله ددې روايت په سند کښې دوه راويان صدوق او باقی ټول ثقات دی. لهذا د شارح ابوزرعه رحمه الله دا روايت صحيح ګرځول ټيك دی. دا روايت دامام مسلم تخريج کړې شوې روايت «اصنعوا كل شيء إلا النكاح» سره معارض خو دې مګر امام مسلم رحمه الله چونکه دداسې رواتو نه هم روايت کوی په چاکښې چه جرح موجودوی. په دې وجه به ترجيح د امام ابوداؤد رحمه الله روايت ته وی. بيا چونکه دا روايت محرم دې اود امام مسلم رحمه الله روايت مبيح دې او عندالتعاض هم محرم ته ترجيح کيږی په دې وجه به هم ترجيح د ابوداؤد رحمه الله روايت ته وی. دغه شان ﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّى يَطْهُرْنَ ﴾ (٤) کښې دوه احتماله دی: ① چه نهی صرف عين د جماع نه وی. ② چه نهی عام وی.

که چرې رومبې احتمال مراد وی نو په داسې صورت کښې په دويم مقام «ماتحت الإزار» کښې د حديث په ذريعه حرمت ثابت کيدې شي. په دې باندې دا اشکال نه شی کيدې چه مونږ په قرآن پاك باندې په خبرواحد سره زياتې کړې دې خکه چه دا د خبرواحد ذريعه د زياتوالی د قبيل نه نه دې بلکه د قرآن کريم مطلق حکم مقيد کولو د قبيل نه دې. چنانچه دقرآن کريم حکم مطلق وو چه بغيرد جماع نه ټول حلال دی نوحديث دا اطلاق مقيد کړو چه ماتحت الإزار هم استمتاع حلال نه ده. لهذا داسې ګنړل پکاردی چه د حديث په ذريعه د يوداسې حکم نه تعرض کړې شوې دې کوم چه قرآن نه دې بيان کړې.

اوکه چرې دويم احتمال مراد وی نو جماع او نور ټول استمتاعات به هم حلال نه وی نه به مافوق الإزار حلال وی اونه به ماتحت الإزار اوس به د حديث په ذريعه د بعض احکامو تخصيص کيږی. چنانچه مافوق الإزار نه په استمتاع باندې چونکه اجماع ده په دې وجه به مافوق الإزار ددې نهی نه خاص شي.

---

(١) الأنعام: ١٥٢.

(٢) يوسف:۶

(٣) فتح الملهم: ٣/٩٩-٩٨.

باقی د بدن تو له حصه به دنهی لاندې داخله شی او جماع او استمتاع **ماتحت الإزار** دواړو باندې به د حرمت حکم باقی پاتې شي.(۱)

**د امام ابوبکرالجصاص رحمه الله کلام:** امام ابوبکرالجصاص رحمه الله فرمائی چه آیت مبارك په دوه شان سره په ماتحت الإزار باندې دلالت کوی یوخودا چه ﴿فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيْضِ﴾ ظاهر بالکلیه د اجتناب تقاضاکوی خوچه کله د **استمتاع مافوق الإزار** په اباحت باندې اتفاق اوشو نوموږ داد دلیل کیدو د وجې نه تسلیم کړو اود **مافوق الإزار** دحلت حکم مواولګولو. مګر چونکه د**ماتحت الإزار** په حلت باندې دلیل قائم نه دې په دې وجه دا هم یوشان د حرمت د حکم لاندې باقی پاتې دې.

او دویم دا چه ﴿وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ﴾ ظاهربالکلیه د اجتناب تقاضاکوی لهذا عندالاختلاف هم دا څیز به مستثنی ګرځولې شی د کوم دلیل چه موجود وی.چنانچه دحضرت عائشه حضرت میمونه او عمر رضي الله عنهم وغیره روایات د دلیل په توګه موجود دی کوم چه په **ماتحت الإزار**باندې د حرمت دلالت کوی.

د دریم فریق حضرت انس رضي الله عنه وړاندې ذکرکړې شوې روایت او دحضرت عائشه رضي الله عنها د هغه روایت نه استدلال کوی په کوم کښې چه حضورپاك ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوفرمائیل «**ناولینی الخمرة**» یعنی ماله پوزکې راکړه نوحضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائیل زه په حیض کښې یم. په دې باندې حضورپاك ﷺ اوفرمائیل «**لیست حیضتك فی یدك**» یعنی د حیض نجاست ستاپه لاسونوکښې نه دې.

دا حضرات فرمائی چه داحدیث په دې امر باندې دلالت کوی چه دښځې هر هغه اندام په کوم کښې چه د حیض وینه نښته دهغې حکم د حیض په حالت کښې هم هغه دې چه دټولو اندامونو د طهارت په حالت کښې دې. ددې حضراتو د دلائلو جواب دادې چه دحضرت انس رضي الله عنه په حدیث کښې د آیت د نزول سبب اود یهودو دص حرکتونو بیان دې په کوم کښې چه حضورپاك د یهودو د مخالفت حکم اوفرمائیل چه دحیض په حالت کښې دوی «ښځې» د کورونو نه مه اوباسئی او مه دوی سره ناسته پاسته پریږدئی.

او«**اصنعوا کل شیئ إلا النکاح**» نه ممکن دی چه «**جماع فیما دون الفرج**» مراد وی ځکه چه دا هم د جماع یوقسم دې. خو دحضرت عمر رضي الله عنه روایت په دې مسئله کښې د قول فیصل درجه لری اوهغه حدیث د حضرت انس رضي الله عنه نه متاخر هم دې. ځکه چه حضرت انس رضي الله عنه د نزول آیت د احوال خبرورکوی او حضرت عمر رضي الله عنه داخبره ورکوی چه پخپله هغه دحضورپاك نه د دې مسئله تپوس اوکړو اودا لامحاله د آیت د نازلیدلونه هم پس کیدې شی ځکه چه دا سوال کول چه د حیض په حالت کښې د بدن د کومو اندامونونه استمتاع حلال ده؟ هم هغه وخت کیدې شی کله چه ددې نه وړاندې د حرمت حکم معلوم شوې وی. بل که چرې دحضرت عمر رضي الله عنه د مسئلې تپوس کول د آیت د نازلیدلو وخت کښې وې نو حضورپاك به په جواب کښې هم په دغې باندې اکتفاء کوله کوم چه د حضرت انس رضي الله عنه په حدیث کښې ذکر دی. اوکه چرې په دواړو روایتونوکښې تعارض اومنلې شی نوبیابه هم دحضرت عمر رضي الله عنه روایت ته ترجیح وی ځکه چه «**الحظروالإباحة إذا اجتمعا فالحظر أولی**» یعنی کله چه حرمت او اباحت دواړه راجمع شی نو ترجیح به حرمت ته حاصله وی اوچونکه د حضرت عمر رضي الله عنه په روایت کښې د حرمت بیان دې په دې وجه به ترجیح هم دې ته وی.

---

۱) فتح الملهم: ۳/۹۸-۹۷ فتح القدیر (بتغیر یسیر): ۱/۱۷۰-۱۶۹.

دغه شان د ماقبل د تشريح نه واضحه شوې ده چه دقرآن پاك ظاهر هم د حديث عمر رضي الله عنه موافق دې خو د حضرت انس رضي الله عنه په حديث سره د حكم قرآني تخصيص لازم راځي او قاعده ده چه «مايوافق القرآن أولى ممايخصه» يعني كوم حكم چه د قرآن موافق وي هغه زيات بهتردې د داسې حكم نه په كوم كښې چه د حكم قرآني تخصيص لازم راشي. بل دا چه دحضرت انس رضي الله عنه حديث مجمل او عام دې اودحضرت عمر رضي الله عنه حديث ددې دپاره مفسردې ځكه چه په دې كښې ماتحت الإزار او مافوق الإزار د دواړو حكم جدا جدا ذكركړې شوې دې. لهذا د ترجيح ددې تولو وجوهاتو په رڼا كښې به هم د حضرت عمر رضي الله عنه حديث ته ترجيح وي. والله اعلم بالصواب.[1]

**دطهر د انقطاع د دم په معنى كښې د استعماليدو دلائل:** ابن جرير د امام مجاهد نه سه سند حسن سره نقل كوي چه ﴿حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾ دا انقطاع دم دې. حضرت عكرمه سفيان اوعثمان بن الاسود نه هم ﴿حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾ معنى«حتى ينقطع عنهن الدم»نقل دې[2] بل ابن جرير، ابن المنذر، ابن ابى حاتم او امام بيهقي رحمهم الله هم د ابن عباس رضي الله عنهما نه ﴿حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾تفسير «حتى يطهرن من الدم» سره نقل كړې دې.[3]

**د تطهر داغتسال په معنى كښې د استعماليدو دلائل:** ابن جرير په سند حسن سره د ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې آيت تفسير داسې نقل كړې دې: «فإذاطهرت من الدم وتطهرت بالماء» دغه شان امام مجاهد، حسن، سفيان او عثمان بن الاسود رحمهم الله نه هم نقل دى.[4]

دلته ددې خبرې وضاحت كول ضروري دي چه اغتسال د تطهر حقيقي معنى نه ده ځكه چه د تطهر استعمال دغير اغتسال په معنى كښې هم عام دې چونكه داد مبالغه صيغه ده اود حيض نه دطهارت كامله هم داغتسال په ذريعه حاصليدې شي په دې وجه په دې موقع باندې دا لفظ د اغتسال په معنى كښې واخستلې شو.[5]

**د انقطاع دم نه پس اود اغتسال نه وړاندې د وطى كولوحكم:** په دې مسئله كښې د فقهاء كرامو حضراتو په مينځ كښې اختلاف دې چه دخاوندپاره د وينې بنديدو نه پس اود اغتسال نه وړاندې ښځې سره كوروالې كول جائز دى كه نه؟ نو په دې سلسله كښې د بعض حضراتو مذهب خودا دې چه صرف هم د وينې په بنديدو سره د كوروالى اباحت ثابتيږى كه كمه موده يعنى په عادت باندې وينه بنده شوې وى يا په اكثرموده باندې.

---

[1] أحكام القرآن للجصاص: ٤٠٩/١.

[2] تفسير ابن أبي حاتم، تفسير قوله تعالى ﴿وَلَاتَقْرَبُوهُنَّ﴾: ٤٠١/١مكتبة نزار مصطفى الباز، مكة المكرمع تفسير القرآن العظيم لابن كثير، سورة البقرة الآية: ٢٢٢، ٣٠٤/٢مؤسسة قرطبة، أحكام القرآن للتهانوى: ٤١٣/١.

[3] تفسير ابن أبي حاتم، تفسير قوله تعالى ﴿وَلَاتَقْرَبُوهُنَّ﴾: ٤٠١/١مكتبة نزار مصطفى الباز، مكة المكرمع تفسير القرآن العظيم لابن كثير، سورة البقرة الآية: ٢٢٢، ٣٠٤/٢مؤسسة قرطبة، أحكام القرآن للتهانوى: ٤١٣/١.

[4] تفسير ابن أبي حاتم، تفسير قوله تعالى ﴿فَإِذَاتَطَهَّرْنَ﴾: ٤٠٢/١مكتبة نزار مصطفى الباز، مكة المكرمع تفسير القرآن العظيم لابن كثير، سورة البقرة الآية: ٢٢٢، ٣٠٤/٢مؤسسة قرطبة، أحكام القرآن للتهانوى: ٤١٣/١.

[5] روح المعاني: ٥١٦/١ أحكام القرآن للتهانوى: ٤١٤/١.

داحضرات ﴿ وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ ﴾ نه استدلال كوي چه حتى دلته دغايت دپاره مستعمل دي دكوم تقاضاچه داده چه ددې مابعد حكم كښې دماقبل خلاف وي لهذا د وينې د بنديدو نه پس به د خاوند دپاره كوروالې كول حلال وي كه هغه دوينې بنديدل په عادت باندې وي يا په اكثر موده باندې.
بل كه چرې دا لفظ په تشديدسره اولوستلې شي نوبيابه هم د انقطاع دم والامعنى مرادوي ځكه چه طَهُرت او تَطَهَّرت دواړه په انقطاع دم معنى كښې استعماليدې شى لكه چه ((تقطَعَ الحبل)) معنى ((انقطع الحبل)) او ((تكسرالحوز)) معنى ((انكسرالحوز)) ده.
ائمه ثلاثه امام مالك امام شافعي اوامام احمدبن حنبل رحمهم الله فرمائي چه د وينې بنديدل په عادت باندې وي يا په اكثرموده د حيض باندې، تركومې چه ښځه غسل نه كوي د كوروالى اباحت به نه ثابتيږي ځكه چه ﴿ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللّٰهُ ﴾ كښې د وطى د اباحت دپاره دوه شرطونه ذكر دي. يوانقطاع دم او دويم غسل كول ځكه چه تطهرن كښې د غيرغسل احتمال نه شي كيدې. لهذا كله چه دواړه شرطونه موجود شي نودخاونددپاره به كوروالې حكول حلال شى. لكه چه آيت ﴿ فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ۚ فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ أَنْ يَّتَرَاجَعَا ﴾ كښې د اول خاونددپاره د حلال كيدو دوه شرطونه دي.يونكاح اوبل طلاق. په دې وجه صرف د يوشرط په موجود كيدو هغه د اول خاونددپاره حلال نه وي.هم دغه شان كه څوك وائي چه((لاتعط زيدا شيئاً حتى يدخل الدار فإذا دخلها وقعد فيها فأعطه دينارا)) نو ددې مطلب اومفهوم بالكل واضح دې چه استحقاق دينارمشروط بشرطين دې يودخول دار او بل قعود في الدار.
حضرات احناف رحمهم الله فرمائي كه چرې د وينې بنديدل په عادت باندې (يعنى د لسو ورځونه په كم باندې) وي نو چه ښځه تركومې غسل اونه كړي يا د يوكامل مونځ وخت تيرشوې نه وي هم دحائضه په حكم كښې به وي خوكه غسل اوكړي يا د يوكامل مونځ وخت تيرشي نوهغه به اوس يوه پاكه شميرلې كيږي اود خاونددپاره به كوروالې كول هم حلال وي اوكه چرې داد عدت آخرى حيض وو نوعدت به ئې هم پوره شي. اوكه چرې د وينې بنديدل د لسو ورځونه پس وي نواوس به هغه هم پاكه شميرلې كيږي اود غسل نه وړاندې هم د خاوند دپاره كوروالې كول حلال وي لكه چه د جنبى ښځې سره چه دخاوند كوروالې كول حلال دې.البته د كوروالى نه وړاندې د ښځې دپاره غسل كول مستحب دې(١)

**د احناف رحمهم الله يواصول:** د حضرات احناف رحمهم الله يواصول دى چه هغوى متعدد قراءات د مستقل آيات په حكم كښې ګنړي اودهغې نه جدا جدا احكام مستنبط كوي لهذا دلته هم هغوى قراءت د تشديد د لسو ورځونه كم كښې د وينې بنديدل د حيض والاصورت باندې محمول كړې دى.
ځكه چه تطهّر د باب تفعل نه دى په دې كښې په نسبت د فعل لازم اومجرد معنوى زياتوالې كيږي يعنى علاوه دقدرتى اوحسى طهارت نه په خپل كسب اوفعل سره هم طهارت حاصلول ضرورى دى او هغه به دغسل په ذريعه سره وي. په دې وجه د احنافو مذهب دادې چه په مذكوره صورت كښې هم د غسل نه پس دهغې خاوند كوروالې كولې شي.
ددې عقلى دليل دادې چه د وينې كله ادرار كيږي اوكله انقطاع. په دې وجه په كمه موده كښې د ختميدونكې وينې د دوباره راتلو احتمال موجود وي. په دې وجه عموماً د ښځوعادت هم دا وي چه هغوى ته د بيا وينې راتلو خيال وي سره ددې چه دمعمول اوعادت موافق وينه بنده شوې هم وي. البته

---

(١) أحكام القرآن للجصاص: ١/٤٢٣-٤٢٢ ؛ التسهيل العلوم التنزيل: ١/١٠٩.

دغسل کولونه پس هغه مطمئن کیږي.نولکه څنګه چه هغوی ته قلبی اطمینان بغیرد قدرتی او اختیاری دواړه قسم طهارت نه نه حاصلیږی دغه شان په قرآن مجید کښې هم د دغه خارجی او واقعاتی امورو لحاظ کولوسره د دواړو طهارتونو په حصول باندې احکام ورکړې شوې دی. په خلاف د دویم صورت چه کله د وینې انقطاع د حیض په اکثر موده باندې وی نوچونکه ددې نه پس د زیاتوالی هډو احتمال باقی نه پاتې کیږی نودهغې دپاره به د تخفیف والا د قراءت حکم چلیږی او قدرتی او سماوی طهارت به کافی وی ځکه چه طهر لازم دې. لهذا د حیض اکثر موده پوره کیدو نه پس چونکه طهارت حسیه حاصل شوې دې په دې وجه بغیرد غسل نه هم جماع جائز ده کوم چه صرف د حیض اودهغې د ګندګنی د وجې نه ممنوع شوې وه سره ددې چه د غسل استحباب په دې صورت کښې هم د احنافو په نیز شته اود مونځ فرضیت هم متوجه شو لکه چه ددې ادا کول بغیرد حکمی طهارت (غسل) نه جائزنه دې په دې وجه غسل ضروری شو.([1])

بل د قراءت تخفیف تقاضاداده چه دوینې بندیدوسره چه دا عارضی حرمت ختم شی اوښځه پاکه شمیرشی خود قراءت تشدید تقاضا داده چه حلت په غسل باندې موقوف وی. په دې وجه مناسب هم دغه ده چه دا دواړه قراءتونه د دوومستقل آیاتونو په څائې اودرولوسره دا په دوو مختلفو حالتونو باندې محمول کړې شی ځکه چه که انقطاع دم علی اکثرالحیض والاصورت کښې حلت په غسل باندې موقوف کړې شی نومطلب دا. شو چه لکه ښځه تردغه وخته پورې حکماً هم حائضه ده خوداحکم د شریعت منافی دې ځکه چه شرعاً د اکثرمودې نه پس وجوب صلاۃ یعنی د مونځ واجب کیدل اود شریعت نور احکام متوجه کیږی. اوداسې به په هغه صورت کښې وی کله چه ښځه پاکه شوې وی.لهذا داکثر مودې نه پس حلت په غسل باندې موقوف کول د شرعت دحکم منافی کیدو د وجې نه هم صحیح نه دی په خلاف د انقطاع دم علی العادۃ چه په دې صورت کښې شریعت د طهارت قطعی حکم نه دې لګولې ځکه چه په دې کښې د حیض د وینې راتلو احتمال کیدې شی. هم دغه وجه ده که چرې وینه واپس راؤګرځی اودلسمې ورځې نه تجاوزاونه کړی نوپه اتفاق سره ټول حیض شمیرلې شی.

په دې باندې دې دا اشکال نه وی چه د وینې واپس راګرځیدل خود غسل یا یوکامل مونځ وخت تیریدو نه هم ممکن دی؟ ځکه چه دغسل کولونه پس د طهارت حکم پخپله شریعت لګولې دې. دغه شان د حیض د وینې بندیدونه پس که چرې یوکامل مونځ وخت تیر شی نود مونځ واجب کیدل او نور احکام متوجه کیږی خودا ټول د حائضه په احکام کښې نه دی ځکه چه که د غسل کولونه پس یا د کامل مونځ وخت تیریدونه پس دم حیص واپس راشی نود طهارت حکم منسوخ کیږی اود حیض حکم واپس راګرځی.([2])

**د امام ابوبکر الجصاص رحمه الله تحقیق:** امام ابوبکرالجصاص فرمائی چه که چرې ﴿حَتّٰى يَطْهُرْنَ﴾ مخفف اولوستلې شی نوددې معنی به د وینې د بندیدو شی د اغتسال معنی په دې وجه نه شی کیدې ځکه چه که چرې حائضه د حیض په حالت کښې غسل هم اوکړی نوبیابه هم هغه ناپاکه شمیرلې شی. په دې وجه صرف د انقطاع دم والامعنی به متعین کیږی په کوم سره چه ښځه د حیض د حالت نه اوځی. خود مشدد لوستلو په صورت کښې د وینې بندیدل او اغتسال دواړو معانو احتمال دې. مګر چونکه

---

[1]) أنوار الباري: ۳۶۵/۱.

[2]) روح المعاني: ۵۱۶/۱أحكام القرآن للتهانوي: ۴۱۵/۱-۴۱۴.

قراءت تخفيف محكم دي ځکه چه ددې معنى واحد متعين ده اوقراءت تشديد متشابه دې ځکه چه معنى واحد متعين نه ده بلکه ددواړو معانو په دې کښې احتمال دی اود متشابه داحکم دې چه داد محکم طرف ته راګرځولې شي په دې وجه قراءت دتشديد هم د قراءت تخفيف طرف ته راګرځولې شي.اوس به د دواړو قراءتونو حاصل معنى داشي چه ددې عارضى حرمت دپاره انقطاع دم غايت دې.

باقى﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ﴾کښې هم دمخکښې په شان دواړه احتمالات دی پدې وجه به داهم د قراءت تخفيف طرف ته راګرځولې شي اوحاصل عبارت به داسې شي «حتى يطهرن فإذا تطهرن فأتوهن» اومعنى به هم بالکل صحيح شي لکه چه څوك داسې اووائى«لاتعط زيداشيئاًحتى يدخل الدار،فإذادخلهافأعطه» او ﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ﴾ حکم غايت يعنى ﴿حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾ دپاره تاکيد جوړيږى.نتيجتاً به د آيت کريمه تقاضا دا شى چه د وينې بنديدل(په کوم سره چه ښځه د حيض د حالت نه اوځى) نه پس کوروالې کول مباح وى.

بل په آيت مبارك يو احتمال داهم دې چه ﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ﴾ معنى «إذاحل لهن أن يتطهرن بالماء أوالتيمم» وى لکه چه «إذاغابت الشمس فقد أفطر الصائم» معنى ده.«قدحل له الإفطار» او «من كُسِرَأوعَرِجَ فقدحل عليه الحج من قابل» معنى ده.«فقد جازله أن يحل» لهذاچه کله دلته هم ددې معنى احتمال دې نوغايت به هم دهغې په حقيقت باندې باقى ساتلې شي اود حرمت وطى حکم به نه شى لګولې.

ترکومې چه خبره ده د ﴿فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِن بَعْدُ حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ نه د خپل مذهب په صحت باندې د دليل نيولو نوجواب دادې چه په دې آيت کښې هم غايت په خپله هم حقيقى معنى کښې مستعمل دې د دويم خاوند نکاح د کوم نه مراد چه وطى دې د دريو طلاقو کيدونکى د حرمت دپاره غايت دې په داسې توګه چه ددويم خاوندپه وطى کولوسره دا حرمت ختميږى اود دويم خاوند طلاق ورکولو باندې نه موقوف کيږى په دې وجه ددې نه استدلال کول صحيح نه دى.

ددې تقرير نه پس حضرات شوافع دپاره خونه دخپل مذهب په صحت باندې دليل باقى پاتې کيږى اونه د نوروحضراتو دقول په نفى باندې،ليکن حضرات احناف دواړه قراءتونه په دوو مختلفو حالتونو باندې محمول کولوسره دواړه په خپلو حقيقى معنوکښې استعمالوى. چنانچه د تخفيف والا قراءت په اکثرموده باندې او د تشديد والاقراءت په اقل موده باندې محمولوسره مختلف احکام مستنبط کوى.[1]

**د علامه انورشاه کشميرى رحمه الله تحقيق:** علامه انور شاه کشميرى رحمه الله فرمائيلى چه په آيت مبارك کښې "جواز إتيان" په دوو امورو باندې معلق کړې شوى دى او طهارت حسيه (د وينې بنديدل) دى دکوم طرف ته چه ﴿حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾ سره اشاره ده او دويم طهارت حکميه (غسل) دې. دکوم طرف ته چه ﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ﴾ سره اشاره ده. قرآن کريم اقل حيض اواکثرحيض دتعيين اوتفصيل نه بغيرعلى الاطلاق د دواړو طهارتونو په حصول باندې احکام ورکړى دى. په دې وجه د قرآن مجيد اطلاق به هم په صورت اطلاق کښې ساتلى شي اود جزئيات تفصيل به مجتهد ته حواله کوو. چنانچه کله مجتهد د خپل منصب تفحص لاندې معلومه کړه چه د حيض وينه د لسو ورځونه زياتيږى نه نودائى دخپل اجتهاد په ذريعه (نه چه د قرآنى نص د وجې نه) دا جزئى مخصوص او مستثنى کولو حق حاصل شو په دې وجه دې ته په هيڅ صورت د نص مخالفت نه شى وئيلې. البته که قرآن مجيد انقطاع دم على ...

---

[1]) أحكام القرآن للجصاص: ۴۲۳/۱.

الأکثر په صورت کښې غسل ضروری کړې وي نوبیا به دې ته خامخا د قرآني نص مخالفت وئیلې شو.
نیکن قرآن مجید ددې خاص څیزطرف ته اشاره نه ده کړې بلکه په مختلف خارجي عاداتو باندې
دمسئلې فیصله په اجمالي توګه باندې اوکړه. نه ئې د اقل او اکثر تفصیل اوکړو او نه ئې په دې باندې
د مسئلې بنیاد ښکاره کړو. مجتهد راغلو د دغه جزئیاتو چهان بین ئې اوکړو اودا فیصله ئې اوکړه
که چرې د وینې بندیدل په اکثر موده باندې وی نود جماع د جواز مدار به صرف په قدرتي او سماوي
طهارت باندې وی. په دې وجه د وینې په بندیدو باندې د جماع اجازت ورکړو او په کمه موده باندې د
وینې د بندیدو په صورت کښې مدار په طهارت اختیاریه باندې کیخودو اوبغیرد غسل نه ئې د
جماع اجازت ورنه کړو.[1]

**دعلامه ابن رشد مالکی رحمه الله اعتراض:** علامه ابن رشد مالکی رحمه الله ددې تقریر تضعیف کړې دې. د
هغوی وینا ده چه ﴿يَطْهُرْنَ﴾ نه اکثر موده او ﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ﴾ نه اقل موده مراداخستل غايةً او په استیناف
کښې بې ربطي پیدا کولو به شان دی. اودا داسې دی لکه چه څوك اووائي: «فأتعط فلاناً درهماً حتى يدخل
الدار، فإذا دخل المسجد فأعطه درهماً» یعنی ته فلانکی ته درهم مه ورکوه، تردې چه هغه په کورکښې
داخل شی، نوهغه جمات ته داخل شی نوهغه له درهم ورکړه. اوس ښکاره خبره ده چه داسې کلام په
عربو کښې غیرمستعمل دې ځکه چه په غایت او استیناف کښې بې ربطي بالکل واضح ده هم دغه
شان بې ربطي ﴿يَطْهُرْنَ﴾ نه اکثر مراد اخستل او ﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ﴾ نه اقل موده مراد اخستلو کښې ده.
ددې دپاره ضروری دی چه مجتهددې یوه معنی «انقطاع دم او اغتسال» متعین کولونه پس په دویم
مقام کښې هم هغه معنی مراد واخلی چه په غایت او استیناف کښې بې ربطي پیدانه شی.[2]

**د ابن رشد مالکی رحمه الله د اعتراض جواب:** ددې اشکال د جواب حاصل دادې چه په حقیقت کښې آیت
﴿وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾ معنی «حتى يطهرن ويتطهرن فإذا تطهرن ويطهرن فأتوهن من حيث أمركم الله» ده.
ددې دوارو جملونه یو یوفعل د اختصاردپاره حذف کړې شوې دې ځکه چه د یو ذکر د بل په حذف
اوتقدیر باندې قرینه ده. کله چه اصل کلام سره دمقدراتو پیش کړې شو نومذکوره اشکال هم لرې شو.
ځکه چه ﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ﴾ دپاره په غایت کښې تطهر موجوددې په کوم سره چه دبې ربطي اشکال ختمیږی
دویم جواب دادې چه د ﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ﴾ تعلق د غایت سره نه دې بلکه صدر کلام ﴿وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ﴾ سره دې په
داسې معنی چه په حالت د حیض کښې ښځوسره قربت مه کوئی بیاچه کله هغوی پاکې شی نو
مقاربت کوئی. دې ته په اصطلاح کښې تردد عکس وائی.[3]

**دحائضه اونفساء دپاره د مونځ روژې پریخودو حکم:** علامه نووی رحمه الله فرمائی چه د حائضه په حق
کښې د علماء اهل سنت اجماع ده چه دحیض په حالت کښې په ښځه باندې مونځ کول حرام دی که
هغه فرض مونځ وی اوکه نفل او په دې باندې هم اجماع ده چه دحائضه نه د مونځ فرضیت ساقط دې.
په دې وجه د پاکیدو نه پس دهغه مونځونو کوم چه د حیض په ورځو کښې ساقط وو قضاء به نه کوی.

---

[1] فیض البار (بتغییر یسیر): ۳۷۲/۱ أنوار الباری: ۳۶۶/۱۰.
[2] بدیة المجتهد: ۵۶۲/۱ فیض الباری: ۳۷۳/۱.
[3] فیض الباری: ۳۷٤/۱-۳۷۳ أنوار الباری: ۳۶۷/۱۰.

بل ابوجعفر رحمه الله د ابن جرير طبري رحمه الله په حواله سره نقل کوی چه هغوی په خپل کتاب "اختلاف الفقهاء" کښې دحائضه په حق کښې ټول مونځونه اوټولې روژې (که فرض وی اوکه نفل) او طواف (که فرض وی که نفلي) په ممانعت باندې اجماع نقل کړې ده. امام ترمذی ابن المنذر اوابن جرير اونورو فقهاء کرامو رحمهم الله په دې باندې هم اجماع نقل کړې ده چه په حائضه باندې د مونځونو قضاء نشته دې البته د روژو قضاء شته.[1]

علامه عيني رحمه الله فرمائی په حائضه باندې د مونځونو قضاء نشته دې او په دې کښې د ائمه حضراتو هيڅ اختلاف نشته دې بغير د خوارج نه.[2] ځکه چه هغوی د روژې د قضاء په شان د مونځونو قضاء هم ضروری ګڼړی.[3] ددې روايت نه هم د خوارج دمسلك پته لګی. دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه دهغې نه يوې صحابيه معاذه رضي الله عنها تپوس اوکړو چه څه وجه ده چه حائضه خو د روژو قضاء راوړی ولې د مونځونو قضاء راوړل په هغې باندې نشته دې؟ نوحضرت عائشه رضي الله عنها په جواب کښې ارشاد اوفرمائيلو «أحرورية أنت؟» يعنی ولې ته خارجيه ئې؟ نوهغې اوفرمائيل نه زه خارجيه نه يم. نو ام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها اوفرمائيل چه مونږ ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کښې د روژو د قضاء حکم راکړې شوې وو اود مونځونود قضاء حکم نه وو راکړې شوې.[4] (په دې وجه به د روژو قضاء کيږی او د مونځونو قضاء به نه کيږی) حضرت عائشه رضي الله عنها د خارجيه کيدو متعلق ځکه تپوس کړې وو ځکه چه دخوارج وينا ده چه حائضه باندې د مونځونو قضاء هم ده.[5]

**د روژې اومونځ ترک کولو وجه:** د ترك صلاة حکم په دې وجه دې چه د مونځ د صحت دپاره طهارت شرط دې خو دحيض حالت د طهارت منافی دې اوهم په دې وجه دترك صلوة حکم معقول المعنی ګرځولې شوې دې. البته د روژې دپاره طهارت شرط نه دې خو بياهم د ترك صوم حکم دې. نودا حکم غير معقول المعنی کيدو د وجې نه امر تعبدی اوغير مدرك بالقياس ګرځولې شوې دې.[6]

**دعلامه انورشاه کشميری رحمه الله تحقيق:** علامه انور شاه رحمه الله فرمائی د مانځه دپاره د طهارت شرط کيدل دغه شان د حج د بعض مناسك دپاره د طهارت واجب کيدل اود بعض دپاره سنت کيدل خود ټولو په نيز مسلم دی لکه چه سترد عورت دې چه په خارج کښې او په اکثروختونو او احوالوکښې هم فرض دی. ليکن مونځ او واجبات حج کښې هم دا د خاص شرط په توګه کيخودلې شوی دې. ليکن په ما باندې دا امر واضحه شوې دې چه طهارت د روژې دپاره هم ضروری دې بلکه په ټولو عباداتوکښې ددې رعايت دې. په طهارت کښې کمې اوکوتاهی کيدو سره په اصل عبادت کښې کمې واقع کيږی. چنانچه هم ددې طرف ته د جنبی سړی باره کښې حديث «لاصوم له» يعنی ددغه جنبی روژه نه کيږی. اود بنکر لګونکی اوچاله چه لګوی دهغه د پاره حديث «أفطر الحاجم والمحجوم»

---

[1] عمدة القاري: ۴۶/۳؛ المجموع شرح المهذب: ۳۵۱/۲؛ معارف السنن: ۵۰۲/۱.

[2] عمدة القاري: ۴۶/۳.

[3] المغنی لابن قدامة: ۱۸۸/۱؛ عمدة القاري: ۴۶/۳؛ معارف السنن: ۵۰۲/۱.

[4] صحيح البخاري كتاب الحيض باب لاتقضى الحائض الصلاة رقم الحديث: ۳۲۱؛ وصحيح مسلم كتاب الحيض باب وجوب قضاء الصوم على الحائض دون الصلاة رقم الحديث: ۷۶۳-۷۶۱؛ وسنن أبى داؤد كتاب الطهارة باب فى الحائض لا تقضى الصلاة رقم الحديث: ۲۶۳-۲۶۲؛ وجامع الترمذى كتاب الطهارة ماجاء فى الحائض أنها لا تقضى الصلاة رقم الحديث: ۱۳۰ جامع الأصول الكتاب الأولو الباب السابع فى الحيض، الفصل الأول، النوع الرابع فى حكم الصلاة والصوم الخ، رقم الحديث: ۵۴۰۵، ۳۵۶/۷.

[5] عمدة القاري: ۴۶/۳؛ المغنی لابن قدامة: ۱۸۸.

[6] المجموع شرح المهذب: ۳۴۵/۲؛ فتح الباري: ۵۳۴/۲؛ عمدة القاري: ۳۹۹/۳؛ معارف السنن: ۵۰۵/۱-۵۰۴.

(یعني د شکرلګونکي او چاله چه لګوی روژه نه کیږی) کښې اشاره ملاویږی څکه چه د جنبي حاجم او محجوم روژه في نفسه صحیح وی مګر د جنابت اوفعل د حجامت د وجې نه یقیناً په ثواب کښې کمې واقع کیږی کوم چه په حدیث کښې افطارصوم سره تعبیر کړې شوې دې.
ددې مثال داسې دې لکه چه غیبت افطار صوم ګرځولې شوې دې څکه چه غیبت د روژې دپاره افطار معنوی یعنی معناً اکل الحم دې سره ددې چه حساً نه دې د کوم په وجه چه په ثواب کښې کمې واقع کیږی اوهم دا افطارصوم سره تعبیر کړې شوې دې. غرض دا لکه څنګه چه دغیبت کولود وجې نه په معنوی توګه کمې راځي سره ددې چه په فقهي اعتبار سره نه راځي دغه شان زما په نیز په عدم طهارت سره معنوی اوباطني نقص په هرعبادت کښې راځي او هم د ټولو عبادتونوکمال د طهارت مقتضي دې. لهذا لکه څنګه چه حدث د مونځ منافي دې د صوم هم منافي دې. دا جدا خبره ده چه د منافات نوعیت جدا جدا دې.(1)
د حضرت شاه صاحب رحمه الله دمذکوره تحقیق تائید ملك العلماء علامه کاساني رحمه الله صاحب بدائع نه هم ملاویږی څکه چه هغوی لیکلي دی د جنبي روژه صحیح اود حیض اونفاس والانبځې غیرصحیح څکه ده چه د حیض اونفاس حالت دحدث نه زیات اشد واغلظ دې.(2)
ددې نه تائید په دې معنی دې چه د عدم طهارت په مراتب باندې هم نظر کیدل پکاردی مثلاً یوعدم طهارت حدث اصغردې چه مونځ خونه شی کولې مګر قرآن مجید زباني یعني په یاد سره لوستلې شی او په جمات کښې هم داخلیدې شی. دویم حدث اکبر (جنابت) دې چه تلاوت هم نه شی کولې نه جمات ته تلې شی مګر روژه ساتلې شی. دریم عدم طهارت حالت د حیض اونفاس دې کوم چه د جنابت نه زیات هم دې چه په کښې روژه هم صحیح نه ده.(3)
**دقضاءصوم اوعدم قضاء صلاة په تعلیل کښې د فقهاؤ اختلاف:** دحضرات فقهاء کرام رحمهم الله په قضاء صوم اوعدم قضاصلوة علت کښې اختلاف دې. امام الحرمین شافعي رحمه الله فرمائي چه مونږ ددې فرق وجه نه پیژنو چه صرف د قضاء صوم حکم ولې دې خو چونکه د شریعت حکم دې په دې وجه ددې اتباع بغیرد ادراك فرق هم ضروري دې. هم دغه شان قول د ابوالزناد رحمه الله نه هم نقل دې هغوی فرمائي: «إن السنن ووجوه الحق لتأتي کثیرا علی خلاف الرأي فما یجد المسلمون بدا من اتباعها، من ذلك: الحائض تقضي الصوم دون الصلاة»
یعنی ډیر شرعي احکام خلاف رائې هم وی په هغې باندې عمل کولونه بغیرمسلمانانوسره بله هیڅ لارنه وی، هم ددغې نه یوحکم د حائضه د روژې قضاء کول اودمونځونو قضاء نه کول دی.
امام نووی رحمه الله فرمائي چه امام الحرمین او ابوالزناد رحمهما الله ذکر کړې شوې قول په حقیقت کښې قضاء صوم او عدم قضاء صلوة کښې د فرق نه کولو اعتراف دی.(4) صاحب د بدائع علامه کاساني رحمه الله فرمائي چه شرعاً سختي او مشقت اوچت کړې شوې دې څکه چه اول خو ښځې پخپله ضعیف الخلقت او کمزورې وی بیا د حیض اونفاس د وینې جاري کیدو د وجې نه نوره هم کمزوري پیداکیږی نوکه په داسې حالت کښې روژې هم ضروري کړې شوې وې نو په هغوی باندې به ډبل مشقت راغلې

---

1) فیض الباری: ۳۷۸/۱أنوار الباري: ۳۹۹/۱۰.

2) بدائع الصنائع: ۳۰۳/۱.س

3) أنوار الباري: ۳۹۹/۱۰.

4) المجموع شرح المهذب: ۳۴۵/۲معارف السنن: ۵۰۳/۱

وي په دې وجه ښځې د حيض په حالت کښې د دغه فريضه نه خلاصې کړې شوې دی په خلاف د جنبي چه دهغه په روژه ساتلوسره هيڅ تنګی اوسختی نه وی. په دې وجه په جنبي باندې دواړه ﴿مونځ او روژې﴾ قضاء لازم وی خو حائضه اونفساء د مونځونو قضاء نه کوی ځکه چه دمونځونو د ډيروالی د وجې نه دهغې په قضاء راوړلوکښې تکليف دې اوحرج اوتکليف شرعاً مدفوع دې او په ټول کال کښې د دريو يا لسو ورځو روژو قضاء کښې هيڅ حرج نشته دې. په دې وجه به د روژو قضاء لازم وی.
دويمه وجه صاحب د بدائع هم دغه ذکرکړې ده چه نص غيرمعقول المعنی دې لهذا د روژو قضاء به خلاف قياس لازمی وی.(١) امام نووی رحمه الله اوعلامه عينی رحمه الله فرمائی چه مونځونه خو ډير قضاء کيږی او په قضاء کښې مشکلات هم ډير دی په دې وجه معاف شو. خو روژې په ټول کال کښې يوځو قضاء کيږی په دې وجه د دې د قضاء ادا کولوحکم اوشو ځکه چه ددې په قضاء کښې سختی هم نشته.(٢)
امام نووی رحمه الله نور فرمائی ددې فرق چه کوم تعليل مونږ ذکرکړې دې هغه ډير موزون او مناسب دې په دې وجه باندې په دې باندې اعتماد کول پکاردی. وړاندې فرمائی چه امام شافعی رحمه الله د مونځ د فرضيت په ساقط کيدو باندې د يوبل دليل نه استدلال کړې دې. هغوی فرمائی چه هرمکلف سړی ته دهغه په حسب حال ﴿سفر وی که مرض وی﴾ د مونځ کولوحکم ورکړې شوې دې خو حائضه د مکلف کيدو سره په مونځ کولوباندې ماموره نه ده دکوم نه چه معلومه شوه لکه په دې چه مونځ هډو فرض نه دې. بل د مونځ په شان د جنازې مونځ د تلاوت سجده د شکر سجده هم په حائضه او نفساء په حق کښې ممنوع اوحرام ده ځکه چه ددې ټولو دپاره طهارت د شرط په توګه بيان کړې شوې دې.(٣)
البته مستحب دادی چه د هرمونځ په وخت کښې دې اودس اوکړی د مونځ په ځائی کښې دې د مونځ کولو په اندازه سره کينی اوتسبيح تحميددې کوی چه هغه د عبادت عادت ئې باقی پاتې شی.(٤)
**د قران پاک دتلاوت حکم:** د حائضه اونفساء په حق کښې تلاوت د قرآن پاک ممنوع اوحرام دې سره ددې چه د يو آيت نه هم کم وی. صاحب دهدايه قاضی خان او امام کرخی رحمهم الله هم دا قول صحيح ګرځولې دې خو امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه په اراده د تلاوت د آيت نه کم مباح دې اودا قول صاحب د خلاصه امام طاهر بن عبدالرشيد رحمه الله صحيح ګرځولې دې.(٥)
**دامام طحاوی رحمه الله د کلام توجيهات:** صاحب د محيط علامه برهان الدين محمود بن احمد رحمه الله د امام طحاوی رحمه الله د قول دا توجيه ليکلې ده چه د آيت نه کم کښې د نظم اومعنې دواړو په لحاظ سره کمې دې په دې وجه سره په دې مونځ هم نه صحيح کيږی او په عام محاوراتوکښې هم داسې جملې په ژبه باندې جاری کيږی. لهذا په دې کښې د قرآن نه کيدو شك پيدا شوې دې وجه د يوآيت نه د کم تلاوت کولې شی.(٦)

---

(١) بدائع الصنائع: ٣٠٣/١.

(٢) المجموع شرح المهذب: ٣٥١/٢عمدة القاری: ٤٤٦/٣.

(٣) شرح المهذب: ٣٥٣/٢-٣٥٢.

(٤) البحرالرائق: ٣٣٦/١رسائل ابن عابدين، الرسالة الرابعة: ١١٠، عمدة القاری: ٤٤٧/٣.

(٥) رسائل ابن عابدين: ١١٠، الفتاوی الهنديه: ٤٣/١البحرالرائق: ٣٤٦/١-٣٤٥معارف السنن: ٥٠٨/١خلاصه الفتاوی کتاب الصلاة الفصل الحادی عشر فی القراءة: ٩٣/١ مکتبة رشيديه.

(٦) المحيط البرهانی فی الفقه النعمانی: ٢٩٨/١دارالکتب العلمية.

علامه انورشاه کشمیري رحمه الله اوفرمائیل چه غالباً د آیت نه د کم جواز په دې وجه دې چه د الله تعالی د کلام اعجازي اړخ په آیت کښې ښکاره کیږي که هغه د وړوکې نه وړوکې آیت ولې نه وي او هم په دې وجه د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مونځ فرض په دې سره اداکیږي. لهذا دیوآیت نه د کم جواز د دې معجزه یعنی د اعجازي کلام نه کیدو د سبب نه دی.(۱)

علامه انور شاه کشمیري رحمه الله د امام طحاوي رحمه الله د قول توجیه بیانولونه پس لیکی چه امام طحاوي په دې باندې متنبه فرمائیلی ده چه د آیت نه کم اومفردات قرآن خونه قرآن دې اونه د قرآن په حکم کښې دې. لهذا د جنابت په حالت کښې یا د حیض اونفاس په حالت کښې د هغې لوستل او لاس لګول جائز دی. یقیناً که امام طحاوي رحمه الله دې طرف ته لاړ خودنه نه وې کړې نو مونږ به هم حیران پاتې وو چه د آیت نه کم قرآن دې اوکه نه؟ ځکه چه په سر سري لحاظ سره ذهن هم دې طرف ته ځی چه د دې دوو ګټو په مینځ کښې موجود هر یو لفظ قرآن دې. البته د آیت نه کم ته به "إنه من القرآن" (یعنی داد قرآن نه دې) یا "جزء من القرآن" (د قرآن جزدې) وئیلې شي.

خلاصه داده چه داعجاز قرآنی تحقق کامل به د آیت په صورت کښې وی اوترکومې چه کلمات یوکامل آیت نه وی نودا به معجز هم نه وی. په دې وجه کلمات مفرده وغیره ته "من کلام الله" (داد الله تعالی د کلام نه دې) خو وئیلې شي مګر عین کلام الله ورته نه شي وئیلې اوداسې به د دې درجه د عین قرآن د درجې نه کمه شي.(۲)

ذکرکړې شوې تفصیل هغه وخت دې چه کله په اراده د قرآن اولوستلې شي، که چرې په اراده د ثناء یا په اراده د افتتاح اولولی نود صحیح روایت موافق دا ممنوع نه دې. چنانچه په دې باندې اتفاق دې چه تسمیه په اراده د افتتاح لوستل منع نه دی. دغه شان فاتحه په توګه د دعا لوستلوکښې یا نور قرآنی آیاتونه په کوم کښې چه د دعا والا معنی وی په لوستلوکښې څه حرج نشته مګر هندواني رحمه الله د دې تردید کړې دې.

دا تردید په شان د فاتحه کښې خو واضح دې ځکه چه اباحت غیرقرآن کیدو کښې دې خود فاتحه قرآن کیدل حقیقتاً هم دی او حکماً هم، لفظاً هم دې اومعناً هم ځکه چه دا کلام معجز دې. په داسې معنی چه دې سره چیلنج هم کیدې شي اوددې په شان د پیش کولونه هرقسم عجز هم یقیني دې. د دې دپاره په قصد مجردسره د دې قرانیت نه شي ختمولې په خلاف د الحمدلله چه دا په اراده د ثناء لوستل جائز دې.ځکه چه په دې کښې خصوصیت قرآنی غیر لازم دې اوپه فاتحه کښې لازم او قطعي دې.

چنانچه د خبرو اترو دوران کښې په ژبه باندې جاري کیدونکی وړوکی آیاتونه لکه ﴿ثُمَّ نَظَرَ﴾ او ﴿وَلَمْ يُوْلَدْ﴾ وغیره لوستل منع نه دی.(۳)

**د ذکراو اذکارحکم:** ترکومې چه د ذکراذکارتعلق دې نود حائضه نفساء اوجنبی دپاره د دې لوستل مطلقاً جائز دی اوهم په دې کښې دعا قنوت هم داخل ده سره ددې چه دامام محمد رحمه الله نه ددې د

---

۱) فیض الباري: ۱/۳۷۹أنوارالباري: ۱/۴۰۵.

۲) فیض الباري: ۱/۳۷۹.

۳) البحرالرائق: ۱/۳۴۶معارف السنن: ۱/۵۰۹.

كراهت يوقول نقل دي ځكه چه په دې كښې د قرآن كيدو شك دې. مګر د دعا قنوت د قرآن نه كيدو باندې اجماع قطعي شوې ده په دې وجه د دغه شبه هيڅ اعتبارنشته دې.[1]

**مصحف ته د لاس لګولو حكم:** د حائضه اونفساء دپاره قرآن كريم ته لاس لګول ممنوع اوحرام دى البته د قرآن كريم نه علاوه نور كتابونه لكه كتب تفسير، حديث، فقه، متفرق پاڼرې او الواح اودراهم وغيره كښې چرته چه آيات ليكلې شوې وى هغه ځائى باندې لاس لګول جائزنه دى دې نه علاوه نورې حصې ته لاس لګول جائز دى. بل هغه غلاف كوم چه د قرآن كريم نه جدا وى دهغې په ذريعه يا د نورې كپړې په ذريعه قرآن كريم اوچتول او لاس لګول جائز دى. البته كه يوه كپړه وراغوستې شوې وى لكه لوپټه قميص وغيره نودهغې په ذريعه لاس لګول او قرآن نيول جائزنه دى. هغه څيزونه په كوم كښې چه ذكرونه او دعاګانې ليكلې شوې وى هغې ته لاس لګول هم جائز دى البته بهتر اومستحب په دې كښې او كتب تفسير حديث اوفقه كښې دادى چه بغيراودس نه ورته لاس اونه لګولې شى.[2]

**جمات ته دداخليدلو حكم:** دحائضه نفساء دپاره جمات كښې داخليدل منع اوحرام دى كه هغه د تيريدو په اراده وى يا د حصاريدو په اراده وى البته د ضرورت په وخت جائز دى لكه د يوځناور يا ځاروى يا غل يا يخنئى يا تندې د ويرې نه، ليكن اولى اوبهتر په دې صورت كښې دادى چه تيمم كولو سره دې داخل شى.[3]

**د طواف حكم:** د حائضه او نفساء دپاره طواف كول حرام اومنع دى ليكن كه وئى كړو نوصحيح خو به شى مګر ګناهګاره به وى او كفاره به هم لازم وى. لهذا د طواف زيارت په صورت كښې بدنه واجب وى او په نورو طوافونو كښې به دم واجب وى.[4]

﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ﴾ (ترجمه اوتشريح يسير) بيا چه كله هغه (ښځې) په ښه شان سره پاكې شى (چه د ناپاكئى شك شبه پاتې نه شى) نوهغوى له ورځئى (يعنى هغوى سره كوروالې كوئى) د كوم ځائى چه تاسو ته الله تعالى اجازت دركړې دې (يعنى: د مخكښې نه).[5]

امراتيان، امر اباحت دې كوم چه د جماع اوصحبت نه كنايه دې اولفظ من د في په معنى كښې دې لكه چه آيت ﴿أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا مِنَ الْأَرْضِ﴾ او آيت مبارك ﴿إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ﴾ أي: في يوم الجمعة كښې من، دفي په معنى كښې دې. اصم د دې جز معنى داسې بيان كړې ده چه تاسو دغه ښځوله په داسې حالت كښې راشئى په كوم حالت كښې چه تاسو ته د راتلو حكم دې. يعنى چه نه تاسو د روژې په حالت كښې ئى نه مو احرام تړلې وى اونه معتكف ئى (ځكه چه په دې حالتونو كښې جماع ناجائز ده).

ابن عباس رضي الله عنهما ابورزين او امام ضحاك رحمهما الله فرمائى: ((مِن قِبَل الطهر، لامن قبل الحيض)) يعنى دوى سره په طهر كښې صحبت كوئى نه چه په حالت د حيض كښې. محمد بن الحنفيه رحمه الله فرمائى چه معنى داده په حلاله طريقه سره راځئى نه چه د زنا په طريقه سره.[6]

---

[1]) البحرالرائق: ۱/۳۴۷-۳۴۶معارف السنن: ۱/۵۰۹ه

[2]) البحرالرائق:۳۴۸، ۱/۳۵۰.

[3]) رسائل ابن عابدين ص: ۱۱۳.

[4]) رسائل ابن عابدين ص: ۱۱۳ الفتاوى الهندية: ۱/۴۳.

[5]) بيان القرآن للتهانوى: ۱/۱۴۶.

يوڅوکربنې وړاندې داخبره تيره شوې ده چه ﴿فَأْتُوهُنَّ﴾ امر اباحت دې اود جماع يعنې اتيان فی القبل نه کنايه ده. ددې وجه داده چه الله تعالی ښځې د حرث موضع ګرځولوسره دوی له د پټی سره تشبيه ورکړې ده لکه څنګه چه پټې د تخم اچولو نه پس د غلې د پيداوار مرکزدې دغه شان ښځې هم د نطفه حصاريدونه پس د اولاد د پيدائش مرکزدې. د الله تعالی ارشاد دې ﴿نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ﴾ ستاسو بيبيانې ستاسو دپاره په منزله د پټی دی اوچونکه داولاد پيدائش هم د فرج په لاړ ممکن دې په دې وجه ايتان فی القبل متعين دې او إيتان فی الدبر حرام دې.[2]

**قوله:: إيتان المرأة فی الدبر:** د ښځوسره په دبرکښې وطی کولوپه سلسله کښې حضرات حنفيه حنابله اوجمهورو اهل سنت رحمهم الله مسلك دادې چه دا بد کار حرام دې. د امام شافعی رحمه الله نه په دې مسئله کښې دوه قوله نقل دی. په شروع کښې امام شافعی رحمه الله د جواز قائل وو. چنانچه ابن الحکم رحمه الله د امام شافعی رحمه الله نه نقل کوی «لم يصح عن رسول الله صلی الله عليه وسلم فی تحريمه ولا فی تحليله شیء، والقياس أنه حلال» د حضورپاك نه ددې «إيتان المرأة فی الدبر» د حلت يا حرمت په حواله سره څه خبره په صحت سره نقل نه ده اود قياس تقاضاده چه دا فعل دې حلال وی. څکه چه امام شافعی رحمه الله «إيتان المرأة فی الدبر» په «وطی فی الساقين» باندې قياس کولو.

امام حاکم رحمه الله د ابن عبدالحکم رحمه الله نه د امام شافعی رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په مينځ کښې په دې مسئله کښې کيدونکې مناظره هم نقل کړې ده. په کوم کښې چه د ابن عبدالحکم رحمه الله د بيان مطابق امام شافعی رحمه الله د امام محمد رحمه الله دمستدل ﴿نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ ۖ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ﴾ چه موضع حرث صرف فرج دې په جواب کښې فرمائی چه بياخوصرف هم په فرج باندې اکتفا کول پکاردی. ولې «وطی فی ساقيها» يا «يديها» کښې "حرث" شته؟ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل چه نه. امام شافعی رحمه الله اوفرمائيل چه آيا دا فعل هم حرام دې؟(څکه چه موضع حرث دلته هم موجود نه دې) نو امام محمد رحمه الله اوفرمائيل چه نه، نو امام شافعی رحمه الله اوفرمائيل «فکيف تحتج بما لا تقول به؟» بيا تاسو ددا سې خبرې نه څنګه استدلال کوئی د کوم چه تاسو په خپله قائل نه ئی؟[3]

ابن عبدالحکم رحمه الله خو دامام شافعی رحمه الله حجت مکمل ذکرکړې مګر د امام محمد رحمه الله په حجت کښې د تساهل نه کار اخستې دې ګنی د يوامام او مجتهد مقام ددې نه زيات اوچت دې چه هغه د يوکمزوری قياس جواب ورنه کړې شی څکه چه خبره بالکل واضحه ده چه په عرف کښې غير فرج او دبر کښې امناء (منی خارج کول) جماع او وطی هډو ګنړلې نه شی په دې وجه په غيرفرج او دبرسره خو

---

[1] أحکام القرآن للقرطبی: ۳/۹۱-۹۰التفسير المظهری: ۲۸۰/۱تفسير ابن کثير: ۵۲۳/۱أحکام القرآن للجصاص: ۴۲۵/۱التبيان فی إعراب القرآن: ۱۸۷/۱.

[2] أحکام القرآن للقرطبی: ۹۳/۳أحکام القرآن للجصاص: ۴۲۵/۱روح المعانی:۷۰۷/۱ دارإحياء التراث العربی التفسير المظهری: ۲۸۰/۱.

[3] التفسير المظهری: ۲۸۱/۱-۲۸۰ أحکام القرآن للجصاص: ۴۲۶/۱أحکام القرآن للتهانوی: ۴۲۱/۱روح المعانی: ۷۰۸/۱تفسير ابن کثير: ۵۳٤/۱.

په آيت كريمه كښې هيڅ تعارض نشته بلكه په آيت كښې خو فرج او دبر نه د غير موضع حرث حرمت بيان كړې شوې دې. د كوم نه پس چه موضع حرث يعنى قبل خپل پخپله متعين كيږي. (١)

بل وطى فى الدبر كه هغه سرې سره وى او كه ښځې سره چونكه ددې د اباحت هيڅ ضرورت نشته په دې وجه دعلت استقذار د وجې نه دواړه حرام دى او وطى فى القبل اباحت اود نسل زياتيدود وجې نه ضرورى وو په دې وجه دا حلال دى (سواد حيض اونفاس د حالت نه) او وطى فى الساقين أوالفخذين كښې د استقذار څه علت نشته دې په دې وجه دا حرام هم نه دى. (٢)

ابونصر الصباغ رحمه الله فرمائى چه امام ربيع رحمه الله حلفاً به فرمائيل چه ((لقد كذب -يعنى: ابن عبدالحكم- على الشافعى فى ذلك، فإن الشافعى نص على تحريمه فى ستة كتب من كتبه)) ترجمه: تحقيق ابن عبدالحكم دامام شافعى رحمه الله طرف ته د روغو نسبت كړې دې خكه چه پخپله دامام شافعى رحمه الله نه د هغه په كتابونو كښې د شپږو كتابونونه د دې په حرمت باندې نص موجود دې. (٣)

ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله د امام ربيع رحمه الله دا فيصله غلطه ګرخولې دې. خكه چه ابن عبدالحكم د امام شافعى رحمه الله نه په دې نقل كښې متفرد نه دې بلكه د هغه رور د هغه متابعت كړې دې. لهذا د تحقيق نه هم دا خبره ثابتيږى چه دامام شافعى رحمه الله نه دواړه قوله نقل دى. دويم قول دكوم طرف ته چه هغه رجوع كړې ده اود جمهورو موافقت ئې كړې دې هغه دتحريم قول دې. (٤)

دغه شان دامام مالك رحمه الله نه امام حاكم، خطيب بغدادى او دارقطنى رحمهم الله په مختلف طرق سره داسې روايات نقل كړى دى په كوم كښې چه دامام مالك رحمه الله نه د جواز قول نقل دې مګر ابن كثير رحمه الله فرمائى چه د دغه رواياتو په اسناد كښې سخت ضعف دې خو بل طرف ته پخپله دامام مالك رحمه الله د جمهورو په موافقت كښې اود هغه (امام مالك رحمه الله) طرف ته د جواز قول منسوب كونكو تكذيب هم نقل دې. چنانچه معمر بن عيسى رحمه الله د امام مالك رحمه الله نه نقل كوى چه ((إن ذلك حرام)) يعنى داسې كول حرام دى.

دغه شان ابوبكر بن زياد نيشاپورى رحمه الله فرمائى چه ماته اسماعيل بن حسين اودهغوى نه اسرائيل بن روح رحمه الله دا خبره بيان كړې چه ما (اسرائيل بن روح) د امام مالك رحمه الله نه تپوس اوكړو چه تاسو ((إتيان النساء فى أدبارهن)) باره كښې څه فرمايئى؟ نوهغوى په جواب كښې اوفرمائيل ((ما أنتم إلا قوم عرب هل يكون الحرث إلا موضع الزرع؟ لا تعدوا الفرج)) يعنى تاسو خو خالص عربى خلق ئى (بنه ده داخو اوبنايه) آيا د فصل د خائى، د دانه كرلو د خائى نه علاوه هم كيږى؟ (يعنى هيڅ كله نه كيږى) نو د فرج نه تجاوز مه كوئى. اسرائيل بن روح رحمه الله اوفرمائيل چه خلق خودا وائى چه تاسو دجواز قائل يئى نو وئى فرمائيل

---

(١) روح المعانى: ٧٠٨/١أحكام القرآن للتهانوى: ٤٢٢/١-٤٢١.

(٢) التفسير المظهرى: ٢٨١/١.

(٣) تفسير ابن كثير: ٥٣٤/١.

(٤) التفسير المظهرى: ٢٨١/١أحكام القرآن للتهانوى: ٤٢٢/١.

«يكذبون علي، يكذبون علي» داخلق په ما دروغ وائي، دا خلق په ما دروغ وائي. علامه ابن كثير رحمه الله فرمائي چه «فهذا هو الثابت عنه» يعني هم دغه د امام مالك رحمه الله نه په صحيح توګه ثابت دی. (١)

د إتيان في الدبر په حرمت باندې ډير احاديث هم نقل دي. علامه ابن قيم جوزي رحمه الله فرمائي چه دا روايات او احاديث د صحابه كرامو رضي الله عنهم يو لوئي جماعت روايت كړی دی. په كوم كښې چه حضرت عمر بن الخطاب، علي بن ابي طالب، خزيمه بن ثابت، ابوهريره، ابن عباس، عبدالله بن عمر، ابن مسعود، عقبه بن عامر، براء بن عازب، طلق بن علي، ابوذر او جابر بن عبدالله رضي الله عنهم شامل دي.

قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله دا ټول روايات او په دې باندې چه كوم كلام دې دهغې د ذكركولو نه پس فرمائي سره ددې چه دا روايات ضعيف دی ليكن بعض ته په بعض باندې تقويت حاصليږي او په دې سره علم قطعي حاصليږي چه د حضورپاك نه په دې امر كښې ممانعت راغلي دې په داسې توګه چه د دې رد كونكي څه څيز نشته. لهذا هم دا د حرمت قول اختيارول واجب دی. والله اعلم. (٢)

كوم حضرات چه د جواز قائل دی هغوی د ابن عمر رضي الله عنهما ددې صحيح روايت نه استدلال كوی چه دهغوی نه په مختلف طرق سره نقل دې چه آيت ﴿نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ﴾ ښځوسره په دبركښې د جماع باره كښې نازل شوې دې. هم دغه شان په المعجم الكبير كښې په جيد سندسره هم د ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دی چه آيت (مذكوره) جماع في الدبر دپاره په توګه د رخصت نازل شوې. (٣)

قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمائي چه داد ابن عمر رضي الله عنهما وهم دې اوهغوی د آيت صحيح تاويل كولوكښې غلطي كړې ده ځكه چه كه سبب نزول هم دا اوګرځولې شي نو بيابه د آيت حكم اوواقعه يا سبب نزول كښې مطابقت پاتې نه شي ځكه چه حكم آيت موضع حرث يعنی د قبل په لار راتلل دی نه چه په دبركښې ځكه چه دبركښې موضع حرث نه دې.لهذا آيت مبارك په هيڅ شان سره هم اباحت «إتيان في الدبر» دپاره حجت نه شي جوړيدې.

بعض حضراتو فرمائيلي چه دا وهم اوغلطي د ابن عمر رضي الله عنهما نه بلكه دهغوی نه روايت كونكي حضرت نافع رحمه الله غلطي اودهغوی وهم دې. وجه داده چه كله عبدالله بن حسن رحمه الله د سالم بن عبدالله رحمه الله نه تپوس اوكړو چه داحديث څنګه دې چه مونږ ته نافع رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت كولوسره بيانوی چه ابن عمر رضي الله عنهما به په دبركښې په جماع كولوسره هيڅ حرج نه ګڼړلو؟ نو سالم بن عبدالله رحمه الله اوفرمائيل:

«كذب العبد وأخطأ، إنما قال عبدالله: يؤتون في فروجهن من أدبارهن»

چه دغلام نه په پوهيدلو كښې غلطي شوې ده ځكه چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما خودا فرمائيلي وو چه د ښځو فرج كښې د شاد طرف نه راتللوسره هم جماع كولې شي. (دكوم په پوهيدلو كښې چه د نافع رحمه الله نه غلطي شوې ده). مګرقاضي صاحب رحمه الله فرمائي چه دسالم رحمه الله داخبره صحيح نه معلوميږي ځكه چه حضرت نافع رحمه الله په دې كښې ځان له نه دې بلكه دهغوی نه علاوه نورو حضراتوهم د ابن عمر رضي الله عنهما نه دا حديث روايت كړې دې. كذا ذكر الشيخ ابن الحجر رحمه الله لهذا صحيح هم دغه دی چه د ابن عمر رضي الله عنهما

---

(١) تفسير ابن كثير: ١/٥٣٤-٥٣٣أحكام القرآن للتهانوی: ١/٤٢٣.

(٢) التفسير المظهری: ١/٢٨٣-٢٨١أحكام القرآن للقرطبي: ٣/٩٥حاشية تفسير ابن كثير: ١/٥٣٣.

(٣) تفسير الطبری: ٤/٤٠٤ رقم الحديث: ٤٣٢٥ المعجم الأوسط للطبرانی: ٤/١٤٥-١٤٤ رقم الحديث: ٤٥٢٦. واضحه دې وی چه تفسير طبری كښې دا روايت (نزلت في إتيان النساء في أدبارهن) الفاظوسره نقل دی مګر بخاری شريف كښې صرف (أنزلت في كذا وكذا) الفاظ دی كوم چه په دبركښې د جماع كولوپه جوازكښې صريح نه دی.

وهم دي. چنانچه ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه: «إن ابن عمر-والله يغفرله-قد أوهم» تحقيق ابن عمر رضي الله عنهما ته وهم شوې الله تعالى دې دهغوی مغفرت اوفرمائي. (١)

ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه د آيت د نزول سبب په حقيقت کښې دادې چه انصارد مدينې ترډغه وخته پورې مشرکان وو او يهود اهل کتاب به په يوځائې نيزدې نيزدې اوسيدل. انصارو به يهود اهل کتاب ته په خپل ځان باندې په علم کښې فضيلت ورکولو او په ډيرو کارونو کښې به ئې دهغوی مننه کوله. د جماع په حواله سره د يهودو طريقه کار دا وو چه هغوی به خپلو ښځوسره په يوطرف کوروالې کولو نو انصاروهم دغه طريقه اختيارکړه. خو قريشو به په جماع کښې مختلف اندازونه اختيارول. کله چه د مهاجرينو مدينې طيبې ته راتګ شروع شو اود انصارو ښځوسره هغوی ودونه اوکړل نو په خپلو مختلف انداز او طريقوسره ئې جماع کول شروع کړه کوم چه د انصارو ښځو ناخوښه کړل اود خاوند د تابعدارئې نه ئې انکاراوکړو. کله چه داخبر رسول الله ﷺ ته اورسيدو نو په دې موقع باندې دا آيت مبارك نازل شو.

دغه شان مسنداحمد او ترمذي (٢)کښې د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه حضرت عمر رضي الله عنه د حضور پاك په خدمت کښې حاضرشو اوعرض ئې اوکړو اې د الله رسول ﷺ زه هلاك شوم. حضورپاك تپوس اوکړو ته څه څيز هلاك کړې؟ نو حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل «حولت رحلي الليلة» ما د شپې کجاوه اولټه کړه.نوحضورپاك جواب ورنه کړو تردې چه الله تعالى دا آيت مبارك نازل کړو نو حضورپاك اوفرمائيل«أقبل وأدبر واتق الدبر والحيضة»يعنې که غوارې د مخې په لار راشه ياد شانه د وراندې لار طرف ته راشه (بس) د دبر او حيض د حالت نه ځان اوساته. حضورپاك چه څنګه د ﴿فَاعۡتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الۡمَحِيۡضِ﴾ تفسير «اصنعواكل شيء إلا النكاح» سره اوکړو اود آيت حقيقي معنى او حقيقي مراد ئې واضح کړو هم دغه شان ﴿نِسَآؤُكُمۡ حَرۡثٌ لَّكُمۡ فَأۡتُوۡا حَرۡثَكُمۡ أَنّٰى شِئۡتُمۡ﴾ تفسير په خپل ارشاد «أقبل وأدبر واتق الدبر والحيضة» سره اوفرمائيلو اودآيت حقيقي مطلب ئې پخپله واضحه کړو ګنې د رومبي آيت ظاهر حالت دحيض کښې بالكليه ځان ساتل اود دويم آيت ظاهر په تعميم مواضع باندې دلالت کوي. (٣)

علامه ابن کثير، علامه قرطبي او نورو مفسرينو حضراتو په دې مقام باندې تفصيلي بحث کړې دې. دهغه ټولو خلاصه داده چه دابن عمر رضي الله عنهما نه د جواز قول اوقول حرمت دواړه نقل دی مګر راجح او صحيح قول د حرمت دې چه د جمهور صحابه کرام رضي الله عنهم د مذهب موافق دې. دغه شان کوم ځائې چه په دې مسئله کښې د امام مالك رحمه الله نه د جواز قول نقل دې هم هلته د جمهورو په مطابقت کښې قول تحريم هم نقل دې او امام مالك رحمه الله دهغه خلقو تکذيب کړې دې چاچه دهغوی طرف ته د جواز نسبت کړې دې. پاتې شوه خبره د امام شافعي رحمه الله نودهغوی طرف ته د جوازو نسبت صحيح نه دې ځکه چه د امام شافعي رحمه الله په شپږو کتابونو کښې ددې په حرمت باندې نص موجوددې. (٤) والله اعلم.

---

(١) سنن أبي داؤد كتاب ا لنكاح باب في جامع النكاح، رقم الحديث: ٢١٦٤.

(٢) جامع الترمذي أبواب تفسيرالقرآن، باب: ومن سورة البقرة رقم الحديث: ٢٩٨٠مسندالإمام أحمد،مسندعبدالله بن عباس رضي الله عنهما ٧٦١/١ رقم الحديث:٢٧٠٣.

(٣) التفسير المظهري: ٢٨٤/١-٢٨٣تفسير ابن كثير: ٥٣٤/١أحكام القرآن للقرطبي: ٩٥/٣-٩٣أحكام القرآن للتهاوي: ٤٢٣/١-٤٢٠.

(٤) تفسير ابن كثير:٥٣٤/١أحكام القرآن للقرطبي: ٩٥/٣-٩٣أحكام القرآن للتهانوي: ٤٢٣/١-٤٢٠.

# ١-باب: كَيفَ كَانَ بَدْءُ الحَيْضِ، وَقَوْلِ النَّبِيِّ ﷺ (هٰذَا شَيْءٌ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ)

باب: أي: هذا باب. لفظ باب مرفوع دې اومبتداء محذوف هذا دپاره خبردې. لفظ باب د تنوين سره هم لوستلې شی اود مابعدطرف ته اضافت سره هم لوستلې شی. لفظ باب په اصل کښې بَوَب وو واؤ متحرك ماقبل مفتوح كيدو د وجې نه واؤ په الف سره بدل كړې شو نو باب شو. جمع أبواب او أبوبة راځى او باب نه مراد نوع دې لكه چه «من فتح باباً من العلم» كښې لفظ باب د نوع په معنى كښې دې، أي: نوعاً من العلم.

لفظ كيف اسم دې ځكه چه په دې باندې حرف جر بلاتاويل داخليږی لكه «على كيف تبيع الأحمرين» د كيف اعراب دادی چه دلته كيف حال واقع شوې دې تقديری داسې دې: «على أي حالة كان ابتداء الحيض» چه د حيض شروع څنګه او په كومه توګه اوشوه.

كان د افعال ناقصه نه دې كوم چه د ماضى په زمانه باندې دلالت كوی اودې خبرې تعرض او بحث نه كوی چه په زمانه د حال كښې فعل يوشان باقی دې كه نه؟ هم ددې نه لفظ كان د لفظ صار نه ممتاز كيږی ځكه چه ددې معنى د يو حالت نه بل حالت ته د وربدليدلو ده. هم دغه وجه ده چه «كان الله» وئيل جائز او «صار الله» ناجائز دی.

لفظ بدء دوه شان دې: البدء، بفتح الباء وسكون الدال وفي آخره همزة، په معنى د شروع دې او البدو، بضم الباء والدال وتشديد الواؤ په معنى د ظهور دې.(۱) كه چرې دلته لفظ بدء دې نوددې معنى ده چه د حيض شروع څنګه اوشوه اوكه چرې بدو دې نود دې معنى ده د حيض ظهور څنګه اوشو. دا دريم باب دې كوم چه امام بخاری رحمه الله كيف كان نه شروع كړې دې.(۲)

**د ترجمة الباب مقصد اود علامه انورشاه كشميری m رائې:** علامه انورشاه كشميری رحمه الله فرمائی چه ددې ترجمة الباب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد دلته هم د بدء الوحي په شان دې يعنى اول داخودل دی چه د جنس حيض وجوداو ظهور په دنيا كښې څنګه اوشو. اوبيا به مسائل اواحكام بيانولې شی. د حيض صرف د شروع احوال بيانول د بخاری رحمه الله مقصد نه دی.(۳)

بعض حضرات فرمائی چه د ترجمة الباب مقصد دادې چه امام بخاری رحمه الله په دې باب كښې د حيض د شروع په سلسله كښې د رواياتو په اختلاف باندې تنبيه فرمائيل غواړی چه آيا حيض د آدم عليه السلام د زمانې نه شروع شوې يا د دې شروع د بنی اسرائيلو نه شوې.(۴)

**د علامه شبيراحمدعثمانی رحمه الله رائې:** علامه شبيراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه د اما بخاری رحمه الله په دې باب كښې د حيض تاريخ خودل غواړی چه د حيض شروع د كوم وخت نه شوې.(۱)

---

۱) عمدة القاري: ۳/۲۷۸.

۲) الأبواب والتراجم: ۶۳الكنز المتواري: ۳/۲۴۶.

۳) فيض الباري: ۱/۴۸۶أنوار الباري: ۱۰/۳۵۱.

۴) الأبواب والتراجم: ۶۳الكنز المتواري: ۳/۲۴۶.

**د حيض تاريخ بيانولوضرورت ولې پيښ شو؟**: د حيض د تاريخ بيانولوضرورت په دې وجه پيښ شو خکه چه په دې سلسله کښې درې روايات دي. يو د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت دې کوم چه امام بخاري رحمه الله دلته تعليقاً ذکر کړې دې ددې روايت تقاضاداده چه دحيض شروع د حضرت آدم عليه السلام د زمانې نه شوې خو دويم او دريم روايت دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوحضرت عائشه رضي الله عنها قول دې کوم چه عبدالرزاق رحمه الله په خپل مصنف (٢)کښې روايت کړې دې. اوهم ددې طرف ته امام بخاري رحمه الله په خپل قول ((وقال بعضهم: کان أول الخ)) سره اشاره هم کړې ده. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه حافظ عبدالرزاق رحمه الله د ابن مسعود رضي الله عنه نه په سند صحيح سره روايت کړې دې چه:

((کان الرجال والنساء في بني إسرائيل يصلون جميعا، فکانت المرأة تتشرف للرجل، فألقي الله عليهن الحيض ومنعهن المساجد))يعنی دبنی اسرائيلوسړو اوښځو به يوځائی مونځ کولو نودهغوی ښځو سړو ته کتل شروع کړه دکوم په نتيجه کښې چه الله تعالی په هغوی باندې حيض مسلط کړو اوهغوی د جماتونود راتلونه منع کړې.

ددې دواړو موقوفه روايتونو ظاهردادې چه د حيض شروع د بنی اسرائيلود ښځونه شوې ده ددوی نه به وړاندې ښځو باندې حيض نه راتلو کوم چه د روايت مرفوعه د ظاهر نه خلاف دې. امام بخاري رحمه الله د محدثينو د اصولو په رڼا کښې مرفوع روايت ته په موقوف روايت باندې ترجيح ورکړه اوونئ فرمائيل((وحديث النبي صلى الله عليه وسلم أکثر)) چه د حضوراکرم صلى الله عليه وسلم حديث اشمل، يعنی ټولو ښځوته شامل دې. لهذا هم دې ته به ترجيح وی. خو علماء موجهين رحمهم الله پ دې روايتونوکښې د تطبيق کوشش کړې دې(٣)

**دعلامه داؤدي رحمه الله رائې**: چنانچه علامه داؤدي فرمائي چه په دې رواياتوکښې هيڅ تعارض اوتضاد نشته دې خکه چه نساء بنی اسرائيل هم دبنات آدم نه دی. په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل لکه چه ددې قول مطابق بنات آدم لفظاً خو عام دې مګردې نه مراد خاص د بنی اسرائيلو ښځې دی.

**د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې**: بيائی اوفرمائيل چه زما په نيزد تطبيق صورت دادې چه د حيض شروع خو هم داول نه وه مګر په نساء بنی اسرائيل باندې د سزا په توګه ددې مقدار زيات کړې شوې وو خکه چه امام طبري رحمه الله وغيره د ابن عباس رضي الله عنهما نه دحضرت ابراهيم عليه السلام د بی بی متعلق ارشاد باري تعالی ﴿وَامْرَأَتُهُ قَآئِمَةٌ فَضَحِكَتْ﴾ تفسير فحاضت سره روايت کړې دې او په دې کښې هيڅ شک نشته دې چه د حضرت ابراهيم عليه السلام زمانه د بنی اسرائيل د زمانې نه وړاندې وه. دغه شان امام حاکم رحمه الله او ابن المنذر رحمه الله په صحيح سندسره د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت کړې دې چه: ((إن ابتداء الحيض کان على حواء بعد أن أهبطت من الجنة)) يعنی بيشکه دحيض شروع د حضرت حواء عليها السلام نه شوې کله چه هغه د جنت نه دزمکې طرف ته راکوزه کړې شوې وه.(٤)

---

(١) فضل الباري: ٤٦٤/٢.

(٢) مصنف عبدالرزاق، کتاب الصلاة باب شهود النساء الجماعة: ٥٨/٣رقم الحديث: ٥١٢٩-٥١٢٨(ددواړو احاديثو الفاظ دلته ذکرکړې شوی دحديث د الفاظونه مختلف دی البته مفهوم د ټولو يودې).

(٣) لامع الدراري: ٢٣٩/٢الکنزالمتواري: ٢٤٦/٣.

(٤) فتح الباري: ٥٢٧/١.

**دعلامه رشيد احمد گنگوهي رحمه الله رائې:** دحضرت گنگوهي رحمه الله هم دغه رائې ده چه د اول په نسبت د بني اسرائيلو په ښځوكښې ددې حيض كثرت اوزيادت وو په كوم چه لفظ إرسال شاهد دې. (١)

**دشيخ الحديث حضرت زكريا رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائي: «وهوالأوجه عندي» يعني زما په نيز هم دغه قول زيات خوښ كړې شوې دې. (٢)

**دعلامه انورشاه كشميري رحمه الله رائې:** علامه انورشاه كشميري رحمه الله فرمائيلي زما په نيز په رواياتو كښې دتطبيق صورت دادې چه دحيض شروع خو هم د زمانې د شروع نه شوې وه كوم چه د عتاب په توګه وو مګر په نساء بني اسرائيل باندې ددې تسلط د قهر لقمت اوسزا په توګوه اوشو. (٣)

**دعلامه عيني رحمه الله نقد:** علامه عيني رحمه الله د علامه داؤدي رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله بيان كړې شوې تطبيقات غير صحيح ګرځولي دي. دعلامه داؤد رحمه الله بيان كړې شوى تطبيق باندې نقدكولوسره فرمائي چه مونږ ددې خبرې نه انكار نه كوو چه نساء بني اسرائيل د بنات آدم نه دي مګر دلته كلام په اوليت كښې دې اودامخالفت هم په دې صورت كښې ختميدې شي چه په دواړو اوليتونوكښې تطبيق وركړې شي. دغه شان دعلامه داؤدي رحمه الله د قول متعلق چه دا اووئيلې شو چه ددې قول مطابق بنات آدم عام لفظ دې اودې نه مراد خاص دې نوداخبره هم صحيح نه ده ځكه چه دحضورپاك كلام عموم ولې په يوبل باندې خاص كولې شي؟ دويم تطبيق كوم چه حافظ ابن حجر رحمه الله بيان كړې دې هغه هم دمعنوي ذوق نه خالي دې ځكه چه دلته اول إرسال لفظ دې نه چه صرف لفظ إرسال اوهم اوليت دلته زير بحث دې دكمې زياتي سوال هم په مينځ كښې نشته دې. بل ددې څه دليل دې چه اول په حيض كښې كمې وو په كوم كښې روستو بيا زياتې اوشو؟ اودا چا نقل كړل؟

**دعلامه عيني رحمه الله رائې:** ددې نقد نه پس علامه عيني رحمه الله اوفرمائيل چه زما په نيز د تطبيق صورت دادې چه ممكن دى د كثرت عناد د وجې نه الله تعالى د بنات بني اسرائيل حيض منقطع كړې وى چه دوى له اود دوى خاوندانو له دعناد سزا وركړې شي او څه موده هم په دغه حال باندې تيريدو نه پس الله تعالى په هغوى باندې رحم كړې وى اوبيائې دحيض دعادت اجراء كړې وى ځكه چه دالله تعالى هم د حكمت او رحمتلاندې حيض د وجود نسل سبب جوړ كړې دې چه د كومو ښځو په رحم كښې د حيض صلاحيت وى هم هغه حمل قبلوى. په دې وجه په صغر سنى يعنى كم عمرئى او سن اياس يعنى زيات عمر كښې نه حيض وى اونه حمل حصاريږى. غرض دا چه كله دحيض شروع شوې وى نوهم هغه د مدت انتقطاع په لحاظ سره أول إرسال ګرځى لهذا د اوليت اطلاق هم په دې اعتبارسره شوې دې كوم چه د امور نسبيه نه دى. (٤)

**دعلامه عيني رحمه الله په رائې باندې نقد:** علامه رشيداحمد ګنګوهي رحمه الله په دې موقع باندې ليكلى دى چه كوم اعتراض علامه عيني رحمه الله په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې كړې دې هغه به پخپله هم په هغه باندې وارد كيږى چه د انقطاع او اجراء دليل څه دې؟ بلكه يوبل اعتراض داهم كيدې شي چه هغه د حيض انقطاع عقوبت خودلې اوارسال ئې رحمت حالاتكه رسول الله ﷺ حيض ته نقص دين فرمائيلې.

---

(١) لامع الدراري: ٢٣٩/٢الكنزالمتواري: ٢٤٦/٣الأبواب والتراجم: ٦٣

(٢) الكنزالمتواري: ٢٤٦/٣الأبواب والتراجم: ٦٣

(٣) فيض الباري: ٤٨٦/١.

(٤) عمدة القاري: ٣٨٠/٣-٣٧٩لامع الدراري: ٢٣٩/٢الكنزالمتواري: ٢٤٧/٣أنوار الباري: ٣٥٢/١٠.

چنانچه «باب ترك الحائض الصوم» كښې روايت دې چه كله ښځو د حضورپاك نه د ددين د نقصان په حواله سره تپوس اوكړو نو حضورپاك اوفرمائيل: «أليس إذا حاضت لم تصل ولم تصم، فذلك من نقصان دينها» يعنى ولې داسې نه ده چه يوه ښځه په حيض كښې راګيره شي نو مونځونه نه كوى اونه روژې ساتى؟ نو بس هم دغه ددې د دين نقصان دې.[1]

**دعلامه انورشاه كشميري رحمه الله دطرفنه ددې نقد جواب:** علامه كشميرى رحمه الله اوفرمائيل چه د محقق عينى رحمه الله د طرف نه دا جواب وركړې كيدې شى چه هم دارسال د لفظ نه دا استنباط كيږى چه ددې نه پس د انقطاع صورت پاتې شوې دې اوكيدې شى هم ددې نه محقق عينى رحمه الله احتمال مذكوره راويستې دې. «والله اعلم»

ددويم اعتراض جواب دادې چه په حيض كښې دواړه اړخونه دى په دې لحاظ سره چه هم ددې د وجې نه په ارحام كښې د حمل قبلولو صلاحيت پيداكيږى اوهغه دتوالد اوتناسل ذريعه ده، يقيناً چه رحمت دې. بل دا چه د طب په رڼړا كښې هم دحيض صحيح صورت د ښځې د رحم د اندام دپاره د صحت دليل دې اوددې بې قاعدګى يا غيرمعتاد كمې زياتې دبيمارئى يا استحاضه شكل دې.

پاتې شوه ددين د نقصان والا خبره نوهغه د ظاهر او ښكاره والى په لحاظ سره ده چه په ظاهره د يوشرعى او سماوى عذر لاندې ښځه د فرائض د اداكولو نه محروم كيږى ليكن په حقيقى او معنوى اعتبار سره صرف ددې په وجه سره د هغې دين د كمې مرتبې والاكيږى نه اونه دا وئيلې كيدې شى چه خامخا هغه په داسې حالت كښې د الله تعالى عذاب لقمت يا عتاب لاندې راغلې ده. دا خو هم داسې دى لكه چه مونږ ښځوته په جمعه اود جهاد په جماعاتو كښې د عدم شركت په سبب ناقصات الدين نه شوئيلې. الغرض په چا باندې چه څومره فرائض دى هغه به دهغې په اداكولو سره كامل الدين ګڼړلې شى سره ددې چه هغه د نورو په مقابله كښې د اعمالو په لحاظ سره كم وى.[2]

هم دغه وجه ده چه كله اسماء بنت يزيدبن السكن انصاريه رضي الله عنها دنبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضره شوه اوعرض ئې اوكړو...... زه دښځودطرف نه دهغوى د نمائنده كيدو سره راغلې يم چه د ټولو عرض معروض تاسوس ته پيش كړم. الله تعالى تاسو د سړو او ښځو ټولو دپاره مبعوث كړې ئى لهذا مونږ ټول ايمان راوړو او ستاسو اتباع مو اوكړه. ليكن مونږ ټولې ښځې ذات يو په كورونوكښې راګيرې شوې د پردې اوحجاب پابند اوهم په كورونوكښې ناسته زمونږ كاردې. سړى هم زمونږ نه خپل خواهشات پوره كوى اومونږ دهغوى د اولاد بوج هم زغمو اود «بهر أوسيدو د آزادئى د وجې نه» سړو ته د جمعه وجماعات او جنازه كښې د شركت د وجې نه نيكئى او فضائل ملاويږى اوكله چه هغوى جهاد ته خى نومونږ دهغوى د مالونو او اولاد هم حفاظت كوو نو آيا په داسې صورت كښې دهغوى د مذكوره اعمالونه په اجر اوثواب كښې مونږ هم څه حصه وى كه نه؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم چه دحضرت اسماء رضي الله عنها عرض معروض واؤريدو نو دصحابه كرامو طرف ته متوجه كيدو سره ئى سوال اوكړو چه آيا تاسو كله د يوې ښځې خبرې اترې او د دين د سوال باره كښې ددې نه كله ښكلې وينا اوريدلې ده؟ عرض اوكړې شو نه، اې دالله رسول صلى الله عليه وسلم بيا حضورپاك د اسماء رضي الله عنها طرف ته متوجه شو وئى فرمائيل «انصرفى يا أسماء! وأعلمى من وراءك من النساء ان حسن إحداكن لزوجها وطلبها لمرضاته واتباعها

---

[1]) لامع الدرارى: ٢/ ٢٤٠الكنزالمتوارى: ٣/٢٤٨-٢٤٧أنوار البارى: ١٠/ ٣٥٢.

[2]) أنوار البارى: ١٠/٣٥٣-٣٥٢.

لموافقته بعدل كل ماذكرت للرجال»، فانصرفت أسماء وهي تهلل وتكبر استبشارا بما قال لها رسول الله ﷺ.[1]

**ترجمه:** اسماء زه لاړه شه اوټولو ښځوته اووايه كه دهغوى رويه دخپل خاوندانوسره ښه ده اودوى دهغوى د مرضياتو طلب اوكوشش كوى اود هغوى داتباع او موافقت كوشش كوى نوداځيزونه به داښځي «د اخروى مراتب په لحاظ سره» دهغه سړو برابر كوى څوك چه دغه پورتنى اعمال كوى. داخوشخبرى د الله تعالى د پيغمبر ﷺ نه اوريدو سره حضرت اسماء ﷺ د ډيرې خوشحالئى نه تهليل او تكبير وئيلوسره واپس شوه.

په دې حديث كښې د عدل لفظ دې چه ښځې د مذكوره خبرو د وجې نه به مجاهدين اوكامل الايمان سړو برابر شى نوكتلې به شى چه هغه دينى نقص چرته لاړو؟

غرض حاصل د كلام دادې چه كوم امر ته په حديث كښې نقصان دين وئيلې شوې دې هغه په ظاهرى لحاظ سره كمې ضرور دې مگر په حقيقت كښې د عذر اومجبورئى د حالت د وجې نه كمې او نقص داعمال، دينى نقص نه دې اود شارع ﷺ مقصد صرف دادې چه ښځوته كوم دعقل اودين حصه وركړې شوې ده هغه دهغوى د حده پورې د معاش او معاد د اصلاح دپاره كافى ده. ليكن كه هغوى د خپل عمل ددائرې نه اوځى د سړو خاص معاملاتو اوبهرنى امورو په ملكى سياسيات وغيره كښې حصه اخستل غواړى نوددوى نه د څه د بهترئى اميد نشته دې بلكه ددوى نه په اكثروختونو كښې به د سړو عقلونه هم خراب كړى اود قسم قسم فسادونو او فتنو دروازې كولاؤ شى.[2]

**دعلامه قسطلانى رحمه الله رائې:** علامه قسطلانى رحمه الله د علامه بدرالدين دمامينى رحمه الله په حواله سره ليكلى دى چه هغوى په مصابيح الجامع كښې دا توجيه ذكر كړې ده چه ارسال حيض نه مراد دمنع د حكم اجراء ده د كوم شروع چه د بنى اسرائيلو ښځونه شوې. په نورو الفاظو كښې د حيض وجود خو هم د شروع نه وومگرمخصوص احكام دټولونه اول په اسرائيلى ښځو باندې نازل شو «أول أرسل الحيض على بنى إسرائيل» نه هم دغه مراددې.[3]

**دعلامه قسطلانى رحمه الله په رائې باندې نقد:** علامه رشيداحمد گنگوهى رحمه الله فرمائى چه په دې توجيه باندې حاشية الطحطاوي على مراقي الفلاح [4] په روايت سره اشكال كيږى چه د حيض د وجې نه د مونځ حكم دحضرت حواء عليها السلام د زمانې نه دې څكه چه كله هغې دحضرت آدم ﷺ نه د مونځ حكم معلوم كړو نوهغوى اوفرمائيل چه زه نه پوهيږم بيا دالله تعالى د طرف نه وحى نازل شوه چه مونځ روژه دې ترك كړى، دمونځ قضاء به نه وى او د روژې قضاء به وى.[5]

«وقول النبى صلى الله عليه وسلم: هذا شيئ كتبه الله على بنات آدم» اود نبى كريم ﷺ ارشاد دې چه دا «حيض» يوداسې څيزدې كوم چه الله تعالى په بنات آدم ﷺ باندې ليكلې دې.

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا هم د امام بخارى رحمه الله د جمله تعليقاتونه دى كوم چه هغوى په راتلونكى «باب الأمر بالنفساء إذا نفسن» كښې موصولاً ذكر كړې دې البته هلته د "هذا شيئ" په ځائې "هذا أمر" الفاظ

---

[1] الاستيعاب فى أسماء الأصحاب: ٢٣٧/٤.
[2] أنوار البارى: ٣٥٣/١٠.
[3] إرشاد السارى: ٥٣٣/١ الكنزالمتوارى: ٢٤٨/٣ لامع الدرارى: ٢٤٠/٢ أنوارالبارى: ٢٥٣/١٠.
[4] ص: ١٤٨-١٤٧.
[5] الكنزالمتوارى: ٢٤٨/٣ لامع الدرارى: ٢٤٠/٢ أنوارالبارى: ٣٥٣/١٠.

مروى دى. دې نه پس ((باب تقضي الحائض المناسك كلها إلا الطواف)) كښې هم دا روايت موصولاً ذكر كړې دې.([1]) ليكن هلته "هذاشيئ" په ځائې باندې "ذلك شيئ" الفاظ سره نقل دى.([2])

**دتعليق مقصد:** ددې تعليق ذكركولوسره دامام بخارى رحمه الله مقصد دې خبرې ته ترجيح وركول دى چه دحيض وجوددد بنات آدم دپيدائش نه دې ځكه چه تعليق مذكورهم په دې باندې دال دې اوهم ددې وجې نه دواړه روايتونه ذكركولونه پس امام بخارى رحمه الله فرمائى ((وحديث النبي ﷺ أكثر)).([3])

**قَالَ بَعْضُهُمْ: ((كَانَ أَوَّلُ مَا أُرْسِلَ الْحَيْضُ عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ)) قَالَ أَبُوعَبْدِاللَّهِ: ((وَحَدِيثُ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم أَكْثَرُ))**

بعض اهل علم وئيلى دى چه د ټولو نه اول حيض بنى اسرائيلو كښې راغلې. د "بعضهم" نه مراد حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او حضرت عائشه رضي الله عنها ده.([4])

**د مذكوره تعليق تخريج:** دامعلق روايت په حقيقت كښې دحضرت عائشه رضي الله عنها اوحضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه قول دې كوم چه محدث عبدالرزاق رحمه الله ددې دواړو حضراتو نه په صحيح سندسره روايت كړې دې مگر داخبره دې واضحه وى چه دمحدث عبدالرزاق رحمه الله تخريج كړې شوې ددې دواړو حضراتو د روايتونو الفاظ په صحيح بخارى كښې د دغه پورتنى نقل كړې شوى معلق روايت د الفاظونه مختلف دى. البته مفهوم دټولو هم يودې.

دمحدث عبدالرزاق رحمه الله تخريج كړې شوې دعائشه رضي الله عنها د روايت الفاظ دادى (عبدالرزاق عن معمر عن هشام بن عروة عن أبيه عن عائشة قالت: كان نساء بني إسرائيل يتخذن أرجلاً من خشب يتشرفن للرجال في المساجد فحرم الله عليهن المساجد، وسلطت عليهن الحيضة) يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه د بنى اسرائيلو ښځويه د لرگى مصنوعى خپې جوړولې دې دپاره چه په جماتونو كښې سرو ته اوكتلې شى ددې ښځو ددې كار د وجې نه الله تعالى په هغوى باندې جماتونوته راتلل حرام كړل اوپه هغوى باندې حيض مسلط كړو.

اود حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د روايت الفاظ دادى: ((عبدالرزاق عن الثوري عن الأعمش عن إبراهيم عن أبي معمر عن ابن مسعود قال: كان الرجال والنساء في بني إسرائيل يصلون جميعاً فكانت المرأة لها الخليل تلبس القالبين تطول بهما لخليلها، فألقى عليهن الحيض، فكان ابن مسعود يقول: أخروهن حيث أخرهن الله. فقلنا لأبي بكر: ما القالبين؟ قال: رفيصين من خشب)) يعنى حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائى چه د بنى اسرائيلوسرى اوښځې ټولو به يوځائې مونځ كولو، په دوى كښې به د يوې ښځې دوست وو د چاد پاره چه به دغه ښځې قالبين اچول دې دپاره چه اوچته شى اوهغه خپل دوست اووينى. ددې ښځوددې حركت د وجې نه په هغوى باندې حيض مسلط كړې شو. په دې وجه به ابن مسعود رضي الله عنه فرمائيل چه دا ښځې شاته كړئى لكه څنگه چه الله تعالى دوى شاته كړى دى. راوى وائى چه بيا مونږ د ابوبكر رضي الله عنه نه تپوس اوكړو دا قالبين څه څيزدې؟ نوهغوى اوفرمائيل د لرگى نه جوړې شوې مصنوعى خپې.

**د مذكوره تعليق مقصد:** ددې تعليق نه د امام بخارى رحمه الله مقصد د حيض د شروع كيدو سره متعلق دويم قول ذكر كول دى دې دپاره چه ددې نه پس هغه دا فيصله اوكړى چه د هغوى په نيز دواړو

---

[1]) فتح البارى: ٥٢٧/١تغليق التعليق: ١٦٧/٢عمدة القارى: ٣٧٨إرشادالسارى: ٥٣٢/١.

[2]) إرشاد السارى: ٥٣٢/١.

[3]) تقرير بخارى: ٩٤/٢.

[4]) فتح البارى: ٥٢٧/١عمدة القارى: ٣٧٨/٣إرشادالسارى: ٥٣٣/١الكنزالمتوارى: ٢٤٦/٣لامع الدرارى: ٢٣٨/٢.

اقوالوكښې راجح كول يو دي. چنانچه ددې تعليق نه پس «وحديث النبى صلى الله عليه وسلم أكثر» وئيلو سره فيصله اوفرمائيله چه دهغوى په نيز راجح رومبې قول دې.(1)

**د مذكوره تعليقاتو ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې دواړو معلق روايتونو ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. په ترجمة الباب كښې دا سوال اوچت كړې شو چه حيض كله شروع شوې اود ترجمة الباب نه لاندې په شروع كښې دوه معلق روايتونه پيش كولوسره د حيض د شروع كيدوسره متعلق دوه قوله ذكر كړل اوبيانى په دې كښې يو قول ته ترجيح وركړه.(2)

**علمي نكته:** علامه شبيراحمدعثمانى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله د ابن مسعود رضى الله عنه او حضرت عائشه رضى الله عنها غوندې جليل القدرصحابه په "بعضهم" سره تعبيركوى، معاذالله پدې كښې دهغوى سپكاوې مقصود نه دې بلكه كه په اصل كښې د بعضهم سره څه تحقير مترشح كيږى نوهغه د قائل تحقير نه دې بلكه د قول تحقير دې. هم دلته داسې اوګڼئ چه امام بخارى امام ابوحنيفه ته په بعض الناس سره تعبيركوى په دې سره د امام صاحب سپكاوې مقصودنه دې بلكه بعض ځايونوكښې امام شافعى هم بعض الناس سره تعبيركړې دې. او دومره خبره ضرور ده چه امام بخارى ته د امام ابوحنيفه مذاق سره طبعى مناسبت نه وو ځكه چه دهغه شيخ نعيم بن حماد دامام ابوحنيفه ډيرزيات مخالف وو.(3)

**قوله:: (قال ابوعبدالله):** دابوعبدالله نه مراد پخپله هم امام بخارى رحمه الله دې(4) ابوذر، ابوالوقت او د ابن عساكر روايت كښې "قال أبوعبدالله" ساقط دې.

**قوله:: (وحديث النبى صلى الله عليه وسلم أكثر):** امام بخارى رحمه الله فرمائى اود نبى كريم صلى الله عليه وسلم حديث اشمل يعنى ټولو ښځوته شامل دې.

**د بخارى رحمه الله مقصد:** د حيض د شروع سره متعلق دواړه روايتونه ذكركولونه پس امام بخارى رحمه الله روايت اولى ته ترجيح وركولوسره فرمائى: «وحديث النبى صلى الله عليه وسلم أكثر»(5)

په عام اومتداول نسخوكښې "أكثر" هم په ثاء المثلثة سره ذكردې دكوم مطلب چه دې دحضورپاك حديث د قوت او دليل په اعتبارسره صحابه كرام رضى الله عنهم او غيرصحابه د ټولود كلام نه زيات دې. علامه كرمانى رحمه الله د أكثر تشريح أشمل سره كړې ده دكوم مطلب چه د حضورپاك حديث ټولو ښځوته شامل دې سره ددې كه هغه د نساء بنى اسرائيل وى. يادې نه اول يا ددې نه پس د زمانې ښځې وى صرف نساء بنى اسرائيل سره خاص نه دې ځكه چه د بنات آدم لفظ عام دې. بعض نسخوكښې أكثر په ځائې أكبر نقل دې نوپه داسې صورت كښې به معنى شى «وحديث النبى صلى الله عليه وسلم أعظم وأجل وأكد ثبوتاً» چه د حضورپاك حديث په اعتبارد ثبوت زيات مؤكد او ډير عظيم دې.(6)

---

1) تقريربخارى: ۳۱۰/۲.

2) تقرير بخارى: ۳۱۰/۲.

3) فضل البارى: ۴۶۴/۲.

4) عمدة القارى: ۳۷۹/۳إرشادالسارى: ۵۳۳/۱.

5) لامع الدرارى: ۲۳۹/۲الكنزالمتوارى: ۲۴۶/۳ فضل البارى: ۴۶۴/۲فيض البارى: ۴۸۶/۱.

6) فتح البارى: ۵۲۷/۱عمدة القارى: ۳۷۹/۳شرح الكرمانى: ۱۵۸/۳الكنزالمتوارى: ۲۴۶/۳لامع الدرارى: ۲۳۸/۲.

**اشكال اودهغې جواب**: اشكال دادې چه سره ددې په ظاهره قول دحضرت عائشه رضي الله عنها او ابن مسعود رضي الله عنه دواړه موقوف دې مګرحکماً مرفوع دی ځکه چه داتاريخ خودل څه عقلي څيزنه دې؟ جواب دادې سره ددې چه په دې کښې د عقلي کيدو احتمال نشته مګر ممکن دې چه اسرائيليات رسيدلي وی يادهغې نه اخذ کړې شوې څه خبره وی. بهرحال يوروايت ته د ترجيح ورکولوپه ځائې په دې کښې تطبيق هم ورکولې شي دکوم مکمل تفصيل چه وړاندې تير شوې دې.([1])

**دويم اشکال**: «أول ما أرسل الحيض على بني إسرائيل» باندې اشکال کيږی چه د حيض اجراء خو بنات اسرائيل باندې اوشوه نه چه دهغوی په خامنو باندې بيانې على بنی اسرائيل ولې اوفرمائيل؟ نو جواب دادې چه دلته مضاف محذوف دې اوتقديری عبارت داسې دې: «أي: على بنات بني إسرائيل» او په دې باندې د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک «كتبه الله على بنات بني آدم» شاهد دې.([2])

**اعراب**: على بني إسرائيل په محل دنصب کښې واقع دې او کان دپاره خبر دې او أول ما أرسل الحيض، د کان اسم دې اوما مصدريه دې. لهذا تقديری عبارت به داسې شی «كان أول إرسال الحيض على بني إسرائيل».([3])

**فائده**: دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها او ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل کړې شوې روايت ذکر کولونه پس حضرت مولانا انور شاه کشميری رحمه الله فرمائی چه ددې روايت نه معلومه شوه چه ښځې د جماتونو نه منع کول پخوانی سنت دی.([4])

بل چه کله شريعت د قبائح او منکراتو د بيخ کولودپاره ښځې د جماتونو غونډې مقدس مقاماتو نه منع کړې نودهغوی د پاره دعام د سيل ځايونو بازارونو او مخلوط تعليمی ادارو وغيره ته د تللو په درجه اولی باندې ممانعت وی.([5])

## باب الأمر بالنفساء إذا نفسن([6])

**دماقبل سره ربط**: د اکثر نسخونه دا ترجمة الباب ساقط دې البته په کومو نسخوکښې چه ترجمة الباب قائم دې دهغه نسخو په اعتبارسره سابقه باب سره ربط دادې چه په تيرشوی باب کښې د حيض تاريخ د بحث موضوع جوړه کړه او اوس په دې باب کښې حائضه سره متعلق د احکامو تذکره کيږی ځکه چه دلته دنفساء نه مراد حائضه ده.([7])

---

[1]) فضل الباری: ۴۶۵/۲.

[2]) عمدة القاری: ۳۷۹/۳.

[3]) إرشادالساری: ۵۳۳/۱عمدة القاری: ۳۵۲/۱.

[4]) فيض الباری:۴۸۶/۱أنوارالباری: ۱/۳۵۲.

[5]) أنوار الباری: ۳۵۲/۱.

[6]) په دې تقرير کښې دَ متن په توګه دَصحيح بخاری کومه نسخه استعمال کړې شوې ده په هغې باندې داکټر مصطفى ديب البغا تحقيقی کار کړې دې دَدې نسخه مطابق په دې مقام باندې دغه پورته ذکرشوې ترجمة الباب "باب الأمر بالنفساء إذا نفسن" موجود نه دې مګر مونږ دا ترجمة الباب تسليم کولو په تقدير باندې تول بحثونه ذکرکړی دی اوهم دَدې دَپاره ترجمة الباب درج کړې شوې دې.

[7]) عمدة القاری: ۳۸۰/۳.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: أي: الأمر المتعلق بهن چه دا باب دحائضه ښځوسره متعلق د حكم په بيان كښې دې. (١)خوشيخ المشائخ شاه ولى الله رحمه الله فرمائي: أي: الأمر بأداء مناسك الحج إلا الطواف چه دا باب په هغه باره كښې دې چه حائضه ښځو له به بغيرد طواف نه د ټول مناسك حج د اداكولوحكم وركولې شي (٢)علامه قسطلانى رحمه الله ترجمة الباب كښې دنفساء په ځائې نساء لفظ ذكركړې دې يعنى باب الأمر للنساء إذا نفسن. (٣)النفساء مفرددې ددې جمع نفاس راځي.

**قوله: إذا نفسن:** بعض رواياتو كښې نفسن (صيغه د جمع مؤنث) په ځائې نفس (صيغه واحدمذكر) نقل ده ليكن په هرو دوو صورتونو كښې (كه جمع مؤنث صيغه وى اوكه د واحدمذكر صيغه وى) په دې كښې موجود ضمير نفساء طرف ته راګرځي كوم چه مفرد مؤنث دې. اوس كه چرې جمع مؤنث دې نوددې مفرد دمؤنث طرف ته راګرځيدل به په اعتبارد جنس وى اوكه چرې مفرد مذكر دې نوددې د مؤنث طرف ته ګرځيدل په اعتبارد شخص دې. يا بيا ددې وجې نه چه دلته هيڅ قسم التباس نه لازميږى ځكه چه حيض هم ښځو سره خاص دې. (٤)

بل الأمر بالنفساء كښې "ب" زائده ده ځكه چه نفساء ماموره ده (چه دې ته حكم وركړې شوې دې) دې د پاره چه مامور بها، يا به بيا تقديرى عبارت داسې دې ((الأمر الملتبس بالنفساء)) (٥)

**دترجمة الباب مقصد:** د ابوذر او ابوالوقت په نسخوكښې علاوه د نورو ټولو نسخو نه دا ترجمه ساقط ده (٦) اوس كه چرې دا ترجمه اومنلې شي لكه چه دابوذر او ابوالوقت په نسخوكښې ده نوددې مقصد به داوى چه په ايام حيض كښې ښځې دټولو امورو نه بې تعلق كيږى نه بلكه په دغه ايام كښې هم د ښځوسره د څه اوامر او نواهى تعلق وى.ښځې په دې ورځوكښې هم ددينى امور ذكركولې شي او دوى په دينى ماحول كښې شريكيدو اجازت دې.اوګورئى عائشه رضي الله عنها حضورپاك دطواف او سعى نه علاوه ټول اركان مثلاً عرفات كښې حصاريدل اومزدلفه كښې كانړى ويشتل وغيره اجازت ئې وركړو.

اود عام نسخو مطابق چه ترجمه تسليم نه كړې شى نو په دې صورت كښې ذكركړې شوې حديث د حضرت عائشه رضي الله عنها الفاظ ((إن هذا أمر كتبه الله على بنات آدم)) نه د ترجمة الباب مقصد واضح كيږى د كوم تفصيل چه تير شوى باب كښې دترجمة الباب مقصد په عنوان سره تيرشوې دې او په حديث اوترجمة الباب كښې مناسبت هم بالكل واضح دې چه په دوارو كښې د بدايت حيض موضوع ده. (٧)

**د شيخ الحديث زكريا رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث زكريا رحمه الله د ترجمة الباب سره متعلق فرمائى چه ((والظاهر حذفه)) چه ددې ترجمه نه كيدل ظاهر دى ګنى وړاندېنتى ترجمه به بغيردحديث شى ليكن كه ترجمه تسليم كړې شى نوددې نه مقصد به په حيض او نفاس كښې د حكم اتحاد بيانول وى،

---

(١) فتح البارى: ٥٢٧/١.
(٢) رسالة شرحتراجم أبواب صحيح البخارى ص: ١٩.الأبواب والتراجم: ٦٣ الكنز المتوارى: ٢٤٨/٣.
(٣) إرشادالسارى: ٥٣٣/١ الكنز المتوارى: ٢٤٩/٣.
(٤) عمدة القارى: ٣٠/٣ إرشادالسارى: ٥٣٣/١.
(٥) عمدة القارى:٣٨٠/٣إرشادالسارى: ٥٣٣/١تحفة البارى: ٢٤١/١.
(٦) فتح البارى: ٥٢٧/١عمدة القارى: ٣٨٠/٣الكنزالمتوارى:٢٤٨/٣.
(٧) فضل البارى:٤٦٥/٢.

خکه چه د ترجمة الباب لاندې ذکرشوې حدیث کښې دی چه حضورپاك دحضرت عائشه ﷺ نه د حیض متعلق په دې الفاظو "أنفست؟" کښې تپوس کړې وو. لکه چه په حیض باندې د نفاس اطلاق کولوسره ئې د تحاد حکم طرف ته اشاره اوفرمائیله. مګر بیا پخپله په دې غرض باندې اشکال کولو سره دا رد کړو چه داغرض خو دیر زر «باب من سمى النفاس حيضاً» لاندې راځي اوبیائې دویم غرض بیان اوفرمائیلو چه زما په نیز د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه حائضه ته د احرام تړلو په موقع باندې د غسل حکم ورکړې شی.

په دې غرض باندې دې دا اشکال نه وی چه بیاخو به دا ترجمة الباب په کتاب الحج کښې کیدل پکاردی خکه چه دا ترجمه لکه څنګه چه کتاب الحج سره متعلق ده هم هغه شان کتاب الحیض سره هم متعلق ده او په بخاری شریف کښې دا دیر مثالونه دی چه د کومو مسئلو تعلق دوو کتابونوسره وی نو امام بخاری رحمه الله دغه مسائل په دواړو کتابونو کښې درج کوی. چنانچه «باب ترك الحائض الصوم» او «باب اعتكاف المستحاضة» دا ابواب په کتاب الحیض کښې هم دی اوکتاب الصوم کښې هم. دغه شان «باب: كيف تقضي الحائض المناسك كلها الخ» او «كيف تهل الحائض؟» دا ابواب کتاب الحیض او کتاب الحج دواړو کښې دی. الغرض چه دکومو مسائلو تعلق دوو کتابونو سره وی نوامام بخاری رحمه الله مسائل په دواړو کتابونوکښې درج کوی.(1)

## الحديث الأول

[۲۹۰]- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْقَاسِمِ، قَالَ: سَمِعْتُ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ [ص:٦٧] يَقُولُ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقُولُ: خَرَجْنَا لاَ نَرَى إِلاَّ الْحَجَّ، فَلَمَّا كُنَّا بِسَرِفَ حِضْتُ، فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبْكِي، قَالَ: «مَا لَكِ أَنُفِسْتِ؟». قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: «إِنَّ هَذَا أَمْرٌ كَتَبَهُ اللَّهُ على بَنَاتِ آدَمَ، فَاقْضِي مَا يَقْضِي الْحَاجُّ، غَيْرَ أَنْ لاَ تَطُوفِي بِالْبَيْتِ» قَالَتْ: وَضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نِسَائِهِ بِالْبَقَرِ (2)[۲۹۹، ۳۱۰، ۳۱۱، ۳۱۳، ۱۴۴۲، ۱۴۸۱، ۱۴۸۵، ۱۴۸۶، ۱۴۸۷، ۱۵۵۷، ۱۵۶۷، ۱۶۲۳، ۱۶۳۳، ۱۶۹۱، ۱۶۹۴ - ۱۶۹۶، ۲۷۹۳، ۴۱۳۴، ۴۱۴۲، ۵۲۲۸، ۵۲۳۹، ۲۸۰۲، وانظر ۱۶۰۶]

---

(1) الکنزالمتواری: ۲۴۸/۳الأبواب والتراجم: ۶۳

(2) قوله: "عائشة : الحديث أخرجه البخاری فی باب: تقضی الحائض المناسک کلها إلا الطواف بالبیت. رقم الحدیث ۳۰۵. وباب امتشاط المرأة عند غسلها من الحیض، رقم الحدیث: ۳۱۶وباب کیف تهل الحائض بالحج والعمرة رقم الحدیث: ۳۱۹وباب المرأة تحیض بعد الإفاضة رقم ا لحدیث ۳۲۸وفی الحج باب الحج علی الرجل رقم الحدیث: ۱۵۱۶، ۱۵۱۸ وباب کیف تهل الحائض والنفساء رقم الحدیث: ۱۵۵۶ وباب قول الله تعالی ﴿الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَاتٌ﴾: ۱۵۶۰ وباب التمتع والقرآن والإفراد بالحج الخ رقم الحدیث: ۱۵۶۱،۱۵۶۲ وباب طواف القارن رقم الحدیث: ۱۶۳۸ وباب تقضی الحائض المناسک کلهاإلا الطواف بالبیت الخ رقم الحدیث: ۱۶۵۰ وباب ذبح الرجل البقر عن نسائه من غیر أرمهن رقم الحدیث: ۱۷۰۹ وباب ما یأکل من البدن وما یتصدق رقم الحدیث: ۱۷۲۰ وباب الزیارة یوم النحر رقم الحدیث: ۱۷۳۳ وباب إذا حاضت المرأة بعد ما أفاضت رقم الحدیث: ۱۷۵۷، ۱۷۶۲ وباب الإدلاج من المحصب رقم الحدیث: ۱۷۷۱، ۱۷۷۲ وفی العمرة باب العمرة لیلة الحصبة وغیرها رقم الحدیث: ۱۷۷۳

**ترجمه**: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه مونږ د حج په اراده اووتلو، كله چه مونږ مقام سرف ته اورسيدو نو زه حائضه شوم، په دې خبره باندې ما ژړل نو رسول الله ﷺ تشريف راوړو. حضورپاك تپوس اوكړو په تاس څه چل اوشو آيا حائضه شوې نې؟ مااووئيل او جى، په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل دا يوداسې څيزدې كومو چه الله تعالى د آدم عليه السلام د لونړو دپاره ليكلې دې په دې وجه ته هم د حج افعال پوره كړه البته دبيت الله طواف مه كوه. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه رسول الله ﷺ د خپلو بيبيانو دطرف نه د غوا قرباني اوكړه.

## تراجم رجال

**على بن عبدالله**: دا اميرالمؤمنين فى الحديث الحجه، امام ابوالحسن على بن عبدالله بن جعفر بن نجيح سعدى بصرى رحمه الله دې چه د ابن المدينى په نوم سره مشهوردې. ددوى حالات ((**كتاب العلم باب الفهم فى العلم**)) رومبي حديث لاندې تفصيلاً تيرشوى دى.(1)

علامه عينى رحمه الله فرمائي چه امام ابن المدينى رحمه الله دهغه اشخاصونه دې دچاچه د خپل ښارطرف ته نسبت خلاف قياس دې. (2)چنانچه ابن الاثير رحمه الله فرمائي چه "مدني" بحذف الياء والهاء مدينه رسول ﷺ طرف ته مسنوب دې.(3)

اسماعيل بن جماد رحمه الله فرمائي چه كله نسبت مدينهٔ رسول ﷺ طرف ته وى نو "مَدَنِىْ" لوستلې شى اوچه كله مدينهٔ منصورطرف ته نسبت وى نو "مديني" (بإعادة الياء بين الدال والنون)به لوستلې شى دې دپاره چه په نسبت كښې فرق اوشى.(4)

**سفيان**:دا امام سفيان بن عيينه رحمه الله دې د دوى حالات **بدء الوحى** د رومبى حديث په ضمن كښې مختصراً(5)او ((**كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا**))په ضمن كښې تفصيلاً تير شوى دى(1)

---

وباب الاعتمار بعدالحج بغير هدى رقم الحديث: ١٧٨٦ وباب أجرالعمرة على قدر النصب رقم الحديث ١٧٨٧ وباب المعتمر إذا طاف طواف العمرة ثم خرج الخ رقم الحديث: ١٧٨٨ وفى الجهادباب الخروج اخر الشهر رقم الحديث ٢٩٥٢ وباب إرداف المرأة خلف أخيها رقم الحديث: ٢٩٨٤ وفى المغازى باب حجة الوداع رقم الحديث: ٤٣٩٥، ٤٤٠١، ٤٤٠٨ وفى الطلاق باب قول الله تعالى ﴿ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ ﴾ الآية رقم الحديث: ٥٣٢٩وفى الاضاحى باب الأضحية للمسافر والنساء رقم الحديث: ٥٥٤٨ وباب من ذبح ضحية غيره رقم الحديث ٥٥٥٩ وفى الأدب باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: ((تربت يمينك))و ((عقرى حلقى)) رقم الحديث: ٦١٥٧ وفى التمنى باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: ((لواستقبلت من أمرى ما استدبرت)) رقم الحديث:٧٢٢٩ وأخرجه مسلم فى الحج باب بيان وجوه الإحرام الخ رقم الحديث: ٢٩٣٥-٢٩١٠ وأبوداؤد فى المناسك باب فى إفراد الحج رقم الحديث: ١٧٧٨، ١٧٨٣ والنسائى فى الحج باب إباحة فسخ الحج بعمرة الخ رقم الحديث: ٢٨٠٥وابن ماجه فى المناسك باب الحائض تقضى المناسك إلا الطواف رقم الحديث: ٢٩٦٣ جامع الأصول حرف الحاء الكتاب الأول فى الحج والعمرة الباب الثالث فى الإفراد الخ الفصل الثالث فى التمتع: ١٥١/٣-١٤٠ رقم الحديث: ١٤١٥.

(1) كشف البارى: ٣٠٢/٣-٢٩٧.

(2) عمدة القارى: ٣٨٠/٣.

(3) منال الطالب: ٦١٣عمدة القارى: ٣٨٠/٣.

(4) معجم الصحاح للجوهرى:٩٧٧ عمدة القارى: ٣٨٠/٣.

(5) كشف البارى:٢٣٨/١.

**عبدالرحمن بن قاسم**: دا عبدالرحمن بن قاسم بن محمدبن خليفۀ ثاني ابوبكر صديق رضي الله عنه قرشي تيمي دي. ددوی کنيت ابو محمد المدني دی. [2] داد حضرت عائشه رضي الله عنها په ژوند کښې پيداشوی. [3]

دوی د خپل پلار قاسم بن محمد، سعيد بن المسيب عبدالله بن عبدالله بن عمر سالم بن عبدالله بن عمر نافع مولی ابن عمر محمدبن جعفر بن الزبير رحمهم الله وغيره نه روايت کوی.

ددوی نه سماك بن حرب، محمدبن مسلم بن شهاب، زهری، عبيدالله بن عمر العمری، محمدبن عجلان، هشام بن عروه، منصور بن زادان، يحيی بن منصور بن زادان، يحيی بن سعيدانصاری، موسی بن عقبه، ايوب سختيانی، حميدالطويل، مالك بن انس، شعبه، صخرين جويريه، حماد بن سلمه، سفيان ثوری، عبدالرحمن بن عمرو الاوزاعی، عبدالملك بن جريج، ليث بن سعد، ليث بن ابی سليم، عمرو الحارث مصری، يزيدبن الهاد، محمدبن اسحاق بن يساره، عبدالعزيز ماجشون، عبدالرحمن بن عبدالله مسعودی او سفيان بن عيينه رحمهم الله وغيره ډير حضرات روايت کوی. [4]

ابن سعد [5] اومصعب بن عبدالله زبيری رحمهما الله فرمائی چه دعبدالرحمن بن قاسم د پلار نوم قريبه بنت عبدالرحمن بن ابی بکر رضي الله عنه دی. [6] ليکن دخليفه بن خياط اوحاکم ابواحمد وينا ده چه دوی د والده نوم اسماء بنت عبدالرحمن بن ابی بکر رضي الله عنه دی. [7]

مصعب بن عبدالله زبيری رحمه الله فرمائی «**كان من خيار المسلمين وكان له قد في أهل المشرق**» [8] يعنی عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله عامة المسلمين د بهترين انسانانونه وو اود اهل مشرق په نيز هغوی ته ډير قدر اومنزلت حاصل وو. سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائی «**حدثنا عبدالرحمن بن القاسم وكان أفضل أهل زمانه**» [9] هم دغه شان په يوبله موقع باندې سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائی: «**سمعت عبدالرحمن بن القاسم وما بالمدينة يومئذ أفضل منه**» يعنی ما د عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله نه احاديث اوريدلی دی او هغه وخت په مدينه طيبه کښې دهغوی نه بهتر څوك نه وو. [10] امام مالك رحمه الله فرمائی «**لم يخلف أحد أباه في مجلسه إلا عبدالرحمن بن القاسم**» [11] يعنی هيڅ يوسړی دخپل پلار په مجلس کښې دهغه جانشين نه شی جوړيدې سوا د عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله نه ځکه چه هم هغوی ته دا شرف حاصل شوی دی. علی بن المدينی رحمه الله فرمائی چه ما سفيان بن عيينه رحمه الله داسې ويناکولوسره اوريدلې چه «**لم يكن بالمدينة رجل أرضى من عبدالرحمن بن القاسم**» [12]

---

[1] كشف الباري: ٣/١٠۶-١٠٢.
[2] تهذيب الكمال: ١٧/٣٤٧تهذيب التهذيب: ۶/٢٥٤سير أعلام النبلاء: ۶/٥.
[3] تهذيب الكمال: ١٧/٣٤٧تهذيب التهذيب: ۶/٢٥٤.
[4] دَ شيوخ اوتلازدَ تفصيل دپاره اوګورئې تهذيب الكمال: ١٧/٣٤٨.
[5] طبقات ابن سعد: ٥/١٨٧.
[6] تهذيب الكمال: ١٧/٣٤٩تهذيب التهذيب: ۶/٢٥٤.
[7] تهذيب الكمال: ١٧/٣٥٠.
[8] تهذيب الكمال: ١٧/٣٤٩تهذيب التهذيب: ۶/٢٥٤.
[9] صحيح البخاری كتاب الحج باب الطيب بعد رمی الجمار الخ رقم الحديث: ١٧٥٤التاريخ الكبير رقم الأعلام: ١٠٨۶.
[10] صحيح البخاری كتاب اللباس باب ماوطئ من التصاوير رقم الحديث: ٥٩٥٩.
[11] تهذيب الكمال: ١٧/٣٥١تهذيب التهذيب: ۶/٢٥٤.
[12] تهذيب الكمال: ١٧/٣٥٠الجرح والتعديل: ٥/٣٤٠.

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی ((ثقة ثقة ثقة))[1] احمد بن عبدالله عجلی، ابوحاتم او امام نسائی رحمهم الله فرمائی "ثقة"[2] يحيى بن سعيد رحمه الله فرمائی چه ماد هشام بن عروه نه واوريده هغوی د عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله نه روايت نقل كړې دې بيائی اوفرمائيل ((ملی عن ملی)) يعنی ((عبدالرحمن عن أبيه))[3]

ابن سعد او ابوعبيد قاسم بن سلام رحمهما الله او نورو ډيرو حضراتو فرمائيلي چه دهغوی انتقال ۱۲۶هجری كښې شوې. خليفه بن خياط اوابن حبان رحمهما الله [4]هم دغه قول اختيار كړې چه د هغوی انتقال ۱۲۶هجری كښې په مدينه كښې شوې.[5] مگر په بل مقام باندې دخليفه نه روايت دې چه دعبدالرحمن بن القاسم اوعبدالله بن ابی نجيح رحمهما الله وصال ۱۳۱هجری كښې شوې[6] او هم دغه قول د فلاس رحمه الله ، هيثم بن عدی او ابن عدی رحمه الله او ابن قانع رحمه الله اختيار كړې دې.[7] ليكن دا دويم قول وهم دې[8] اوصحيح هم دغه دې چه دهغوی وصال ۱۲۶هجری كښې شوې.[9]
علامه واقدی رحمه الله ليكي چه كله وليدبن يزيد خليفه جوړ شو نوهغه ابوالزناد، عبدالرحمن بن قاسم، ربيعه اومحمد بن المنكدر رحمهما الله راؤغوښتل. چنانچه دا حضرات د شام طرف ته د خليفة وقت سره ملاقات له روان شو مگر عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله په دې دوران كښې بيمارشو اود شام د زمكې په مقام فدين كښې وفات شو.[10]
علامه شمس الدين ذهبی رحمه الله فرمائی چه د هغوی انتقال په كال ۱۲۶هجری كښې مقام حوران كښې شوې اوهغه وخت هغوی د اوياؤ په دهائی كښې وو[11] ابن سعد رحمه الله فرمائی ((وكان ثقة ورعا كثير الحديث))[12] ابن حبان رحمه الله دهغوی ذكر په كتاب الثقات كښې كړې دې.[13] هغوی په رشته كښې د جعفر صادق رحمه الله ماما وو.[14] علامه ذهبی رحمه الله فرمائی چه دهغوی پيدائش د امير معاويه رضي الله عنه په دور

---

[1]) تهذيب الكمال: ۳۵۰/۱۷الجرح والتعديل: ۳۴۰/۵تهذيب التهذيب: ۲۵۴/۶.
[2]) تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۷تهذيب التهذيب: ۲۵۴/۶.
[3]) الجرح والعديل: ۳۴۰/۵تهذيب الكمال: ۳۵۰/۱۷.
[4]) تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۷تهذيب التهذيب: ۲۵۴/۶تقريب التهذيب: ۴۶۰/۱كتاب الثقات لابن حبان: ۳۹/۴ شذرات الذهب: ۲۹۵/۱الكامل فی التاريخ: ۵۰۵/۴خلاصة الخزرجی: ۲۳۳ الكاشف: ۱۷۶/۲.
[5]) كتاب الثقات لابن حبان: ۳۹/۴.
[6]) تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۷.
[7]) تهذيب التهذيب: ۲۵۴/۶.
[8]) تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۷.
[9]) تهذيب الكمال: ۳۵۲/۱۷تهذيب التهذيب: ۲۵۵/۶.
[10]) تهذيب الكمال: ۳۴۹/۱۷.
[11]) سيرأعلام النبلاء: ۶-۵/۵تاريخ الإسلام للذهبی: ۴۸۱/۳.
[12]) تهذيب الكمال: ۳۵۲/۱۷تهذيب التهذيب: ۲۵۵/۶.
[13]) ۳۹/۴.
[14]) سيرأعلام النبلاء: ۵/۶.

خلافت کښې شوې دې او زه حیران یم چه هغوی د جابر او سهل بن سعد رضی الله عنهما نه روایات نه دی نقل کړی. (۱) نور فرمائی: «وکان إماماً، حجةً، ورعاً، فقیة النفس، کبیر الشأن» (۲)

**قاسم**: دا قاسم بن محمد ابن ابی بکرصدیق رضی الله عنهم دې. ددوی حالات «کتاب الغسل باب من بدأ بالحلاب أو الطیب عند الغسل» لاندې تفصیلاً تیرشوی دی.

**عائشة**: دا ام المؤمنین حضرت سیده عائشه بنت ابی بکر صدیق رضی الله عنهما ده. ددوی حالات «بدء الوحی» ددویم حدیث لاندې تفصیلاً تیرشوی دی. (۳)

## شرح حدیث

### قوله:: (خَرَجْنَا):

**د حجة الوداع د پاره کله روانګی اوشوه؟**: په دې سلسله کښې د شراح حدیث او مؤرخینو اختلاف دې چه د حجة الوداع د پاره حضورپاک په کوم تاریخ او کومه ورځ روان شوې؟ په دې باره کښې درې قسم اقوال دی: (۴)

رومبې قول د امام طبری رحمه الله په حواله سره نقل کولې شی چه د هغوی رائې داده حضورپاک د حجة الوداع دپاره د ذی قعده ۲۴ تاریخ د جمعه په ورځ روان شوې. علامه ابن قیم جوزی رحمه الله دا قول د امام طبری رحمه الله وهم ګرځولوسره فرمائی چه امام طبری رحمه الله ته د حدیث الفاظ «لست بقین» سره وهم شوې خکه چه هغه په دې الفاظو سره دا ګمان کړې چه داسې په هغه صورت کښې ممکن دی کله چه وتل د جمعه په ورځ اومنلې شی خکه چه د ذوالحجه رومبې تاریخ د زیارت او ذوالقعده آخری تاریخ د چارشنبې په ورځ متعین دې او جمعه سره شپږ ورځې هم په چارشنبه باندې ختمیږی. ددې دپاره د وتلودپاره هم د جمعه ورځ متعین ده. (۵)

دبعض عبارتونو نه دا مفهوم کیږی چه امام طبری رحمه الله ته د حدیث الفاظ «وذلك لخمس بقین ذی القعدة» سره وهم شوې دې. (۶) خکه چه د ذی الحجه رومبې تاریخ د زیارت په ورځ وو په کوم کښې چه دهیڅ قسم اختلاف نشته دې نه د محدثینو په مینځ کښې اونه د مؤرخینو خکه چه د ټولو په دې باندې اتفاق دې چه وقوف عرفه د جمعه په ورځ شوې (بغیرد علامه واقدی رحمه الله نه چه دهغوی وینا ده چه وقوف عرفه د هفتې په ورځ شوې وو مګر دې قول سره علامه واقدی رحمه الله منفرددې وهذا لم یقله أحد غیره) (۷) کله چه په جمعه باندې نهم تاریخ (وقوف عرفه) اوشوه نو زیارت به اتم تاریخ وی لهذا هم د زیارت په ورځ به رومبې تاریخ هم وی نو په چارشنبه باندې دص ذوالقعده آخری تاریخ شو. اوس که پنځه ورځې شاته شې نو پنځه ویشتم تاریخ په هفته باندې کیږی او څلیریشتم په جمعه باندې کیږی

---

۱) حواله بالا.

۲) حواله بالا.

۳) کشف الباری: ۲۹۱/۱.

۴) أوجزالمسالک: ۸۰/۸.

۵) زادالمعاد: ۲/۳۰۲-۳۰۱وأوجزالمسالک: ۸۰/۸.

۶) هذا ما یفهم من عمدة القاری: ۲٤۱/۹وشرح الزرقانی علی الموطا: ۳٤۳/۲.

۷) أوجزالمسالک: ۸۰/۸.

او په روايت كښې دى چه پنځه تاريخونه باقى پاتې وو كله چه مونږ اووتلو. معنى دا شوه چه په ځليريشتم باندې اووتل او په ځليريشتم باندې وتل هم د جمعه ورځ كيدې شى.(١)
ددې صورت او د وړاندينى د ذكركولو صورت په وهم كښې فرق دادې چه «لخمس بقين» والاصورت كښې دجمعه ورځ شميرنه كړې شوه يعنى يوم الخروج شميرنه كړې شوه او د لست بقين والاصورت كښې د جمعه ورځ يعنى يوم الخروج هم شمير كړې شوه.
بهرحال د كلام حاصل دادې چه د امام طبرى رحمه الله په نيز وتل د جمعه په ورځ د ۲۴ ذى القعده په تاريخ شوى كومه چه فحش غلطى ده ځكه چه په صحيحين كښې دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه مونږ د وتلو په ورځ د ماسپښين مونځ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ځلورركعته اداكړه اود مازيگرمونځ دوه ركعته (قصر) مقام ذوالحليفه كښې اداكړو. نوكه چرې وتل د جمعه په ورځ شوې وې نو حضورپاك د جمعه مونځ ولې ادانه كړو؟(٢)
دويم قول(٣) دادې چه حضورپاك د حجة الوداع دپاره ۲۴ذى القعده د زيارت په ورځ روان شوې خو لاتردغې پورې د مياشت پوره كيدو كښې شپږ ورځې باقى پاتې وې (په دې شرط چه مياشت د شپږو او شميرلې شى ځكه چه كه مياشت د يوكم ديرشو شمير كړې شى نو بيا ۲۴ذى القعده باندې د جمعه ورځ راځى نه چه د زيارت) ځكه چه د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په ذوالحليفه كښې د شپې تيرولونه پس كله روان شو نوهغه وخت د ذى القعده پنځه تاريخونه باقى وو اوحضرت عمر رضي الله عنه فرمائى د حجة الوداع والاپه كال د عرفه وقوف دجمعه په ورځ شوې وو. لهذا د ذى القعده رومبې تاريخ د زيارت په ورځ اود ذى القعده آخرى تاريخ به د چارشنبې په روځ وى اودا خبره به صحيح وى چه د حضورپاك د حجة الوداع دپاره دمدينې طيبې نه خروج ذوالقعده په ختميدوباندې شپږ تاريخونه وړاندې د زيارت په ورځ اوشو. ددې قول نور وضاحت دحضرت انس رضي الله عنه د روايت نه كيږى چه مونږ د حضورپاك سره په مدينه كښې د ماسپښين مونځ ځلورركعته اداكړو. نوكه خروج پنځه تاريخه وړاندې وې نويقينا به هم د جمعه ورځ وه اودا امر فيصله شوې دې چه دجمعه په ورځ ځلور ركعته نه ادكيږى په دې وجه هم دغه متعين دى چه هم د زيارت په ورځ د حجة الوداع دپاره خروج كړې اوهسې به هم حضورپاك د زيارت په ورځ سفر كولو. دې نه هم خروج في يوم الجمعة قول باطل كيږى.(٣) داقول ابن حزم رحمه الله علامه عينى رحمه الله او په يوكنړشميركښې د شراح حديث اوحضرات مؤرخينو اختياركړې دې.(٤) اوهم دغه قول مشهورهم دې.(٥)
مگر په دې قول باندې اعتراض كيږى چه د حضرت عائشه رضي الله عنها اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما د صحيحين په روايت كښې خو راځى چه حضورپاك د حجة الوداع دپاره ذواقعده مياشت پوره كيدو نه پنځه ورځې وړاندې روان شو بيا د شپږو ورځو وړاندې والاقول څنگه صحيح كيدې شى؟ نوددې په جواب كښې ابن حزم رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله فرمائى په دې روايت كښې د خروج نه خروج من ذي الحليفة

---

(١) هذا مايفهم من عمدة القاري: ٢٤١/٩.
(٢) زادالمعاد: ٣٠٢/٢-٣٠١.
(٣) زادالمعاد: ١٠٣/٢-١٠٢عمدة القاري: ٢٤١/٩شرح الزرقاني على المؤطا: ٣٤٣/٢أوجزالمسالک: ٨١/٨
(٤) أوجزالمسالک: ٨١/٨.
(٥) حجة الوداع وعمرات النبي صلى الله عليه وسلم ص: ١٩.

مراد دي او ښکاره خبره ده چه د ذوالحليفه نه وتل د ذی القعده دمياشتې د پوره کيدونه ۵ورځې وړاندې وو.[1]

ليکن په دې تاويل او جواب باندې يو زبردست اشکال کيږی چه هم په بخاری شريف کښې په يو بل مقام باندې ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه «انطلق النبی صلی الله عليه وسلم من المدينة لخمس ليال بقين من ذي القعدة» يعنی حضورپاک د مدينې طيبې نه په داسې وخت کښې روان شو چه تردغه وخته پورې د ذی القعده پوره کيدو کښې پنځه شپې باقی وې. نو په دې روايت کښې د مدينې طيبې تصريح ده چه د خروج نه مراد خروج من المدينة دې لهذا دا تاويل قابل د قبلولونه دې.[2]

بل دعلامه ابن حزن رحمه الله د قول تائيد ددې روايت نه هم کيږی کوم چه علامه عينی رحمه الله د واقدی رحمه الله په حواله سره نقل کړی دی چه ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې: «أن هلال ذي الحجة كان ليلة الخميس اليوم الذي خامس من قوم خروجه» يعنی د ذی الحجه مياشت د زيارت په شپه د حجة الوداع داره د خروج اتمه ورځ وه. نو ددې روايت نه هم دغه مفهوم کيږی چه د حجة الوداع دپاره وتل د زيارت په ورځ وو. هم دا قول محی الدين عربی رحمه الله المسامرات کښې اختيارکړې. هغوی فرمائی: «وخرج رسول الله صلی الله عليه وسلم عائداً إلى مكة...... وذلك يوم الخميس لست بقين من ذي القعدة بعد أن صلى الظهر بالمدينة، فصلى العصر من ذلك اليوم بذي الحليفة، وبات ليلة الجمعة واستهل هلال ذي الحجة ليلة الخميس اليوم الثامن من يوم الخروج من المدينة......» يعنی خضورپاک دمکې طرف ته هد زيارت په ورځ د ذی القعده د پوره کيدونه شپږ ورځې وړاندې په مدينه کښې د ماسپښين مونځ اداکولونه پس او بيا هم ددغه ورځ د مازيگر مونځ په ذوالحليفه کښې اوکړو اوهم هلته ئی د جمعه د شپې قيام اوکړو اود مدينې نه د خروج په اتمه ورځ د زيارت په شپه د ذوالحجه مياشت ښکاره شوه.[3]

داقول علامه ابن قيم رحمه الله [4] صاحب الخميس [5] حافظ ابن حجر رحمه الله [6] علامه زرقانی رحمه الله [7] ملا علی قاری رحمه الله [8] علامه قسطلانی رحمه الله [9] علامه ابن کثير رحمه الله [10] اوابن هشام رحمه الله [11] وغيره اختيار کړې دې.

حافظ ابن کثير فرمائی چه حضورپاک دمدينې نه دحجة الوداع دپاره دذوالقعده پوره کيدونه ۵ تاريخه وړاندې روان شولکه چه په صحيحين کښې ابن عباس رضي الله عنهما[1] اوعائشه رضي الله عنها[2] د روايتونونه

[1] زادالمعاد: ۲/۱۰۴-۱۰۳ عمدة القاري: ۹/۲٤۱ أوجز المسالک: ۸/۸۱

[2] أوجز المسالک: ۸/۸۱

[3] أوجز المسالک: ۸/۸۱

[4] زادالمعاد: ۲/۱۰۳.

[5] أوجز المسالک: ۸/۸۲.

[6] فتح الباري: ۳/۵۱۹.

[7] شرح الزرقانی علی المؤطا: ۲/۳٤۳ وشرح الزرقانی علی المواهب اللدنية: ۱/۳۳۱.

[8] مرقاة المفاتيح: ۵/٤۹۵.

[9] إرشادالساري: ٤/۵۱.

[10] البداية والنهاية: ۵/۱۱۹.

[11] السيرة النبوية لابن هشام: ٤/۶۰۱.

ثابتیږی مګر د ابن حزم رحمه الله رائې داده چه د مدینې طیبې نه د زیارت په ورځ راوتلې لیکن د ابن حزم رحمه الله په رائې کښې نظر او اشکال دې ځکه چه د ذی الحجه رومبې تاریخ د زیارت په ورځ وو اودا خبره په تواترسره ثابته ده چه په هغه کال وقوف عرفه د جمعه په ورځ شوې وو اوچه کله دا خبره ثابته شوه چه وقوف عرفه د جمعه په ورځ شوې وو کوم چه د ذي الحجه نهم تاریخ دې نو یقینًا د زیارت په ورځ اولنې تاریخ شو اود چارشنبه په ورځ به د ذوقعده آخری تاریخ وی. اوس که پنځه ورځې شاته لاړشې نو خروج هم د جمعه په ورځ جوړیږی نه چه د زیارت په ورځ اودا خبره داول قول لاندې تیره شوې ده چه د جمعه دپاره د خروج قول کول فحش غلطی ده. لهذا چه کله د زیارت ورځ یوم الخروج نه شی جوړیدې اونه د جمعه ورځ نو یوم الخروج هفته خپل پخپله متعین شوه.(۳)

لیکن په دې قول باندې اشکال کیږی چه بیا خرجنا لخمس څنګه صحیح کیږی؟ ځکه چه هفته یوم الخروج ګرځولونه پس څو شاته څلور تاریخونه باقی پاتې کیږی. ددې اشکال یوجواب خودادې چه راوی میاشت د دیرشو شمیرکولو سره لخمس بقین وئیلې ووو مګر په اتفاق سره میاشت د یوکم دیرشو راؤوتله اوشاته ټول هم څلور تاریخونه پاتې شو.(۴)

ددې جواب نور وضاحت داسې اوګڼړئی چه ممکن دی میاشت د دیرشو په ځائی د یوکم دیرشو راوتلې وی اوراوی میاشت د پوره دیرشو شمیرکولوسره خبرورکړې وی ځکه چه عرب په عام توګه تاریخ خودلوکښې دخلقو دا عادت دې چه کله هغوی د میاشتې د باقی ورځو خبر ورکوی نوهغه مکمل اعتبارکولوسره خبرورکوی. بیا دا روستئی خبره ده چه میاشت د دیرشو راځی که د یوکم دیرشو اودا هم داسې ده لکه چه څوك په ۲۵ تاریخ باندې په څه کاغذ وغیره باندې دا اولیکی «لخمس بقین» اوبیا میاشت د یوکم دیرشو راؤځی.

بل که مونږ په ځائی د شپو د ورځو اعتباراوکړو نوبیاهم اشکال لرې کیدې شی ځکه چه د ایام په اعتبارسره بغیرد څه شك نه هم ۵ ورځې باقی وې اوداد عربو عادت دې چه کله په تاریخ کښې شپې او ورځې جمع شی نوهغوی د لیالی او اول شهر کیدود وجې نه ایام او ورځو باندې غالب ساتی نوکله څو ذکر د لیالی کوی اوددې نه مراد ایام وی.(۵)

ددې اشکال یوجواب داهم دې چه راوی یوم الخروج هم تسلیم کړې وو په دې وجه ئی لخمس بقین اووئیل. ددې دوارو جوابونو تائید دحضرت جابر رضي الله عنه ددې قول نه هم کیږی چه «أنه خرج لخمس بقين من ذي القعدة أو الأربع»(۶) یعنی حضورپاك د ذی القعده دپوره کیدو نه پنځم یا څلورم تاریخ باندې روان

---

(۱) صحيح البخارى كتاب الحج باب مايلبس المحرم من الثياب والأردية والأزر رقم الحديث: ۱۵۴۵.

(۲) صحيح البخارى كتاب الحج باب مايأكل من البُدن وما يتصدق رقم الحديث: ۱۷۲۰ومسلم كتاب الحج باب بيان وجوه الإحرام الخ رقم الحديث: ۲۹۲۵.

(۳) البداية والنهاية: ۱۱۹/۵-۱۱۷.

(۴) زادالمعاد: ۱۰۵/۲البداية والنهاية:۱۱۹/۵أوجزالمسالك: ۸۲/۸.

(۵) زادالمعاد: ۱۰۵/۲.

(۶) البداية والنهاية: ۱۱۹/۵أوجزالمسالك:۸۲/۸ وهذا لفظ البيهقى من طريق أحمد بن حفص بن عبدالله عن أبيه عن إبراهيم بن طهمان عن جعفر بن محمد عن أبيه عن جابر. (دلائل النبوة: ۴۳۲/۵).

شو. او په مکه مکرمه کښې حضورپاك ۴ ذوالحجه باندې داخل شو لکه چه صحیح بخاری او صحیح مسلم کښې موجود د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د حدیث نه ثابتیږي. د صحیح بخاری د روایت الفاظ دادي ((فقدم مكة لأربع ليال خلون من ذي الحجة)) یعنی حضورپاك په مکه مکرمه کښې ۴ ذی الحجه باندې داخل شو.(١) اوهغه د اتوار ورځ وه کله چه حضورپاك په مکه کښې داخل شو. د دخول مکه د اتوار په ورځکیدلو نه هم ددې خبرې تائید کیږي چه د مدینې نه روانیدل د هفتې په ورځ شوی.(٢) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ددې قول تائید د ابن سعد اوحاکم رحمهما الله نه په إکلیل کښې نقل شوی روایت نه هم کیږي چه رسول الله ﷺ د مدینې نه د هفتې په ورځ روان شواو دغه وخت لا د ذوالقعده پنځه تاریخونه باقی وو.(٣)

**دعلامه ابن قيم رحمه الله د استدلال طرز:** علامه ابن قیم رحمه الله فرمائی چه ۲۵ ذی القعده د هفتې په ورځ د وتلو قول ځکه اختیارکړې شو ځکه چه په حدیث کښې صراحت دې چه حضورپاك ﷺ د ذی قعده دمکمل کیدونه ۵ تاریخونه وړاندې روان شو اوهغه پنځه تاریخونه د هفتې اتوار پیر نهې او چارشنبې ورځې دی. اوس که د ابن حزم رحمه الله قول تسلیم کړې شی نود الخمس بقين په ځائی به لسبع بقين شی اوکه یوم الخروج یعنی زیارت شمیرنه کړی نو بیاهم لست بقين جوړیږي او که دا دواړه لست بقين وی یا لسبع بقين وی دحدیث نه خلاف دی. اوکه په ځائی د ورځو د شپو اعتبار اوکړې شی نوبیابه هم لست بقين جوړشی، لخمس بقين په هیڅ صورت نه جوړیږي. لهذا د زیارت په ورځ د خروج قول کولو په صورت کښې حدیث ((لخمس بقين من ذي القعدة)) او ((خروجه في يوم الخمس)) کښې جمع ممکن نه ده لیکن که په یوم السبت کښې خروج تسلیم کړې شی نو یوم الخروج یعنی هفتې سره شاته هم پنځه ورځې بچ کیږي. بل د روانیدو نه وړاندې دحضورپاك خلقو ته داحرام او لباس وغیره متعلق په منبر باندې اودریدو سره تعلیم ورکول هم په دې باندې دلالت کوی چه د حجة الوداع دپاره روانیدل دهفتې په ورځ اوشو ځکه داسې تعلیم ورکول او خطبه بیانول ښکاره خبره ده چه د جمعې په ورځ وو ځکه چه که چرې بله ورځ وه نوحضورپاك به دخلقو د راجمع کولودپاره اعلان کولو لیکن داسې هیڅ نقل نه دی. لهذا ښکاره خبره ده چه دا خطبه تعلیمی ئې هم د جمعه په ورځ ارشاد فرمائیلې ده او بیا په هفته باندې د مدینې نه روان شو.(٤)

**د شيخ الحديث زكريا رحمه الله رائې:** شیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله فرمائی چه زما په نیزد ابن قیم رحمه الله قول راجح دې ځکه چه دمکې او د مدینې مینځمې منزلونه په دې واقعه کښې اود ابن عمر رضي الله عنهما حدیث المساجد کښې، تول اته دی. دا حدیث امام بخاری رحمه الله روایت کړې دې او په دې کښې د مکې اومدینې مساجد شمیر کړی دی.(٥)

---

(١) رواه الإمام البخاری فی الحج باب مایلبس المحرم من الثياب والأردية والأزر رقم الحديث: ١٥٤٥ والإمام مسلم في الحج باب جواز العمرع فی أشهر الحج رقم الحديث: ٣٠١٠، ٣٠١٣-٣٠١٢.

(٢) فتح الباري:٥١٩/٣ أوجز المسالك: ٨٢/٨ مرقاة المفاتيح: ٤٦١/٥.

(٣) فتح الباري:٥١٩/٣.

(٤) زادالمعاد: ١٠٣/٢.

(٥) صحيح البخاری كتاب الصلاة باب المساجد لاتی على طرق المدينة الخ رقم الحديث: ٤٩٢-٤٨٣.

نو ښکاره خبره ده چه روانیدل ۲۵ تاریخ د ذیقعده د هفتې په ورځ اوشوه، دا میاشت د ۲۹ ورځو وه او د ذوالحجه رومبۍ په اتفاق سره د زیارت ورځ وه او حضورپاک مکې ته رسیدل هم په اتفاق سره ۴ ذی الحجه د اتوار په ورځ شوي وو. او البدایه والنهایه[1] کښې چه کوم په روایت د بخاري شریف ۵ ذوالحجه قول دې داد کتابت غلطي ده ځکه چه په دې حدیث کښې صحیح بخاری[2] الفاظ دادي پس حضورپاک د ذوالحجه څلور شپې تیریدو باندې مکې مکرمې ته تشریف راوړو دغه شان ټول روایات جمع کیږي. [3]

حاصل د کلام دادې چه یوم الخروج په سلسله کښې درې اقوال دی. رومبۍ قول د امام طبری رحمه الله د چه جمعه یوم الخروج ګرځو. دویم قول د ابن حزم رحمه الله او علامه عینی رحمه الله اونورو ډیرو شراحو حدیث رحمهم الله دې چه زیارت یوم الخروج ګرځوی. او دریم قول د علامه ابن قیم رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله ملاعلي قاري اونور محققین علماؤ رحمهم الله دې چه هفته یوم الخروج ګنړی او هم دغه قول د احادیث صحیحه موافق دې. والله اعلم.

**د «لانری الا الحج» محل اعراب:** داجمله حالیه ده کومه چه په محل د نصب کښې واقع ده. «لانری» بضم النون «لانظن» په معنی کښې دې.

**ایا ټول خلق د حج په احرام کښې وو؟:** د **الاالحج** معنی ده "**الاقصدالحج**" چه زمونږ صرف دحج اراده وه ځکه چه په شروع کښې به اهل عرب د حج په میاشتو کښې عمره کول ممنوع ګنړله. په دې وجه حضرت عائشه رضي الله عنها د پخوانو عقائدو مطابق خبر ورکړو چه زمونږ صرف د حج اراده وه یا بیا حضرت عائشه د اکثریت باره کښې خبر ورکړو چه اکثر خلق د حج په اراده سره روان وو او بیا حضرت عائشه رضي الله عنها د رسول الله صلی الله علیه وسلم باره کښې ښائی چه حضورپاک دحج په اراده سره وو. ځکه چه ترکومې دپخپله دحضرت عائشه رضي الله عنها د احرام تعلق دې نوهغې دعمرې احرام تړلې وو. [4]

**احرام سره متعلق متعارضه روایات:** حضرت قاسم [5] عمره بنت عبدالرحمن [6] او اسود [7] رحمهم الله په روایاتو کښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه زمونږ صرف دحج اراده وه لیکن دحضرت عروه بن زبیر رحمه الله په روایت کښې دی «**فأهللنابعمرة**» [8] دویم روایت کښې دی «**منامن أهل بعمرة ومنامن أهل بحجة وعمرة ومنامن أهل بالحج**» چه صرف دحج اراده نه وه بلکه په مونږ کښې بعض د عمره په احرام کښې وو بعض دحج اوعمره دواړو په احرام کښې وو او بعض د حج په احرام کښې وو. [9] داسې

---

[1] ۱۱۷/۵.

[2] صحیح البخاری کتاب الحج باب مایلبس المحرم من الثیاب والأردیة والأزر رقم الحدیث: ۱۵۴۵.

[3] حجة الوداع وعمرات النبی صلی الله علیه وسلم ص: ۱۹ تقریر بخاری: ۱۸۳/۲.

[4] عمدة القاری: ۳/۳۸۱. ابن التین رحمه الله فرمائی چه بعض حضراتو لاتری بفتح النون هم ضبط کړې دې عمدة القاری: ۳۸۰/۳.

[5] نفس هذه الروایة وفی باب تقضی الحائض المناسک کلها الخ رقم الحدیث: ۳۰۵.

[6] صحیح البخاری کتاب الحج باب ذبح الرجل البقر عن نسائه من غیر أمرهن رقم الحدیث: ۱۷۰۹.

[7] صحیح البخاری کتاب الحج باب التمتع والقران والإفراد الخ رقم الحدیث: ۱۵۶۱.

[8] صحیح البخاری کتاب الحج باب کیف تهل الحائض الخ رقم الحدیث: ۱۵۵۶.

[9] صحیح البخاری کتاب الحج باب التمتع والقران والإفراد الخ رقم الحدیث: ۱۵۶۱.

دحضرت قاسم حضرت عمره بنت عبدالرحمن او حضرت اسود رحمهم الله اوحضرت عروه رضي الله عنه په رواياتوكښې تعارض پيداشو.[1]

**د علامه كرماني اوعلامه زرقاني رحمهماالله رائې:** علامه كرماني اوعلامه زرقاني رحمهماالله وغيره په دې دواړه قسم رواياتوكښې تطبيق وركولوسره فرمائي چه اولنى قسم روايات (كوم چه په احرام د حج باندې دلالت كوى) د امر په شروع باندې محمول دى چه كله دمدينې نه روانيدل نوهغه وخت دټولو اراده د حج وه ځكه چه په شروع شروع كښې د دغه خلقو ګمان وو چه د حج په مياشتوكښې عمره كول منع دى. اودويم قسم روايات د امر په آخر باندې محمول دى چه كله مقام سرف ته اورسيدل نو حضورپاك د خلقو په وړاندې د احرام مختلف صورتونه بيان كړل اودهغوى دپاره ئې د حج په مياشتوكښې عمره جائز اوګرځوله. لهذا ((لانرى إلا الحج)) كښې د روانيدو د وخت د ارادې بيان دې. او ((فمنا من أهل بعمرة الخ)) كښې دمقام سرف د رسول الله ﷺ د خطبې وركولونه پس چه كوم صورت پيښ شو دهغې بيان دې.[2]

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر دغه پورتنې تطبيق ذكركولونه پس دحضرت عروه بن زبيرنه نقل شوى روايات ذكركوى په كوم كښې چه دى رسول الله ﷺ د حج په مياشتوكښې عمره كول جائزاوګرځول[3] بيا اوفرمائيل چه امام بخارى ((باب التمتع والقران والإفراد الخ)) كښې د ابن عباس رضي الله عنهما داقول هم ذكر كړې دې په كوم كښې چه دى اهل عرب به دحج په مياشتوكښې عمره كول ګناه ګڼړله[4] لكه چه امام بخارى پخپله هم په دواړه قسم رواياتوكښې دتطبيق صورت طرف ته اشاره كړې ده.[5]

**د ملاعلي قاري رحمه الله رائې:** ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي ((لانرى إلا الحج)) مطلب دادې چه په دې سفرسره زمونږ اصل اراده د حج وه دعمره سره متعلق نه وه نو زمونږ په ذهنونوكښې خبره داده اونه مونږ دحج په مياشتوكښې د عمره كولوباره كښې معلومات لرل. چنانچه امام بخارى رحمه الله د حضرت عائشه رضي الله عنها نه ورايت نقل كړې دې چه كله صحابه كرام رضي الله عنهم د رسول الله ﷺ په ملګرتياكښې روان شو نوهغوى صرف د حج اراده لرله. روستو بيا حضورپاك دهغوى په وړاندې د احرام دنورو صورتونو بيان اوكړو.[6] اود حج په مياشتوكښې عمره كول ئې جائزاوګرځول.[7]

---

[1] شرح الكرماني: ٨٢/٨شرح الزرقاني على الموطا: ٣٤٤/٢فتح الباري: ٥٤٠/٣عمدة القاري: ٢٦٢/٩أوجز المسالك: ٨٤/٨-٨٣

[2] شرح الكرماني: ٨٢/٨شرح الزرقاني على الموطا: ٣٤٤/٢فتح الباري: ٥٤٠/٣عمدة القاري: ٢٦٢/٩أوجز المسالك: ٨٤/٨-٨٣

[3] صحيح البخارى كتاب العمرة باب الاعتمار بعدالحج الخ رقم الحديث: ١٧٨٦مسندالإمام أحمدمسندعائشة رضى الله عنها رقم الحديث: ٢٦٦١٤.

[4] صحيح البخارى كتاب الحج باب التمتع والقران والإفراد الخ رقم الحديث: ١٥٦٤

[5] فتح الباري: ٥٤٠/٣.

[6] صحيح البخارى كتاب العمرة باب الاعتمار بعدالحج الخ رقم الحديث: ١٧٨٦.

[7] مرقاة المفاتيح: ٤٦١/٥.

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه ددې قول مطابق «لانری إلا الحج» کښې د سفرد استثناء نور قسمونه مثلاً د جهادد سفر وغیره په اعتبار سره به وی. (۱)

**دعلامه رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله رائې:** علامه ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه «لانری إلا الحج» والا روایت کښې حضرت عائشه رضي الله عنها مجازاً د ټولو صحابه کرامو د فعل نسبت خپل خان طرف ته کړې دې لکه چه د حضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل دی: «فلما قدمنا تطوفنا» (۲) بیاچه کله مونږ مکې ته اورسیدو نومونږ طواف اوکړو خودا متعین ده چه حضرت عائشه رضي الله عنها په طواف کونکوکښې شامل نه وه ځکه چه هغه حائضه وه خوبیائی هم د صحابه کرامو د جماعت د فعل نسبت خپل خان طرف ته کوی. (۳)نودا نسبت مجازاً دې او نور احرام حج او اهلال عمره والا روایاتوکښې د حقیقت بیان دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه: «فلما قدمنا تطوفنا بالبیت» عام خص منه البعض د قبیل نه دې او مطلب دادې چه بغیرد حضرت عائشه رضي الله عنها نه باقی ټولو طواف اوکړو اودا تخصیص پخپله حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائیلې دې. هغه فرمائی: «فحضت فلم أطف» ماد حیض د وجې نه دبیت الله طواف اونه کړې شو. ددې نه داخبره واضحه کیږی چه "تطوفنا" عام خص منه البعض د قبیل نه دی. (۴)

**د علامه ابوالحسن سندهی رحمه الله رائې:** علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه «لانری إلا الحج» معنی داده چه دکوم مقصد دپاره د خروج تحقق شوې ووهغه حج وو. بیاچاچه عمره اوکړه نوهغه عمره د حج تابع وه اوداسې د حضرت عائشه رضي الله عنها د قول چه هغه دعمرې په احرام کښې وه او «لانری إلا الحج» به نی د اکثریت په اعتبارسره ونیلی وی او «لبینا بالحج» او «مهلین بالحج» والا احادیثوکښې هم دغه دویم احتمال متعین دې. اود رومبی احتمال په اعتبار سره به د دغه احادیثو متعلق ونیلی شی چه ممکن دی بعض راویانو دحضرت عائشه رضي الله عنها قول «لانری إلا الحج» نه دا معنی ګنړلې وی چه هغې هم د حج احرام تړلې وو. نوبیا دغه راویانو هم دا مفهوم نقل کول بالمعنی کولوسره «لانری إلا الحج» په ځائې «لبینا بالحج» او«مهلین بالحج» سره ادا کړل اوداسې کیدل بعیدهم نه دی ځکه چه ډیر ځل روایاتوکښې اختلاف او اضطراب هم ددې نقل بالمعنی په وجه سره شوی دی «ولاأری عاقلاً یشك فیه». (۵)

**دحضرت عائشه رضي الله عنها احرام دحج افراد ووکه دحج تمتع؟** علامه ابن قیم رحمه الله فرمائی دحضرت عائشه رضي الله عنها په قصه کښې د علماؤ اختلاف دې چه دهغې احرام د حج تمتع وو که صرف د حج افراد وو؟ اوکه چرې د تمتع وو نو آیا هغې عمره فسخ کړې وه اود حج افراد احرام ئې تړلې ووبا په عمره باندې د حج احرام تړلوسره ئې قران کړې وو؟ اوکومه عمره چه هغې دتنعیم نه کړې وه هغه په دې باندې واجب وه که نه؟ اودحضرت عائشه قصې سره چه کومه مسئله تړلې ده په هغې کښې هم د علماؤ اختلاف اوشو او هغه دا دې چه ښځې کله د عمرې احرام تړلې وی اوهغې ته حیض اوشی او

---

۱) أوجزالمسالک: ۸٤/۸.

۲) سنن أبی داؤد، کتاب المناسک باب فی إفراد الحج رقم الحدیث: ۱۷۸۳-۱۷۸۲، صحیح البخاری کتاب الحج باب التمتع والقران والإفراد الخ رقم الحدیث: ۱۵۶۱.

۳) بذل المجهود: ۱۱۲/۷أوجزالمسالک: ۸٤/۸.

٤) فتح الباری: ۵٤۰/۳.

۵) حاشیة السندی علی صحیح البخاری: ۳۱۰/۱-۳۰۹،هامش بذل المجهود: ۱۱٤/۷.

دعرفات دتلونه وړاندې طواف نه شي كولى نوآيا هغې له دعمرې احرام فسخ كلوسره د حج افراد احرام ترل پكاردى يا په عمره باندې د حج احرام ترلوسره قران اوكړې؟ چنانچه فقهاء كوفه په كوم كښې چه امام ابوحنيفه رحمه الله اود هغه ملگرى شامل دى د ړومبى قول قائل دى او فقهاء حجاز امام شافعى او امام مالك رحمهما الله د دويم قول قائل دى اوهم دغه مذهب د امام احمد رحمه الله اود متبعينودې.(١)

**دحضرت عروه رحمه الله په روايت باندې نقد**:شيخ ابى رحمه الله شرح مسلم كښې فرمائى چه د حضرت عائشه رضي الله عنها د احرام سره متعلق روايت مختلف دى. دحضرت عروه رحمه الله په روايت كښې دى. «**أهللنا بعمرة**» خود قاسم رحمه الله په روايت كښې دى«**لبينا بالحج**» اوهم د قاسم رحمه الله په دويم روايت كښې دى «**لانعرف إلا الحج**» اودا دواړه روايتونو په دې امر كښې صريح دى چه حضرت عائشه رضي الله عنها د حج په احرام كښې وه اود اسود رحمه الله په روايت كښې دى: «**ملبين لانذكر حجاً ولا عمرةً**» (٢)

نورفرمائى د علماء حديث حضرت عائشه رضي الله عنها دكوم چه دحضرت عروه رحمه الله په طريق سره نقل دې، كښې هم اختلاف دې. چنانچه امام مالك رحمه الله فرمائى «**ليس العمل على حديثها قديماً ولا حديثاً**».(٣)

قاضى اسماعيل رحمه الله فرمائى: حضرت عائشه رضي الله عنها د حج په احرام كښې وه ځكه چه داد اكثر روايت دېلكه عمره، قاسم اواسود رحمهم الله.

دحضرت عروه رحمه الله روايت غلط اوگرځولې شو او بيا هم دغه تغليط ته ترجيح هم وركړې شوه. دكوم سبب چه دا بيان كړې شو چه حضرت عروه رحمه الله د حماد رحمه الله په روايت كښې فرمائى «**حدثني غيرواحد أن النبي صلى الله عليه وسلم قال لها: دعي عمرتك**» دكوم نه چه دا واضحه كيږى چه حضرت عروه رحمه الله دحضرت عائشه رضي الله عنها نه داحديث پخپله نه دې اوريدلې اونه ددې سره متعلق څه وضاحت په حديث كښې موجود دې. البته ددې خبرې هم احتمال دې چه دحضرت عروه رحمه الله نه د حديث بيانونكوكښې يوحضرت عائشه رضي الله عنها هم وى. بل دحضرت قاسم رحمه الله اوحضرت عمره رحمه الله په روايت كښې د حضرت عائشه رضي الله عنها د حج د عمل نقشه د شروع نه ترآخره پورې راښكلې شوې ده. په دې وجه د حضرت يحيى رحمه الله اوحضرت عمره رحمه الله روايت كله قاسم رحمه الله ته بيان كړې شو نوهغوى اوفرمائيل: «**أتتك والله بالحديث على وجهه**» (٤)

**د حافظ ابن حجر رحمه الله دطرف نه ددې نقد جواب**:ددې نقد په جواب كښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دحضرت عروه رحمه الله نص، نص صريح دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها دعمرې په احرام كښې وه. خود اسود رحمه الله وغيره حديث اهلال حج كښې صريح نه دې لهذا د حضرت عروه رحمه الله د روايت دتغليط په ځائې به جمع بين الروايتين اختيارولې شي. «د كوم صورت چه دادې چه داحرام حج والاروايات د امر په شروع باندې محمول دى او اهل عرب اشهرحج كښې عمره ناجائزگڼرله بيا چه كله حضورپاك د حج په مياشتوكښې دعمرې كولواجازت وركړو نوبيا چاد حج او د عمرې دواړو احرام ترلې وو نوچا صرف

١) زادالمعاد: ٢/١٦٧-١٦٦أوجزالمسالك: ٨/٤٠١-٤٠٠لامع الدرارى: ٥/٢٠٨.

٢) إكمال إكمال المعلم: ٣/٣٢٤أوجزالمسالك: ٨/٤٠١.

٣) كذا فى الأصلو ولعل الصواب: حديث عروة عن عائشة. كما فى الفتح: ٣/٥٤٠والعبدة: ٩/٢٦٢.

٤) إكمال إكمال المعلم: ٣/٣٢٤أوجزالمسالك: ٨/٤٠١.

دحج یاصرف د عمرې احرام تړلې وو او دحضرت عروه رحمه الله په روایت کښې هم ددې بیان دې. ځکه چه دحضرت عروه رحمه الله «أعلم الناس بحديثها» یعني حضرت عائشه رضي الله عنها حدیث دټولو نه زیات پیژندونکې دې. بیا داخبره هم نه ده چه حضرت عروه رحمه الله په دې حدیث کښې متفردوی ځکه چه صحابی رسول حضرت جابر رضي الله عنه (۱) حضرت مجاهد رحمه الله او حضرت طاووس رحمه الله دهغوی موافقت کړې دې. (۲)
شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه ددې حضراتو ټول روایات امام مسلم رحمه الله نقل کړی دی په کوم کښې چه دحضرت عائشه رضي الله عنها احرام عمره تصریح ده لهذا ددې روایات صریحه حضرت قاسم رحمه الله او نورو حضراتو روایات محتمله مجمله په مقابله کښې اولی وی. (۳)
د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها داحرام سره متعلق په مختلفو روایاتوکښې حافظ ابن حجر رحمه الله یوبل تطبیق هم بیان کړې دې اوهغه دادې چه حضرت عائشه رضي الله عنها په شروع کښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د نورو صحابه کرامو په شان د حج افراد احرام تړلې وو اوهم د دغه حالت حضرت اسود، قاسم اوعمره رحمهم الله په روایاتوکښې بیان کړې دې. بیا حضورپاك «فسخ الحج إلى العمرة» حکم اوفرمائیلو نوحضرت عائشه رضي الله عنها هم دنورو صحابه کرامو رضي الله عنهم په شان حج فسخ کړو اود عمره احرام ئې اوتړلو اوهم ددې حالت په حدیث عروه رحمه الله کښې بیان دې. بیا حضرت عائشه رضي الله عنها د حیض په حالت کښې مکې ته داخله شوه نودحیض د وجې نه ئې طواف نه شو کولې نوحضورپاك په دې موقع باندې دوباره د حج احرام دتړلو حکم ورکړو. (۴)
**دحافظ ابن حجر رحمه الله په ذکرکړې شوی تطبیق باندې دکلام په ذریعه یوڅو وجوهات:** شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه د تطبیق دې صورت طرف ته امام نووی رحمه الله (۵) او نور حضرات رحمهم الله مائل دی مګر دا تطبیق او توجیه د یوڅو وجوهاتو په سبب صحیح نه دی.
**دومبۍ وجه** رومبې وجه داده چه دحضرت عروه رحمه الله روایات د کوم د وجې نه چه ددې تطبیق ضرورت پیښ شو. بلکه هغه روایات ددې تطبیق نه انکارکوی ځکه چه په دې روایات کښې صراحت سره ذکر دی چه صدیقه عائشه رضي الله عنها شروع کښې سواء د عمره بل څه احرام نه وو تړلې. چنانچه امام بخاری رحمه الله «عقيل عن الزهري عن عروة عن عائشة» په طریق سره روایت نقل کړې دې. (۶) په کوم کښې چه دی «ولم أهلل إلا بعمرة فأمرني أن أنقض رأسي وأهل بالحج وأترك العمرة ففعلت ذلك» په دې حدیث کښې صراحت دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها د شروع نه د عمرې په احرام کښې وه.
**دویمه وجه:** دویمه وجه داده چه په ډیرو احادیثوکښې دا تقسیم بیان کړې شوې دې چه کله حضورپاك دا اوفرمائیل «من أحب أن يهل بعمرة فليهل» نوبعض د عمرې احرام اوتړلو او بعض د حج. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه «وكنت ممن أهل بعمرة» یعنی زه د هغه کسانو نه ووم چاچه دعمرې احرام تړلې وو.

---

۱) رواه الإمام مسلم في كتاب الحج باب بيان وجوه الإحرام وأنه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران الخ رقم الحديث: ۲۹۳۷، ۲۹۳۳.
۲) فتح الباری: ۵۴۰/۳ أوجز المسالک: ۴۰۲/۸.
۳) أوجز المسالک: ۴۰۲/۸.
۴) فتح الباری: ۵۴۰/۳.
۵) المنهاج للنووی المعروف بشرح النووی: ۳۸۶/۸. ابی صاحب الإکمال إکمال إکمال العلم: ۳۲۴/۳.
۶) صحیح البخاری کتاب الحیض باب کیف تهل الحائض بالحج والعمرة رقم الحدیث: ۳۱۹.

په دې باندې دا اشكال نه شي كيدې ((وكنت ممن أهل بعمرة)) نه مراد هغه عمره ده د كوم احرام چه د حج د فسخ كولونه پس تړلې وو ځكه چه كه چرې دا احرام د فسخ حج نه پس احرام وې نو بيا ((وكنت ممن أهل بعمرة)) او ((من أهل بحج)) كښې به څنګه تقابل صحيح كيدلو؟ بل د دې حديث نه هم زيات واضحه الفاظ دحضرت جابر رضي الله عنه د روايت دى. (۱) په كوم كښې چه دى: ((وأقبلت عائشة بعمرة)) حضرت عائشه رضي الله عنها د عمرې په احرام سره راغله.

**دريمه وجه:** دريمه وجه داده چه كوموخلقو دحج احرام تړلې وو نوهغوى دحكم ملاويدلونه پس خپل خپل احرامونه د حج دعمرې د افعالو په ذريعه فسخ كړې وو نو په دې موقع باندې خو حضرت عائشه رضي الله عنها په حيض كښې وه بيا آخر هغې خپل احرام حج (كه چرې د حج احرام تسليم كړې شي) څنګه فسخ كړې وى؟ ځكه چه هغه خودحيض د وجې نه د عمرې د افعالود اداكولونه قاصر وه. لهذا حقيقت دكوم نه چه عدول نه شى كيدلې هم دغه دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها په شروع كښې دعمرې احرام تړلې وو كمال قال به الجمهور.

**دجمهورو پخپل مينځ كښې اختلاف:** سره ددې چه وړاندې تلوسره د جمهورو په خپل مينځ كښې اختلاف دې چه آيا حضرت عائشه رضي الله عنها دعمرې احرام فسخ كولوسره د حج احرام تړلې وو يا هم په دغه احرام باندې د حج احرام داخلولو سره قارنه شوې وه؟(۲)

چنانچه احناف حضرات د ړومبى قول قائل دى اوحضرات ائمه ثلاثه د دويم قول. اودا اختلاف په اصل كښې په يوبل اختلاف باندې مبنى دى هغه دا چه د احنافو حضراتو په نيز قارن، عمره اوحج دواړو افعال جدا جدا او مستقل ادا كوى. نود حضرت عائشه رضي الله عنها د پاره خودا ممكن نه وه چه د حج د وخت نه اول د عمرې دپاره افعال اداكړې شى لامحاله دهغې دپاره عمره فسخ كولو سره ئې د حج احرام اوتړلو. او ائمه ثلاثه فرمائى چه دعمرې افعال به د حج په افعال كښې داخل شى. چونكه دحج نه وړاندې هغې د عمرې افعال نه شو اداكولې په دې وجه دهغې د پاره ګنجائش وو چه هغه دې دعمرې په احرام باندې د حج احرام اوتړى. (۳)

**د احنافو مستدلات:** حضرات احنافو په خپله دې مدعا باندې چه حضرت عائشه رضي الله عنها عمره فسخ كړې وه په مختلفو وجوهاتوسره استدلال كړې دې يو داچه حضورپاك صلى الله عليه وسلم حضرت عائشه رضي الله عنها ته فرمائيلى وو ((دعي عمرتك)) چه خپله عمره پريږده.(۴)

دويمه وجه داده چه حضورپاك داهم فرمائيلى وو ((امتشطي وانقضي رأسك))(۵) چه خپل سركولاؤكړه ګمنزئى كړه. ښكاره خبره ده چه د احرام په حالت كښې ګمنز كول جائزنه دى ځكه چه د ويښتو پريوتو خطره وى. اوس په دې مقام باندې دا تاويل كول چه ګمنزپه داسې طريقه اوكړه چه د سرويښته مات نه

---

۱) رواه الإمام مسلم فى كتاب الحج باب بيان وجوه الإحرام، وأنه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران الخ رقم الحديث: ۲۹۳۷.

۲) أوجز المسالک: ۴۰۳/۸-۴۰۲.

۳) أوجز المسالک: ۴۱۲/۸لامع الدرارى: ۲۰۹/۵.

۴) صحيح البخارى: كتاب الحيض باب نقض المرأة شعرها عندغسل المحيض رقم الحديث: ۳۱۷وكتاب العمرة باب الاعتمار بعدالحج بغيرهدى، رقم الحديث: ۱۷۸۶.

۵) المرجع السابق.

شي ډير ضعيف تاويل دې اوحديث د ظاهر خلاف دې ځكه چه په يقيني توګه باندې «انقضي رأسك وامتشطي»به د عمرې د احرام د ختمولو سره كنايه منلې كيږي ځكه چه داحرام په حالت كښې نه سر كولاوولې شي اونه ګمنزولې شي. او په دې تقدير باندې به د رسالت مآب ﷺ د ارشاد مطلب داشي چه دعمرې وخت خو اووتلو په دې وجه دهغې احرام ختم كړئي اود حج احرام اوتړئي او احرام ئې داسې اوتړلو چه اول ئې دغسل حكم وركړو لكه څنګه چه د سنن ابي داؤد په روايت كښې دې ځكه چه په احرام كښې غسل مسنون دې. دغه شان د سر ويښته كولاوول اود ګمنزكولوحكم ئې هم وركړو او ښكاره خبره ده چه دا ټول احكام هغه وخت وركړې شو چه د عمرې احرام ختمول مقصود وو. كه چرې هم دغه احرام باقي ساتل مقصود وې نود سركولاوولو او ګمنزولو څه ضرورت وو؟ داسې صورت خو وونه چه په دغه ځادر باندې بل ځادر تړلې كيدو بلكه صرف د نيت بدلولو ضرورت وو. بيا چه كله حضورپاك د عمرې احرام ختم كړو نوښكاره خبره ده چه حضرت عائشه ﷺ قارنه نه شوه بلكه مفرده شوه. معلومه نه ده چه شوافع څنګه د عمرې په احرام باندې د حج احرام مني. د حضورپاك په ارشاداتو كښې خوادا خبره بالكل واضح ده چه حضورپاك د عمرې نه دمنع كيدو هدايت كړې وو لكه څنګه چه په دغه پورته ذكر كړې شوى مختلف الفاظ د حديث دعمرې احرام فسخ كولو باندې واضحه دلالت كوى. (١)

علامه قسطلاني ﷫ فرمائي چه د عمرې پريخودلو مفهوم دادې چه دعمرې افعال پريږدى. دغه شان «أمسكي عن عمرتك»سره متعلق تاويل كړې شوې دې چه احرام خو دې هم هغه شان پاتې وى البته افعال مؤخر كړه. سوال دادې چه كله عمره د طواف او سعى نوم دې اودا دواړه افعال حج سره ادا شوى دى نوبيادتاخيركولومقصدڅه دې؟ بيا چه كله حج سره دعمرې فرائض هم اداكړې شو نوعمره اوشوه اود شوافع دمذهب مطابق هغه قارنه اوګرځولې شوه. اوس جدا عمره كول اوهغه د سابقه عمرې د پاره بدل ګرځول څه معنى لرى؟ كله چه مبدل منه موجود دې نو د بدل څه مطلب؟ حضرات شوافع وائي چه عمره خوشوې وه مګر عائشه ﷺ ته تسلى نه وه دهغې دتسلئى دپاره ئې دوباره عمره اوكړه. جواب دادې كه چرې هم دغه وجه وه نوبيا د«مكان عمرتي التي نسكت» وئيلو څه ضرورت وه؟ اوكه چرې حضرت عائشه ﷺ دغه شان قارنه اومنلې شي اويو طواف اوسعى هم كافي اومنلې شي نوبيا خو دلته بغيرد ارادې نه د حضرت عائشه ﷺ عمل د پيغمبر ﷺ د عمل موافق شوې وو. ددې نه زيات د خوشحالئى او تسلئى دهغې دپاره څه كيدې شوچه دهغې عمل د حضورپاك د عمل موافق شو. مګر د حيرانتياخبره داده چه حضورپاك دهغې د زړه د ساتنې دپاره دويمه عمره خو وربانده كوى مګر دا نه فرمائي چه غم ولې كوې ته خو هم زما په شان قارنه يئې. (٢)

دريمه وجه داده چه حضورپاك ﷺ فرمائيلي وو«هذه عمرتك مكان عمرتك»(٣) داستا عمره ده اوداد عمرې خائي څلورمه وجه دا چه حضرت عائشه ﷺ عرض كړې وو «أعتمرتم ولم أعتمر»(٤) پنځمه وجه داچه

(١) إيضاح البخاري: ١١/١١٦-١١٥.
(٢) إيضاح البخاري:١١/١١٦.
(٣) صحيح البخاري: كتاب الحج باب كيف تهل الحائض والنفساء رقم الحديث: ١٥٥٦.
(٤) صحيح البخاري: كتاب الحج باب الحج على الرحل، رقم الحديث: ١٥١٨.

حضرت عائشه رضي الله عنها په ډيرښه انداز كښې فرمائيلى وو «أتنطلقون بحج وعمرة وأنطلق بحج؟» [1] چه تاسو خودې حج او عمره دواړه كولوسره لاړشئ او زه به صرف حج كوم څم به؟ د مسند احمد الفاظ څنګه چه فتح البارى كښې دى دادى: «وأرجع بحجة ليس معها عمرة» [2]

ولې او زه به صرف حج كوم څم به كوم سره چه عمره نه وى. سوال دادې چه په دې باندې حضورپاك ولې اونه فرمائيل چه اې عائشه رضي الله عنها زه هم ستا په شان يم؟ څكه چه حضورپاك قارن وو او په قول د ائمه ثلاثه حضرت عائشه رضي الله عنها هم دحضوراكرم ﷺ په شان قران كړې وو. نوبيا حضرت عائشه رضي الله عنها ولې اوفرمائيل چه تاسو دې حج او عمره يوسئى لاړشئى اوزه به صرف حج اورم څم به؟ او حضورپاك ولې اونه فرمائيل لكه څنګه چه زما قران دې هغه شان ستاهم قران دې؟ دې نه علاوه د نورو ډيرو رواياتونه معلوميږى چه حضرت عائشه رضي الله عنها دعمرې احرام فسخ كړې وو [3] چنانچه علامه عابد سندهى رحمه الله «مسند أبى حنيفة برواية الحصكفى» كښې دا لاندينى روايات ذكر كړى دى:

① «أبوحنيفة عن حماد عن إبراهيم عن الأسود عن عائشة رضى الله عنها: أنها قدمت متمتعة وهى حائض، فأمرها النبى صلى الله عليه وسلم فرفضت عمرتها واستأنفت الحج إذا فرغت من حجها، أمرها رسول الله صلى الله عليه وسلم أن تصدر إلى التنعيم مع أخيها عبدالرحمن»

يعنى دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه هغې (مكې) ته د تمتع په نيت سره تشريف راوړلى وو اوهغه دحيض په حالت كښې وه. په دې باندې حضورپاك هغې ته د (عمرې ترك كولو) حكم وركړو. نوددې حكم په تعميل كښې هغې عمره ختمه كړه اود نوى سر نه ئې د حج احرام اوتړلو تردې چه بيا كله هغه د حج نه فارغه شوه نوهغې ته حضورپاك حكم وركړو چه دتنعيم دمقام طرف ته دخپل رور عبدالرحمن سره لاړشه (اودترك كړې شوې عمرې قضا اوكړه).

② «أبوحنيفة عن الهيثم عن رجل عن عائشة رضى الله عنها: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم ذبح لرفضها العمرة بقرة» يعنى د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ دهغې (عائشه رضي الله عنها) دعمرې د ترك كولو د وجې نه يوه غوا (د دم په توګه) ذبح كړې وه.

③ «أبوحنيفة عن عبدالملك عن ربعى بن حراش عن عائشة رضى الله عنها: أن النبى صلى الله عليه وسلم أمر برفضها العمرة دما» يعنى د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ دهغې د عمرې د ترك كيدو دوجې نه د دم ادا كولو حكم وركړې وو.

④ «أبوحنيفة عن حماد عن إبراهيم عن الأسود عن عائشة رضى الله عنها أنها قالت: يانبى الله! يصدر الناس بحجة وعمرة، وأصدر بحجة» الحديث. [4] يعنى دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه هغوى اوفرمائيل اې دالله نبى! خلقو خو حج او عمره دواړه اوكړل واپس شو اوزه به صرف حج كوم واپس كيږم به. (چونكه حضرت عائشه رضي الله عنها د حيض د وجې نه عمره نه وه كړې په دې وجه خفه وه او هم د دغه خفګان اظهار هغې

---

[1] صحيح البخارى: كتاب التمنى، باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: (ولواستقبلت من أمرى ما استدبرت) رقم الحديث: ۷۲۳۰.
[2] مسند الإمام أحمد مسند عائشة رضى الله عنها، رقم الحديث: ۲۵۸۳۰.
[3] لامع الدرارى: ۲۰۹/۵.
[4] مسند الإمام الأعظم بتنسيق النظام فى مسند الإمام ص: ۱۱۳.

په دې حديث كښې حضورپاك ته اوكړو چه ارمان هغه هم حج اوعمره دواړه اداكولو سعادت حاصلولوسره واپس شوې وي.

په دې څلورو واړو مسند روايتونوكښې تصريح ده چه حضرت عائشه رضي الله عنها عمره فسخ كړې وه بل امام ابوداؤد رحمه الله هم دې طرف ته مائل دې ځكه چه هغوى په خپل سنن كښې دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها په قصه باندې داترجمه قائم كړې ده: «باب المهلة بالعمرة تحيض فيدركها الحج فتنقض عمرتها وتهل بالحج، هل تقضى عمرتها» اوبيانى ددې ترجمې لاندې دحضرت عائشه رضي الله عنها د عمرې داحرام روايت ذكركړې دې.(١)

بعض حضراتو «تنطلقون بحجة وعمرة وأنطلق بحج» كښې تاويل كړې دې چه ددې مطلب دې «تنطلقون بحجة وعمرة مفردة وأنطلق بحجة غير مفردة» يعنى تاسو ټول خو حج او عمره جدا جدا كولوسره واپس كيږئى اوزه به حج قران كولوسره واپس كيږم؟ ليكن دا تاويل د بعيد كيدو نه علاوه دظاهرى هم سراسر خلاف دې. كه دحديث په دې الفاظوكښې دا تاويل تسليم هم كړې شى نودبخارى شريف روايت كوم كښې چه حضرت عائشه رضي الله عنها حضورپاك ﷺ ته فرمائى: «كل أصحابك يرجع بحجة وعمرة غيري» په دې كښې دا تاويل نه شى چليدې ځكه چه ټول كسان د حج افراد په احرام كښې نه وو بلكه په هغوى كښې يوجماعت د حج قران كونكوهم وو.

بل امام بخارى رحمه الله د قاسم رحمه الله او اسود رحمه الله نه روايت نقل كړې دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل: «يارسول الله! أيصدر الناس بنسكين وأصدر بنسك....الحديث»(٢) يعنى ټول خلق خو به دواړه عبادتونه (حج اوعمره) اوړلوسره واپس كيږى او زه به صرف هم يوعبادت اوړلوسره ځم، نو په دې موقع باندې حضورپاك ولې اونه فرمائيل: «إنك أيضاترجع بنسكين» يعنى غم مه كوه ته به هم دواړه عبادتونه اوړلوسره واپس كيږې.(٣)

دغه شان دقاسم رحمه الله په روايت كښې دى چه حضورپاك حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها ته فرمائيلې وو «كونى فى حجك عسى الله أن يرزقكها......» الحديث (٤) اوس كه چرې حضرت عائشه رضي الله عنها قارنه وه نوبيا د رسول الله ﷺ مبارك ارشاد «عسى الله أن يرزقكها» به څه معنى وى؟ ځكه چه د عسى استعمال دهغه امورو دپاره كيږى چه متوقع الوجود وى يعنى دهغې په وجود كښې راتلل قريب زمانه كښې متوقع وى خو هغې ته دقارنه وئيلو مطلب دادې چه حج اوعمره فى الحال دواړه موجود دى نه چه متوقع الوجود. اود «كونى فى حجك» معنى ده «كونى فى انتظاره ورجائه ولاتيأسى منه» چونكه امر «لايقضى الفور» يعنى د فور تقاضانه كوى په دې وجه هيڅ لرې نه ده چه دلته هم د لږ وخت نه پس د تجديداحرام امر وى ځكه چه كله حضرت عائشه رضي الله عنها دعمرې احرام ترك كړو نودهغې نه لږشان وخت پس حضورپاك هغې ته د

(١) رقم الكتاب: ١١،رقم الباب: ٨٠ رقم الحديث: ١٩٩٥.

(٢) رواه البخارى فى كتاب العمرة، باب أجرالعمرة على قدر النصب. رقم الحديث: ١٧٨٧ومسلم فى كتاب الحج باب بيان وجوه الإحرام وأنه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران الخ، رقم الحديث: ٢٩٢٧.

(٣) أوجزالمسالك: ٨/٤١٥-٤١٤.

(٤) صحيح البخارى كتاب الحج باب قول الله تعالى: ﴿ٱلْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَٰتٌ﴾ رقم الحديث: ١٥٦٠.

حج داحرام ترلو حكم فرمائيلې وو. دا ټول تفصيل په هغه صورت كښې دې چه كله په بږقكها كښې هاد حج طرف ته راجع كړى.(١)

ليكن كه د سياق حديث موافق ضمير دعمرې طرف ته راجع كړې او په عسى كښې چه كومه د ترجى والامعنى ده هغه دعمرې سره متعلق وى نوبيا خو بالكل واضح دلالت كوى چه حضرت عائشه رضي الله عنها عمره فسخ كړې وه.(٢)

علامه سندهى رحمه الله اوفرمائيل چه د «كونى فى حجك» ظاهر دادې چه حضرت عائشه رضي الله عنها د حج په احرام كښې وه اودا د اعتمار عائشه والا د روايت خلاف ده مګردواړو كښې تطبيق ممكن دې په داسې معنى چه «كونى فى حجك» نه مراد وى «كونى فيما هوالمقصود بالخروج من الحج بنقض إحرام العمرة وتجديد الحج» يعنى د مدينې نه خورج سره چه كوم مقصد وو عمره ترك كولوسره دهغې په افعال كښې مشغول شى.(٣) والله اعلم.

**د ائمه ثلاثه رحمهم الله مستدل اودهغې جواب:** شيخ الحديث حضرت زكريا رحمه الله فرمائى چه دائمه ثلاثه پخپله مدعا باندې دټولو نه صريح دليل د مسلم شريف روايت دې په كوم كښې چه دى حضور پاك حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوفرمائيل «يسعك طوافك لحجتك وعمرتك»(٤) نوپه دې كښې دوه خبرې دى. رومبى خبره داده چه دامام بخارى رحمه الله روايات د امام مسلم رحمه الله په رواياتو باندې مقدم دى. دويمه خبره داده چه دحضورپاك ارشاد په دې باندې مبنى دې چه كيدې شى هغه وخت حضورپاك ته دا ياد نه وى راغلې چه حضرت عائشه رضي الله عنها د حيض د وجې نه طواف اونه كړې شواو حضورپاك هغې ته د عمرې دختمولو حكم وركړې وو لكه چه د صحيح بخارى په روايت كښې (٥)دى چه كله حضرت عائشه رضي الله عنها رسول الله صلى الله عليه وسلم ته شكايت اوكړو نو حضورپاك اوفرمائيل «وماطفت ليالى قدمنامكة؟» ولې تا طواف اونه كړوكوم وخت چه مونږ مكې ته راغلو؟ حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل نه، نوددې روايت نه معلوميږى چه حضورپاك ته د حضرت عائشه رضي الله عنها د حيض د وجې نه طواف نه كول ياد نه وو.(٦)

علامه خليل احمدسهارنپورى فرمائى چه كه چرې مونږ دا تسليم هم كړوچه حضرت عائشه قارنه وه نوبياهم زمونږ د احنافو د رائې دپاره څه ضرورى نه دى چه دا اومنلې شو حضرت عائشه رضي الله عنها دحج او عمرې اراده كړې وه اوقارنه نه وه مګر بيا د عمرې احرام ترك كولوسره هغه مفرده بالحج شوې وه.(٧)

**قوله: :فلما كنا بسرف حضت**: سرف: د سين فتحه او راء په كسره سره منصرف اوغيرمنصر دواړه شان لوستلې شى.(١) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه موضع سرف د مكې نه تقريباً لس ميله فاصله

---

(١) لامع الدرارى: ٥/٢١١-٢١٠.

(٢) لامع الدرارى:٥/٢١١أوجز المسالك:٨/٤١٥.

(٣) حاشية السنديعلى صحيح البخارى: ١/٢٠٩لامع الدرارى: ٥/٢١١-٢١٠.

(٤) رواه الإمام مسلم فى الحج باب بيان وجوه الإحرام وأنه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران الخ رقم الحديث: ٢٩٣٣.

(٥) صحيح البخارى كتاب الحج باب التمتع والقران والإفراد بالحج وفسخ الحج لمن لم يكن معه هدى، رقم الحديث: ١٥٦١.

(٦) أوجز المسالك: ٨/٤١٥.

(٧) بذل المجهود: ٧/١١٢.

باندې واقع دې. (۲)علامه عیني رحمه الله هم دا قول اختیارکړې دې اود ۹، ۷او ۶ میلو یا دوولسو میلو اقوال ئې د قیل سره ذکرکړي. (۳) ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي سرف دمکې نه شپږ میله یا اوولس میله یا دولس میله فاصله باندې واقع د یوځائې نوم دې اوبیائې د ۱۷ او ۱۲ میل قول غیر صحیح ګرځولې دې. (۴)

د مقام سرف د عجائباتونه دی چه حضورپاک په عمرة القضاء کښې هم په دې ځائې کښې حضرت میمونه رضي الله عنها سره نکاح اوکړه او په واپسئ باندې هم په دې ځائې رخصتي اوشوه اودکومې ونې لاندې چه رخصتي اوشوه هم هلته دمیمونه رضي الله عنها تدفین هم شوې. (۵)

امام نووي رحمه الله د ابن حزم ظاهري رحمه الله نه نقل کړی دی چه د حیض شروع ۳ ذی الحجه د هفتې په ورځ شوې وه. (۶)

**قوله:: (فدخل عَلَيّ رسول الله صلى الله عليه وسلم وأنا أبكي)**: حضرت عائشه رضي الله عنها ددې ویرې نه ژړل چه دهغې حج به فوت شي. (۷)

**قوله:: (فقال: مالك نفست؟)**: حافظ ابن حجر رحمه الله لیکي چه امام خطابي رحمه الله فرمائي: اصل ددې کلمې نفس په معنی د دم دې مګر اهل لغت د فعل په وجه (د صیغې) په لحاظ ادوارو کښې یعني حیض اونفاس کښې فرق کړې دې او هغه دا چه د حیض دپاره (نَفِست المرأة) (د نون فتحه سره) وائي اود ولادت دپاره (نُفِست المرأة) (د نون ضمه سره) وائي. حافظ رحمه الله فرمائي چه هم دغه قول د ډیرو اهل لغت دې البته ابوحاتم رحمه الله د اصمعي رحمه الله نه نقل کړی دی چه "نُفِست" د نون په ضمه سره حیض اونفاس دواړو دپاره وئیلې شي. (۸)

خو امام نووي رحمه الله لیکلی دی چه ابوحاتم د اصمعي رحمه الله نه نقل کړی دی چه دا لفظ د نون فتحه سره اود نون ضمه سره دواړه شان په حیض اونفاس کښې استعمالولې شي. (۹)

لکه چه د اصمعي رحمه الله نه دوه روایتونه دی یوروایت دادې چه دا لفظ "نُفِست" (صیغه مجهول سره) د حیض اونفاس دواړومعانوکښې استعمالولې شي او "نَفِست"(معروف صیغه سره) صرف دحیض په معنی کښې استعمالیږي او دویم روایت دادې چه دا لفظ معروف اومجهول دواړه شان د حیض او نفاس دواړو معنوکښې استعمالیږي. بله خبره دا چه امام نووي رحمه الله دا لفظ د نون فتحه او فاء کسره سره نقل کړې دې اوددې نه پس ئې فرمائیلی دی چه په روایت کښې هم دغه معروف صحیح او لغت

---

(۱) فتح الباري: ۵۲۸/۳شرح الکرماني: ۱۵۸/۳المنهاج للنووي: ۳۸۲/۸إرشادالساري:۵۳۴/۱تحفة الباري: ۲٤۱/۱.
(۲) فتح الباري: ۵۲۸/۱.س
(۳) عمدة القاري:۳۸۱/۳.
(۴) مرقاة المفاتیح: ٤۹۲/۵.
(۵) حجة الوداع وعمرات النبي صلى الله علیه وسلم ص:۵۸بذل المجهود: ۱۱۲/۷.
(۶) المنهاج للنووي المعروف بشرح النووي: ۳۹٤/۸.
(۷) مرقاة المفاتیح: ٤۹۲/۵.
(۸) فتح الباري:۵۳۱/۱.
(۹) المنهاج للنووي المعروف بشرح للنووي: ۱۹۷/۳.

كښې مشهور دی چه "نفست" (د نون فتحه سره) د حيض په معنی کښې دې او د ولادت دپاره نفست د نون ضمه سره وئيلې شي. (١)

ابوعبيد هروی رحمه الله فرمائی د ولادت دپاره خو په دواړه شان استعماليږی اودحيض دپاره صرف د نونه فتحه سره. (٢) بهرحال دا لفظ د نفس نه ماخوذ دې د معنی چه په لغت کښې دم يعنی وينه ده اوحيض اونفاس دواړو ته نفس دلغوی معنې په اعتبارسره وئيلې شی. (٣) بل زمونږ ددې بخاری په روايت کښې دا لفظ دنون فتحه او ضمه دواړه شان سره ثابت دې. (٤)

**حضرت عائشه رضی الله عنها دحيض شکايت په کومه ورځ اوکړو؟**: دومره خبره خو متعين ده چه دحضرت عائشه رضی الله عنها د حيض شروع ۳ ذی الحجه موضع سرف کښې شوې البته په دې کښې اختلاف دې چه حضورپاك ته شکايت په ۳ذی الحجه موضع سرف کښې اوکړو يا په يوم الترويه يعنی اتم د ذی الحجه چرته په بل مقام اوکړو؟ نوددې روايت نه معلوميږی چه په موضع سرف کښې شکايت اوکړو اوهم په دې باندې علامه ابن قيم رحمه الله جزم کړې دې خو په صحيح مسلم کښې دحضرت جابر رضی الله عنه (٥) دروايت تقاضاداده چه په يوم الترويه کښې شکايت اوکړو (٦)اوهم دې طرف ته د علامه قسطلانی رحمه الله هم خيال دې. (٧) ليکن حقيقت دادې چه په دې رواياتوکښې تعارض نشته دې ځکه چه کله په موضع سرف کښې د حيض شروع اوشوه نو اول ئې هم هلته شکايت اوکړو. بيا چه کله په يوم الترويه ۸ذی الحجه باندې د منٰی دپاره روانيدل اوشو نوحضرت عائشه رضی الله عنها حضورپاك ته دخپلې ماهوارئ بيمارئ بيا شکايت اوکړو ځکه چه د حج عمل شروع کيدونکې وو دکوم د وجې نه چه حضرت عائشه رضی الله عنها ته دا انديښنه پيداشوه چه چرته دهغې حج هم فوت نه شی.

شيخ الحديث حضرت زکريا فرمائی چه هم په صحيح مسلم کښې (٨)دحضرت عروه رحمه الله په طريق سره دحضرت عائشه رضی الله عنها نه روايت نقل شوې يو رٔوايت نه معلوميږی چه حضرت عائشه رضی الله عنها د ماهوارئ شکايت په يوم عرفه يعنی ۹ذی الحجه کښې اوکړو.هم دغه شان د يوبل روايت نه معلوميږی چه ليله عرفه يعنی د عرفه په شپه ئې شکايت اوکړو(٩) دغه شان په رواياتوکښې اختلاف ځلوروته اورسيدو① ۳ذی الحجه موضع سرف ② يوم الترويه (۸ذی الحجه) ③يوم عرفه ④ ليله عرفه (١٠)

**موضع طهرکښې اختلاف**: دحضرت عائشه رضی الله عنها په موضع طهرکښې هم اختلاف دې چه هغه چرته اوکله پاکه شوه؟ د بعض قول دې چه دعرفه په ورځ پاکه شوه لکه چه دمجاهد رحمه الله نه روايت دې (خود

---

(١) حواله بالا.
(٢) المنهاج للنووی المعروف بشرح النووی: ۱۹۸/۳عمدة القاری: ۳۸۱/۱تحفة الباری: ۲۴۱/۱شرح الکرمانی: ۱۵۹/۳.
(٣) شرح الکرمانی:۱۵۹/۳.
(٤) فتح الباری: ۵۳۱/۱.
(٥) صحيح مسلم کتاب الحج باب وجوه الإحرام الخ. رقم الحديث: ۲۹۳۷.
(٦) فتح الباری: ۷۷۵/۳عمدة القاری: ۱۷۲/۱۰فتح الملهم:۲۷/۶أوجزالمسالک: ۴۰۹/۸بذل المجهول: ۱۱۲/۷.
(٧) إرشادالساری: ۳۱۰/۴.
(٨) صحيح مسلم کتاب الحج باب وجوه الإحرام الخ رقم الحديث: ۲۹۱۱.
(٩) صحيح مسلم کتاب الحج باب وجوه الإحرام الخ رقم الحديث: ۲۹۱۲.
(١٠) أوجزالمسالک: ۴۰۹/۸.

عروه رحمه الله نه نقل دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها باندې هم په دغه دحیض حالت کښې دعرفه ورځ راغلې وه. [1] علامه ابن قیم رحمه الله فرمائي چه دواړه روایتونه صحیح دی اوعلامه ابن حزم دا په دوو مختلف معنو باندې محمول کړې دی. چنانچه دحضرت مجاهد رحمه الله په روایت کښې دعرفه د طهرنه مراد د وقوف عرفه دپاره غسل کول دی ځکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي «تطهر بعرفة اوتطهر غیرطهر دې» او دحضرت قاسم رحمه الله نه نقل دی چه په یوم النحرکښې طهرواقع دې. [2] دغه شان علامه نووي رحمه الله د ابن حزم نه نقل کړې دی چه دهغې طهر یوم النحر کښې د هفتې په ورځ شوې وو. [3]

علامه زرقاني رحمه الله فرمائي چه ټول روایات په دې باندې متفق دی چه طواف افاضه «طواف زیارت» حضرت عائشه رضي الله عنها په یوم النحرکښې کړې دو باقي دحضرت مجاهد رحمه الله او حضرت قاسم رحمه الله په روایتونوکښې داسې تطبیق کیدلې شي چه وینه خو هم دعرفه په ورځ بنده شوې وه مګر طهرئې منی ته په راتلوسره اولیدلو. [4]

حافظ ابن حجر رحمه الله په دې روایتونوکښې داسې تطبیق ورکوی چه په عرفه کښې هغې طهر اولیدلو لیکن منی ته د راتلو پورې دغسل موقع ملاؤنه شوه یا بیا داسې چه وینه په عرفه کښې بنده شوې وه مګر طهرئې منی ته په راتلو سره اولیدلو. وهذا أولى. [5]

علامه ابن قیم رحمه الله فرمائي چه سنن ابی داؤدکښې کتاب المناسك [6] په یوروایت کښې دی حضرت عائشه رضي الله عنها د بطحاء په شپه پاکه شوه اوددې سند هم صحیح دې. [7] مګر ابن حزم رحمه الله وئیلې دی چه دا روایت منکردې. [8]

شیخ زکریا رحمه الله فرمائي چه زما په نیزظاهرداده چه دا «د سنن ابی داؤد» په روایت کښې د ناقل نه تصحیف شوې دې. صحیح د واؤ حالیه د اضافه سره دې یعنی د بطحاء په شپه راغله خوتردغه وخته پورې عائشه رضي الله عنها پاکه شوې وه. هم د سنن ابی داؤد د یوروایت الفاظ دادی: «فلما كانت ليلة بطحاء وطهرت عائشة» [9] **ترجمه**: کله چه د بطحاء شپه راغله نوحال دادې چه عائشه رضي الله عنها پاکه شوې وه. [10]

علامه ابن قیم رحمه الله فرمائي چه د سنن ابی داؤد دا روایت د حماد بن سلمه نه علاوه حماد بن زید او وهیب بن خالد هم روایت کړې دې. [11] مګر په دې روایتونوکښې داجمله چه حضرت عائشه رضي الله عنها

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الحج باب وجوه الإحرام الخ رقم الحديث: ۲۹۱۱، ۲۹۳٤.

[2]) صحيح مسلم كتاب الحج باب وجوه الإحرام الخ رقم الحديث: ۲۹۱۹.

[3]) زادالمعاد: ۲/۱۷۷-۱۷٦ شرح الزرقاني على المؤطا: ۲/۳۷۵ فتح الباري: ۳/۷۷٦ أوجز المسالک: ۸/٤۲۸ بذل المجهول: ۷/۱۱۳-۱۱۲ فتح الملهم: ٦/۲۷ المنهاج للنووی: ٤/۳۹٤.

[4]) شرح الزرقاني على المؤطا: ۲/۳۷۵.

[5]) فتح الباری: ۳/۷۷٦.

[6]) سنن أبی داؤد كتاب المناسک باب فی إفراد الحج رقم الحديث: ۱۷۷۸.

[7]) زادالمعاد: ۲/۱۷۷.

[8]) ایضاً.

[9]) سنن أبی داؤد كتاب المناسک باب فی إفراد الحج رقم الحديث: ۱۷۸۲.

[10]) حجة الوداع وعمرات النبی صلی الله علیه وسلم ص: ٦۲-٦۱.

[11]) سنن أبی داؤد كتاب المناسک باب فی إفراد الحج رقم الحديث: ۱۷۷۸.

دبطحاء په شپه پاکه شوې موجود نه ده. بل ددې لاندې وجوهاتو په وجه هم حماد بن زید اودهغوی دملګرو روایت د حمادبن سلمه د روایت نه مقدم دې.

①حمادبن زید د حماد بن سلمه په نسبت احفظ او اثبت دې ② د حماد بن زید وغیره په روایت کښې حضرت عائشه رضي الله عنها پخپله د خپل ځان باره کښې خبرورکوی خود حماد بن سلمه په روایت کښې دهغې باره کښې بل څوك خبر ورکوی. ③ امام زهری رحمه الله دعروة عن عائشه رضي الله عنها په طریق سره روایت نقل کړې دې په کوم کښې چه دی «فلم أزل حائضاً حتی کان یوم عرفة» یعنی زه د حیض په حالت کښې ووم تردې چه دعرفه ورځ راغله. هم دغه هغه غایت دې کوم چه حضرت قاسم رحمه الله او مجاهد رحمه الله بیان کړې دې. البته صرف دومره فرق دې چه امام مجاهد رحمه الله د حضرت عائشه رضي الله عنها نه طهرد په عرفه کښې بیان کړې او حضرت قاسم رحمه الله یوم النحر روایت کړې. [1]

**قوله: (إنّ هذا أمر کتبه الله علی بنات آدم):** الله تعالی حیض په بنات آدم باندې مقدر کړې دې او په دې کښې حواء علیها السلام هم داخل ده. ځکه چه کله هغې د منع کړې شوې ونې نه میوه اوخوړله نوهغې حضرت حواء علیها السلام په وینوباندې ککړه کړه. په دې باندې الله تعالی حضرت حواء علیها السلام ته اوفرمائیل چه کله دې منع کړې شوې ونې ته په وینوباندې ککړه کړې نوموږ به هم تا اوستا لونړه د قیامته پورې په وینوباندې ککړه کوو. نو هم دهغه وخت نه الله تعالی په ټولو بنات آدم باندې د موربی بی حواء علیها السلام په تبعیت کښې حیض مقدر کړو. [2]

په هذا سره دحیض طرف ته اشاره ده او أمر د شئ په معنی کښې دې. علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه په روایت کښې د أمر لفظ دې او په ترجمه کښې لفظ شئ ذکردې نودا خویا د نقل حدیث بالمعنی د قبیل نه دې او یا بیا دواړه لفظونه ثابت دی. [3] په دې باندې علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دداسې احتمال بیانولو ضرورت نشته دې ځکه چه ددواړو لفظونو ثابتیدل متعین دی. [4]

بل ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې ارشاد مبارك کښې د حضرت عائشه رضي الله عنها تسلی ده ځکه چه «البلیة إذا عمت طابت» کله چه څه مصیبت عام وی نو هغه زغمل آسانیږی. [5]

**قوله: (فاقضی ما یقضی الحاج):** دلته قضاء د ادا په معنی کښې ده ځکه چه لفظ قضاء د ادا په معنی کښې هم استعمالیږی. [6] لکه څنګه چه ارشاد باری تعالی دې ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَوٰةُ فَانتَشِرُوا﴾ إي: إذا أدیت. [7]

**قوله: (غیر ألا تطوفی بالبیت):** لفظ غیرمنصوب دې. په دې جمله باندې اشکال کیږی چه ددې تقدیری عبارت «غیرعدم الطواف» جوړیږی کوم چه صحیح نه دې ځکه چه مقصود ددې نقیض یعنی

---

[1] زادالمعاد: ۱۷۷/۲.

[2] مرقاة المفاتیح: ۴۹۲/۵.

[3] شرح الکرمانی: ۱۵۹/۳عمدة القاری:۳۸۱/۳.

[4] عمدة القاری: ۳۸۱/۳.

[5] مرقاة المفاتیح: ۴۹۲/۵.

[6] عمدة القاری: ۳۸۱/۳فتح الباری: ۵۲۸/۱شرح الکرمانی: ۱۵۹/۳عمدة القاری:۳۸۱/۳.

[7] عمدة القاری: ۳۸۱/۳.

طواف دې نه چه عدم طواف؟ جواب دادې چه په دې جمله کښې "لا" زائده دې او تطوفي د "أن" ناصبه د وجې نه منصوب دې. دویم جواب دادې چه "أن" مخففة من المثقلة اوګرځولې شی او تطوفي د لاء نهي د وجې نه مجزوم اوګرځولې شی نوداسې به هم دغه اشکال لرې شی او په دې دویم صورت کښې به معنی شی «لاتطوفي مادمت حائضا» چه ته ترکومې د حیض په حالت کښې ئې طواف مه کوه.(١)

**دحائضه دپاره د طواف ممانعت اود هغې په علت کښې د فقهاؤ اختلاف:** علامه نووي رحمه الله فرمائي چه د رسول الله ﷺ په دې ارشاد مبارك کښې ددې خبرې دلیل دې چه حائضه طواف نه شی کولې او په دې باندې د ټولو اتفاق دې. مګر د طواف دپاره د طهارت شرط کیدل یا نه کیدلو په سلسله کښې د ائمه د اختلاف په رڼړا کښې ددې حکم (د حائضه دپاره طواف ممنوع ګرځولو) په علت کښې هم اختلاف دې. د ائمه ثلاثه رحمهم الله مذهب دادې چه د طواف د پاره طهارت شرط دې اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دطواف د پاره طهارت شرط نه دې. لهذا د جمهورو د مذهب موافق ددې حکم علت په حائضه کښې د طهارت د شرط نه موجود کیدل دی اود امام رحمه الله د مذهب موافق ددې حکم علت دادې چه د حائضه دپاره په جمات کښې داخلیدل ممنوع دی او بیت الله په جمات کښې دې په دې وجه هغه طواف نه شی کولې.(٢)

علامه کاساني رحمه الله فرمائي چه احناف (کثرالله سوادهم) په نیز د طواف دپاره حدث جنابت او حیض، نفاس نه طهارت شرط نه دې اونه فرض دې بلکه واجب دی. په دې وجه که چابغیرد طهارت نه طواف اوکړونو طواف خو به ئې اوشی مګر د ترك واجب د وجې نه به واپس راګرځول لازم وی. د امام شافعي رحمه الله دلیل دادې چه حضورپاك طواف مونځ ګرځولې دې چنانچه په حدیث کښې دی (الطواف صلاة)(٣) (طواف مونځ دې) لهذا چه کله طواف مونځ دې نود مونځ په شان به طواف هم بغیرد طهارت نه کیږی.

د احنافو حضراتو دلیل د قرآن پاك دا آیت دې: ﴿ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴾ (سورت حج: ٢٩) لکه څنګه چه الله رب العزت د مطلق طواف حکم فرمائیلې دې د طهارت وغیره هیڅ شرط نشته دې اوس دا مطلق حکم د خبرواحد په ذریعه مقید کول به صحیح نه وی ځکه چه دا په نص باندې د خبر واحد په ذریعه زیاتې کول دی اودا جائزنه دی بلکه دا حدیث به په تشبیه باندې محمول کولې کیږی لکه چه دالله تعالی ارشاد دې: ﴿ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ ﴾ (سورت أحزاب: ٦) أي: كأمهاتهم، نوهم داسې به دحدیث معنی وی. «الطواف كالصلاة» چه طواف د مونځ په شان دې او دا تشبیه في بعض الوجوه به وی ځکه چه کلام په تشبیه کښې عموم نه وی لهذا تشبیه به په ثواب کښې وی یا بیا په اصل فرضیت کښې، اویا بیا مونږ دا اووایو چه طواف د مونځ په شان دې حقیقتاً مونځ نه دې نو په دې حیثیت سره د طواف دپاره به طهارت شرط یا فرض نه وی ځکه چه دا په حقیقت کښې مونځ نه دې لیکن په دې حیثیت سره چه داد مونځ په شان دې ددې دپاره به طهارت واجب ګرځولې شی ځکه چه قدر ممکن دواړو دلیلونونویعنی قرآن اوسنت باندې عمل اوکړې شی.(٤)

---

(١) شرح الكرماني: ١٥٩/٣إرشادالساري: ٥٣٤/١عمدة القاري: ٣٨١/٣.
(٢) المنهاج للنووي المعروف بشرح النووي: ٣٨٢/٨عمدة القاري: ٢٦٤/٩فتح الملهم: ٣١/٦.
(٣) السنن الكبرى للبيهقي كتاب الحج باب إقلال الكلام لغير ذكرالله في الطواف: ١٣٨/٥رقم الحديث: ٩٢٩٣.
(٤) بدائع الصنائع: ٦٩،٧١/٣.

**د احنافوپه ذکرکړې شوې علت باندې اعتراض اودهغې جواب:** وړاندې چه د ذکرکړې شوې حکم کوم علت حضرات احنافو بیان کړې چه طواف د بیت الله په جمات کښې کیږي اوحائضه جمات ته نه شي داخلیدلې په دې وجه طواف هم نه شي کولې. په دې علت باندې علامه عبدالحئی لکهنوی رحمه الله اعتراض کړې دې چه دا علت قاصره دې خکه چه ددې مطلب خودا شو که یوه ښځه همت اوکړي اود جمات نه بهر طواف اوکړي نود احنافو په نیز به ددې طواف اوشي حالانکه داسې طواف نه شي ادا کیدې (خکه چه حضورپاك على الاطلاق "ألا تطوفي في بالبيت" فرمائیلې دې)؟ ددې اشکال په جواب کښې علامه خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله فرمائي چه د احنافو بیان کړې شوې علت قاصره نه دې خکه چه د جمات نه بهرد بیت الله طواف کول د سره هډو جائزنه دی خکه چه د طواف د صحت دپاره دا هم شرط دې چه په جمات کښې دننه وی. چنانچه لاندې د یوڅو عبارتونو ذکر کولې شي د کوم نه چه واضحه کیږي چه د طواف د صحت دپاره ضروری دی چه هغه دې هم په جمات کښې دننه وی. (۱)

① ((في البدائع: "ولوطاف حول المسجد وبينه وبين البيت حيطان المسجد، لم يجزه لأن حيطان المسجد حاجزة، فلم يطف بالبيت لعدم الطواف حوله، بل طاف بالمسجد لوجود الطواف حوله، لاحول البيت ولأنه لوجاز الطواف حول المسجد مع حيلولة حيطان المسجد، لجاز حول مكة والحرم، وذالا يجوز، كذا هذا")) یعنی که چرې چا د (بیت الله په خائې) د جمات نه چاپیره طواف اوکړو کوم وخت چه د دغه سړي او د بیت الله په مینځ کښې دیوالونه حائل وو نوداسې طواف جائزنه دې خکه چه په مینځ کښې د جمات دیوالونه حائل دی، د کوم په وجه چه په حقیقت کښې دې سړي د بیت الله طواف اونه کړو بلکه د جمات طواف ئې اوکړې دې خکه چه هغه د جمات نه چاپیره چکرې وهلې دی. بل که د جمات نه چاپیره طواف کول جائز وې سره ددې چه په مینځ کښې د جمات دیوالونه حائل وی نوبیا به د مکې نه اود حرم مکه نه چاپیره طواف کولو سره طواف کیدلو او چونکه په داسې کولوسره طواف نه کیږی لهذا دغه شان یعنی د جمات نه چاپیره طواف کولوسره هم طواف نه کیږی.

② ملا علي قاري رحمه الله فرمائي: ((ولوطاف خارج المسجد فمع وجود الجدران لايصح إجماعًا، وأما إذا كان جدرانه منهدمة، فكذا عند عامة العلماء خلافًا لمن لم يعتد بخلافه)) (۲) یعنی که چاد جمات نه بهر طواف اوکړو نو په مینځ کښې د جمات د دیوالونو په موجودګئی کښې به په اجماع سره طواف صحیح نه وی. اوکه چرې د جمات دیوالونه اونړولې شي نوبیا هم د ټولو علماو په نیز طواف صحیح نه وی په خلاف د هغه خلقو دچا اختلاف کول چه په هیڅ شمیر کښې نه دی. بل علامه سهارنپوری فرمائي چه په دې باب کښې آخری حددادې چه دواړه څیزونو د طواف دپاره شرط دی یعنی مکان د طواف (جمات) هم او طهارت هم، که چرې یو شرط هم موجودنه شي نوطواف به جائزنه وی په دې وجه هیڅ یو علت قاصر نه دې (۳)

**قوله:: (قالت: وضحى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن نسائه بالبقر):**

---

(۱) بذل المجهود: ۱۰۷/۷.

(۲) شرح لباب المناسک: ۱۶۷.

(۳) بذل المجهود: ۱۰۸/۷.

**غوائی قربانی کړې وه یا هدی کړې وه؟**: امام بخاری دلته او **کتاب الأضحی** کښې [1] دغه شان امام مسلم هم دا روایت **«ابن عیینة عن عبدالرحمن بن القاسم عن أبیه عن عائشة رضی الله عنها»** په طریق سره هم په دې الفاظو **«ضحی رسول الله صلی الله علیه وسلم»** سره ذکر کړې دې [2] امام مسلم دا روایت **«عبدالعزیز بن أبی سلمة الماجشون عن عبدالرحمن»** په طریق سره هم ذکر کړې دې. مګر په هغه روایت کښې **ضحی** په ځائې **أهدي** الفاظ دی [3]

علامه ابن قیم رحمه الله هدی کیدل راجح ګرځولې دی. په ابن حزم رحمه الله باندې رد کولو سره فرمائی چه د هغوی مذهب دادې چه دحاجی دپاره هدی سره قربانی هم مشروع ده لیکن (علامه ابن قیم رحمه الله فرمائی چه) صحیح دادی د حاجی دپاره هدی هم داسې ده لکه د مقیم دپاره اضحیه (قربانی) خکه چه د چانه نقل نه دی چه حضورپاك او د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه چا هم هدی او اضحیه نه ده جمع کړې بلکه دهغوی هدی به هم دهغوی قربانی وه. بل دا دعائشه رضی الله عنها نه چه دا نقل دی **«ضحی عن نسائه بالبقر»** نو په حقیقت کښې دا هم هدی ده مګر په دې باندې د اضحیه د لفظ اطلاق کړې شوې دې خکه چه ازواج مطهرات په حج تمتع سره وې او په هغوی باندې هدی لازم وه. په دې وجه چه کومه غوا دهغوی د طرف نه ذبح کړې شوه هغه هم هدی وه کومه چه په هغوی باندې لازمی وه. [4]

لیکن د حافظ ابن حجر رحمه الله خیال مختلف دی. کتاب الحج کښې هدی کیدو ته ترجیح ورکولو سره فرمائی چه په ظاهره دا د راویانو تصرف دې خکه چه د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې تصریح ده چه دا غوا د هغه ازواج مطهرات د طرف نه ذبح کړې شوه چاچه عمره کړې وه. په دې سره د هغه خلقو روایت ته تقویت ملاویږی چاچه د هدی لفظ روایت کړې دې او په دې سره دا هم واضحه شوه چه دا هدی دتمتع وه. [5]

او په **کتاب الأضاحی** کښې **اضحیه** کیدو ته ترجیح ده: چنانچه حدیث **«ضحی النبی صلی الله علیه وسلم عن أزواجه بالبقر»** لاندې فرمائی دا روایت په دې امر کښې واضح دې چه مذکوره ذبح اضحیه وه. [6]

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دحضرت عائشه رضی الله عنها په حدیث باندې **"باب الأضحیة للمسافر والنساء"** قائم کړې دې دغه شان ددې نه پس **"باب من ذبح ضحیة غیره"** قائم کړې دې. نو دا دواړه ابواب پدې باندې دلالت کوی چه امام بخاری رحمه الله هم دا حدیث په **اضحیه** باندې محمول کوی. [7]

لیکن من حیث الروایه هم هدی کیدل راجح دی خکه چه په متمتعین باندې هدی لازم ده او سنن ابی داؤد کښې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه نقل دی چه دا غوا د هغه ازواج مطهرات د طرف نه ذبح کړې شوه چاچه عمره کړې وه لهذا هم هدی کیدل راجح دی. [8]

---

[1] ) صحیح البخاری کتاب الأضاحی باب الأضحیة للمسافر والنساء رقم الحدیث: ۵۵۴۸.

[2] ) صحیح مسلم کتاب الحج باب بیان وجوه الإحرام الخ رقم الحدیث: ۲۹۱۸.

[3] ) رواه الإمام مسلم فی الحج باب بیان وجوه الإحرام، وأنه یجوز إفراد الحج والتمتع والقران الخ رقم الحدیث: ۲۹۱۹.

[4] ) زادالمعاد: ۲/۲۶۳.

[5] ) فتح الباری: ۳/۷۰۳.

[6] ) فتح الباری: ۱۰/۵.

[7] ) أوجز المسالک: ۸/۹۴.

[8] ) کتاب المناسک باب هدی البقر رقم الحدیث: ۱۷۵۱.

**په هدى كښې اشتراك:** د رسول الله ﷺ دخپلو زياتو ازواج مطهرات دطرف نه يوه غوا ذبح كول ددې خبرې دليل دې چه په هدايا او اضاحى كښې اشتراك جائزدې اوهم دغه د جمهورو علماؤ امام ابوحنيفه رحمه الله، امام شافعى رحمه الله او امام احمد رحمه الله مذهب دې. د امام مالك رحمه الله په نيزدا اشتراك ناجائزدې. چنانچه په موطاكښې دامام مالك رحمه الله نه نقل دى چه هغوى د بعض اهل علم نه اوريدلى دى چه يو بدنه (اوښ يا غوا) كښې دې ښځې او سړى دواړه شريك نه وى بلكه هر يو ته د جدا بدنه هدى كول پكاردى. (١)

علامه احمد دردير رحمه الله فرمائى چه هدى كه واجب وى اوكه تطوع، په دې كښې اشتراك صحيح نه دې نه په ذات كښې اونه په اجركښې. كه چرته دوو كسانو شراكت اوكړو نودوارو هدى جائزنه شوه. د سوقى رحمه الله فرمائى پس د هدى معامله د قربانئى نه مختلف ده چه د قربانئى په اجركښې اشتراك صحيح دې. (٢)بعض مالكيه او داؤدظاهرى وائى چه هدى تطوع كښې اشتراك جائزدې صرف په هدى واجب كښې اشتراك جائزنه دى. (٣)

او ابن رشدمالكى رحمه الله دتفصيلى كلام نه هم دغه معلوميږى چه دامام مالك رحمه الله په نيزيه هدى تطوع كښې اشتراك جائز دې اوكه هدى واجب وى تطوع، په دې كښې د اشتراك دعدم جواز قول نى د ابن قاسم رحمه الله روايت ګرځولې دې. (٤)

حاصل د كلام دا شوچه دامام مالك رحمه الله نه دوه روايتونه نقل دى. دابن قاسم رحمه الله په روايت هدى كښې اشتراك مطلقاً ناجائزدې كه واجب وى كه تطوع، نه اشتراك فى الذات اونه اشتراك فى الاجر خو دويم روايت دادې چه دامام مالك رحمه الله هدى تطوع كښې اشتراك جائزدې او په اضحيه كښې صرف اشتراك فى الاجر جائزدې.

امام بخارى رحمه الله د ابوجمره رحمه الله نه دا روايت نقل كړې دې چه هغوى د ابن عباس رضي الله عنهما نه د هدى باره كښې سوال اوكړو نو هغوى اوفرمائيل: «فيها جزوأوبقرة أوشاة أوشرك فى دم»(٥) يعنى تمتع كښې اوښ غوا يا چيلئى (قربانى واجب ده) يا يوه قربانى (اوښ او غوا) كښې شريكيدل پكاردى.

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې په شرح كښې فرمائى چه: شرك په كسر د شين او سكون د راء، مطلب دادې چه دهدى په څناوركښې په داسې توګه باندې شركت كول چه يوځناور د پوره جماعت د طرف نه كافى وى. دا روايت په صحيح مسلم كښې د حضرت جابر رضي الله عنه نه نقل كړې شوى روايت موافق دې (٦)په كوم كښې چه دى حضورپاك صحابه كرامو رضي الله عنهم ته د حج په موقع باندې دا ارشاد اوفرمائيلو چه هغه په اوښ او غوا يويو څاروى كښې اووه اووه كسان شريكيدې شى. او هم دغه د امام شافعى رحمه الله او جمهورعلماؤ مذهب دې كه هدى واجب وى يا هدى تطوع او كه غواړې نود ټولو شركاؤ نيت د ثواب وى يا د بعض د ثواب اود بعض د غوښې نيت وى.

(١) الموطا للإمام مالک ص: ٤٠٩.

(٢) الشرح الكبير مع حاشية الدسوقى: ٣٤٢/٢.

(٣) فتح البارى: ٦٨٢/٣أجزالمسالک: ٦٤١/٧كشف المغطاعن وجه الموطا، ص: ٤٠٩.

(٤) بداية المجتهد: ٨٤/٤.

(٥) كتاب الحج باب (فمن تمتع بالعمرة الى الحج فما استيسرمن الهدى) رقم الحديث: ١٦٨٨أوجزالمسالک: ٦٤٠/٧.

(٦) صحيح مسلم كتاب الحج باب بيان وجوه الإحرام، وأنه يجوز إفراد والحج والقران الخ رقم الحديث: ٢٩٤٠.

امام ابوحنيفه رحمه الله اود هغوى د ملگرو مذهب دا دې چه د شركت دپاره د ټولو شركاؤ متقرب كيدل يعنى د ثواب نيت كيدل شرط دې البته جهت قربت (دم تمتع، دم احصار، دم قران او دم جزاالصيد) اتحاد شرط نه دې. مگر خوښه كړې شوې خبره هم دغه ده چه جهت قربت هم يووى. امام زفر رحمه الله د قربت سره اتحاد جهت قربت هم شرط گرځوى
د ابن عمر رضي الله عنهما په حواله سره نقل دى چه هغه په شروع كښې د اشتراك قائل نه وو خو تركومې هغه ته سنت (حديث) اورسيدلو نوهغه رجوع اوكړه. چنانچه مسنداحمد[1] روايت دې چه امام شعبى رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنهما نه پوښتنه اوكړه چه آيا اوښ اوغوا د اووه كسانو د طرف نه كافي كيږى؟ نو ابن عمر رضي الله عنهما په جواب كښې اوفرمائيل چه ولې ددې اووه ساگانې وى څه؟ امام شعبى رحمه الله اوفرمائيل چه (نه مگر) د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اصحابو خيال هم دغه دې چه حضورپاك اوښ او غوا د اووه كسانو طرف نه مشروع گرځولې ده. په دې باندې ابن عمر رضي الله عنهما يوسړى ته اووئيل چه آيا داخبره هم داسې ده؟ نوهغه اووئيل اوجى، ابن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل چه ماته خوددې علم هم نشته دې.([2])
امام موفق رحمه الله د ائمه د مذاهب ذكر كولونه پس فرمائى چه حديث جابر رضي الله عنه د امام مالك رحمه الله قول ردكوى.[3] پدې موقع قاضى اسماعيل مالكى رحمه الله د امام مالك دفاع كولوسره فرمائى چه د حضرت جابر رضي الله عنه حديث د هغه وخت واقعه ده كوم وخت چه حضورپاك او صحابه كرام په مقام حديبيه كښې محصور وو اود محصر هدى واجب نه وى بلكه تطوع وى او په هدى تطوع كښې د يوقول مطابق د امام مالك رحمه الله په نيز اشتراك جائز دې او وړاندې ذكر كړې شوې د حضرت ابوجمره رحمه الله روايت (كوم چه د اشتراك په صحت باندې دال دې) په حواله سره قاضى صاحب فرمائى چه د ابن عباس رضي الله عنهما نورو ثقه اصحابو د ابوجمره رحمه الله مخالفت كړې دې ځكه چه هغه د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت كړې دې چه ((أن مااستيسر من الهدي شاة)) ([4]) يعنى د هدى چه كوم څناور په آسانئى سره ملاويږى هغه چيلئى ده اوبيا ددغه اصحابو روايات ئې په اسانيد صحيحه سره ذكركړى دى. يوبل حديث ذكركولو سره فرمائى چه محمدبن سيرين د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت كړې دې چه هغوى فرمائى: ((ماكنت أري أن دماً واحداً يقضى عن أكثرمن واحد)) چه زه نه پوهيږم يوه ساه (او يوه وينه) به د يرنه دزياتوكسانودپاره كافي كيږى.([5])
ددې په جواب كښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ابوجمره رحمه الله او د نورو اصحابو په رواياتوكښې څه تعارض يا منافرت نشته دې ځكه چه ابوجمره رحمه الله صرف د اشتراك ذكر اضافه كړې دې كوم چه نورو رواتو نه دې كړې. باقى د شاة يعنى چيلئى په ذكركولوكښې د هغوى موافقت كړې دې لهذا هيڅ تعارض نشته دې. او تركومې چه تعلق دى ددې امر چه ابن عباس رضي الله عنهما صرف شاة ذكر كولو باندې ولې اكتفااوكړه؟ نوددې وجه د ابن عباس رضي الله عنهما په هغه خلقو باندې رد كول مقصود وو چه هدى

---

[1]) مسندالإمام أحمد حديث ابن عمر رضى الله عنهما: ٤٦١/٣٨ رقم الحديث: ٢٣٤٧٨ مؤسسة الرسالة. إسناده ضعيف لضعف مجالدبن سعيد. لكن سلف بهذا الإسناد برقم: ١٤٥٩٣. إلا أن الشعبى قال فيه: حدثنى جابر بن عبدالله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم سن الجزور والابقرة عن سبعة. وهوعن جابر صحيح، وروى عنه من غير هذا الطريق.
[2]) فتح البارى: ٦٨٢/٣ أوجز المسالک: ٦٤٠/٧.
[3]) المغنى لابن قدامة: ٢٩٥/٣.
[4]) السنن الكبرى للبيهقى، كتاب الحج باب من استيسر من الهدى: ٣٥/٥ رقم الحديث: ٨٨٩٤ الموطا للإمام مالك، كتاب الحج باب من استيسر من الهدى: ٤٠٧.
[5]) فتح البارى: ٦٨٢/٣.

ابل او بقر (اوښ او غوا) سره خاص کوي. باقي د ابن سيرين رحمه الله روايت منقطع دې او که چرې متصل هم وي نوهغه به په دې باندې محمول کولې شو چه ابن عباس رضي الله عنهما ددې خبرې خبر ورکړو چه هغه د اجتهاد د وجې نه په دې نه پوهيدلو چه يوښناور دې د يو نه د زياتو خلقو د طرف نه کافي شي خوچه کله د اشتراك د صحيح کيدو حديث هغوی ته اورسيدو نوهغوی هم په هغې باندې ابوجمره رحمه الله ته فتوی ورکړه.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دغه شان ټول روايتونه راجمع کيږي او جمع بين الروايات په نسبت د هغه امر بهتر دی چه د يوداسې سړي روايت مطعون کړې شي د چا ثقاهت او حديث حجت کيدو باندې چه د علماؤ اجماع ده اوهغه هم دغه ابوجمره الضبعي رحمه الله دې (1)

**په يوښاروی کښې څومره کسان شريکيدې شي؟**: بياد قائلين اشتراك په مينځ کښې په دې امر کښې هم اختلاف دې چه په يوښناورکښې څومره کسان شريکيدې شي. د جمهورو علماؤ په نيز په يو ښناور يا ښاروی (اوښ يا غوا)کښې اووه کسان شريکيدې شي. خو اسحاق بن راهويه، ابن خزيمه شافعي او په يو روايت کښې سعيد بن المسيب رحمهم الله مذهب دادې چه په يو ښاروی کښې د لسو پورې کسان شريکيدې شی. (2) اوهم دغه د ابن حزم ظاهري رحمه الله مسلك دې. (3)

دا حضرات ددې رواياتونه استدلال کوي: ① د رافع بن خديج رضي الله عنه نه نقل يورروايت کښې دی چه: ((ثم عدل عشرة من الغنم بجزور)). ترجمه: بيا حضورپاك لس چيلئي د يواوښ برابر ګرځولې دې. (4)

② دحضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې چه صحابه رضي الله عنهم د حضورپاك په معيت کښې يواوښ د لسو کسانود طرف نه نحر ګرځولې دې. علامه ابن قيم رحمه الله فرمائي چه دا روايت د امام مسلم رحمه الله په شرط باندې دې مګر هغوی دا روايت نه دې ذکرکړې بلکه دحضرت جابر رضي الله عنه هغه روايت ئې ذکر کړې دې په کوم کښې چه دی: ((أمرنا رسول الله صلى الله عليه وسلم أن نشترك في الابل والبقر كل سبعة منا في بدنة)) ترجمه: مونږ ته حکم راکړو حضورپاك ﷺ چه په مونږ کښې اووه اووه کسان په يويو بدنه کښې شريك وی. (5)

③ د مسند احمد روايت دې: ((عن ابن عباس رضي الله عنهما: كنا مع النبي صلى الله عليه وسلم في سفر، فحضر النحر، فذبحنا البقر عن سبعة والبعير عن عشرة)) ترجمه: د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه مونږ په يوسفرکښې حضورپاك سره وو چه په دغه دوران کښې لوئې اختر راغلو نو مونږ غوا د اووه کسانود طرف نه او اوښ د لسو کسانود طرف نه ذبح کړو. (6)

---

(1) فتح الباري:۶۸۲/۳.

(2) فتح الباري: ۶۸۲/۳،زادالمعاد: ۲۶۵/۲ أوجزالمسالک: ۴۱/۷.

(3) المحلى بالآثار: ۱۵۷/۵،أوجزالمسالک: ۴۱/۷.

(4) أخرجه البخاري في الشركة باب من عدل عشرة من الغنم بجزور رقم الحديث: ۲۵۰۷،زادالمعاد: ۲۶۵/۲.

(5) زادالمعاد: ۲۶۶/۲-۲۶۵.

(6) مسندبني هاشم، مسندعبدالله بن عباس: ۷۱۳/۱،رقم الحديث: ۲۴۸۴،عالم الكتب. والترمذي في الحج، باب ماجاء في الاشتراك في البدنة والبقرة، رقم الحديث: ۹۰۵وفي الأضاحي باب ماجاء في الاشتراك في الأضحية رقم الحديث: ۱۵۱۰،والنسائي في الضحايا باب ما تجزئ عنه البدنة في الضحايا، رقم الحديث: ۴۳۹۷، وابن ماجه في الأضاحي باب: عن كم تجزئ البدنة والبقرة رقم الحديث: ۳۱۳۱.

④ روايت كښې دى چه حضورپاك ﷺ د خپلو ازواج مطهرات د طرف نه د غوا قرباني كړې وه.(١) اوهغوى نهه وې، نوددا روايت هم ددې خبرې دليل دې چه د اووه نه زيات كسان يعنى د لسو پورې شريكيدلې شى.(٢)
حضرات جمهورو ددې مختلف جوابونه وركړى دى. يوجواب دادې چه داد شروع قصه ده. دويم جواب دادې چه د لسو كسانود شركت والاروايات د نورو رواياتو يعنى د اووه كسانود شركت والارواياتو په مقابله كښې مرجوح دى ځكه چه د اووه والا روايات په تعداد كښې هم زيات دى او په صحت كښې هم فائق دى. په نورو الفاظوكښې د اووه كسانو د شركت والاروايات مفصل هم دى اومصرح هم دى. خو هغه روايات د كوم نه چه ابن حزم رحمه الله استدلال كړې دې مجمل دى لهذا مفصل او مصرح رواياتوته به ترجيح وى.(٣) دريم جواب دادې چه په غنائم كښې يو اوښ په لسو كسانوكښې تقسيم كول د مال غنيمت د تقسيم برابرولود پاره وو خو په هدايا كښې د اووه كسانو پورې شركت تقدير شرعى باندې مبنى دې.(٤)
**يوه غوادنهو ازواج مطهرات د طرف نه څنګه كافى شوه؟** بل دلته يو مشهور اشكال دې اوهغه دادې چه غوا يوه وه او ازواج مطهرات نهه نويوه غوا دټولودپاره څنګه كافى شوه؟ لكه چه ابن حزم رحمه الله ددې نه استدلال كوى، ځكه چه د جمهوروپه مذهب يوه غوادنهو كسانود طرف نه نه شى كافى كيدې.
**د علامه خليل احمدسهارنپورى رحمه الله رائې:** علامه خليل احمدسهارنپورى رحمه الله جواب وركړې دې چه غوا خو هم د اووه ازواج مطهرات د طرف نه وه اود باقى د طرف نه به څه چيلئى وغيره قربانى كړې شوې وى.(٥)
**دعلامه رشيداحمدګنګوهى رحمه الله رائې:** علامه رشيد احمد ګنګوهى رحمه الله فرمائى زما په نيزد ټولونه ښه جواب دادې چه حضورپاك د حضرت عائشه رضي الله عنها د طرف نه ځان له غوا ذبح كړې وه لكه چه د صحيح مسلم جابر رضي الله عنه په روايت كښې دى(٦) اودباقى بيبيانود طرف نه جدا غوا وه لكه چه د سنن ابى داؤد په روايت كښې (٧)دى اوحضرت عائشه رضي الله عنها په دوى كښې داخل نه وه ځكه چه دسنن ابى داؤد د روايت الفاظ "دهغه بيبيانود طرف نه چاچه عمره كړې وه" ددې نه مانع دى ځكه چه حضرت عائشه رضي الله عنها زمونږ په نيز مفرد بالحج وه. البته داسوال باقى پاتې كيږى چه حضرت عائشه رضي الله عنها خارج كولوسره هم د ازواج مطهرات شمير اته پاتې كيږى؟ نوزما په نيز بعيدنه ده چه حضورپاك حضرت سوده رضي الله عنها دحضرت عائشه رضي الله عنها په غواكښې شريكه كړې وى ځكه چه هغې خپل نمبر حضرت عائشه رضي الله عنها ته وركړې وو. ددې توجيه په رڼاكښې دحضرت عائشه رضي الله عنها په حديث باندې د شذوذ حكم لګولوهم

---

(١) صحيح البخارى كتاب الحيض باب الأمر بالنفساء إذا نفسن، رقم الحديث: ٢٩٤زادالمعاد: ٢/٢٦٥.
(٢) زادالمعاد: ٢/٢٦٥.
(٣) زادالمعاد: ٢/٢٦٥.
(٤) المرجع السابق.
(٥) بذل المجهود:٧/١١٤أوجزالمسالك:٨/٩٣.
(٦) رواه الإمام مسلم فى الحج باب جواز الاشتراك فى الهدى الخ رقم الحديث: ٣١٩٢-٣١٩١.
(٧) روان الإمام أبوداؤد فى المناسك باب فى هدى البقر رقم الحديث: ١٧٥١.

حاجت نه پاتې کيږي[1] لکه چه حافظ ابن حجر دشذوذ حکم لګولې دې[2] دحضرت عائشه رضي الله عنها هغه روايت په کوم چه د شذوذ حکم لګولې شوې دې د عمار ذهني په طريق سره نقل دې د کوم الفاظ چه دادي «ذبح عنا رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم حججنا بقرة بقرة»[3] ترجمه حضورپاك زمونږ د حج والا په کال زمونږ د طرف نه يوه يوه غوا ذبح کړې وه. ددې روايت نور تفصيل په راتلونکو کرښوکښې راځي. علامه زرقاني رحمه الله په دې روايتونو باندې په ښه ارت مټ ليکل کړي دی اود امام نسائي رحمه الله دا روايت کوم چه د عمار دهني رحمه الله په طريق سره دحضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل دې ترجيح ورکړې ده[4] او حافظ ابن حجر رحمه الله چه په دې حديث باندې د شذوذ حکم کړې دې[5] په دې کښې علامه زرقاني رحمه الله هغه پسې کيدو سره ليکلي دی چه دحديث عائشه رضي الله عنها راوی عمار الدهني صحيح مسلم او سنن اربعه راوی دې دهغه زياتوالې به مقبول وی چه کوم لفظ نورو ياد نه دې ساتلې هغه ده ياد کړې اوبياد دې راوی زياتوالې د نورو راويانو خلاف هم نه دې ځکه چه دمعمر رحمه الله په روايت کښې کوم الفاظ دی چه «ماذبح إلا بقرة» يعني حضورپاك صرف غوا ذبح کړې. دې نه مراد جنس دې د کوم مطلب چه دادې اوښ يا چيلئی نه ده قرباني کړې بلکه صرف غوا ئې قرباني کړې وه. په دې وجه داد هغه صريح روايت خلاف نه دې په کوم کښې چه دهريود طرف نه د غوا ذبح کولو ذکر راغلې دې. او د شذوذ حکم خو به هله کولې شی کله چه په دوو روايتونوکښې تطبيق ممکن نه وی اودلته ممکن دې.

[6] لهذا ددې تطبيق نه پس دا ثابتيږي چه: «يونس عن الزهري عن عمرة عن عائشة رضى الله عنها» په طريق سره روايت شوې: «أن رسول الله صلى الله عليه وسلم نحر عن أزواجه بقرة واحدة»[7] يعني حضورپاك د خپلو بيبيانودطرف نه يوه غوا ذبح کړې، د معمر رحمه الله روايت: «ماذبح إلا بقرة» اود ابوهريره رضي الله عنه روايت: «ذبح عمن اعتمر من نسائه فى حجة الوداع بقرة بينهن» يعني حضورپاك د حجة الوداع په موقع دخپلو هغه بيبيانود طرف نه چاچه عمره کړې وه دهغوی په مينځ کښې يوه غوا ذبح کړه نه تقويت او تائيدنه ملاويږي لکه چه حافظ ابن حجر رحمه الله ګمان دې. ځکه چه د مذکوره تطبيق نه پس يونس واحدة روايت کولوکښې متفرد کيږي لکه څنګه چه قاضي اسماعيل رحمه الله هم په دې روايت باندې د شذوذ حکم لګولې دې اود حضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې ددې خبرې صراحت نشته چه د غوا نه علاوه ئې څه نه وی ذبح کړې (سره ددې چه د روايت نه هم دغه معلوميږي) ګنې روايت صريحه فى التعدد سره تعارض لازمې راځی.[8]

---

[1]) لامع الدراری: ۲۱۲/۵.

[2]) فتح الباری: ۷۰۳/۳ لامع الدراری: ۲۱۲/۵.

[3]) السنن الكبرى للنسائي: ۴۵۲/۲ رقم الحديث: ۴۱۲۹ مسندأبی عوانة: ۳۱۸/۲ رقم الحديث: ۳۲۷۶.

[4]) شرح الزرقاني على المواهب اللدنية: ۱۱/۴۳۶-۴۳۵.

[5]) فتح الباری: ۷۰۳/۳.

[6]) شرح الزرقاني على المواهب اللدنية: ۱۱/۴۳۶-۴۳۵ أوجزالمسالک: ۹۱/۸.

[7]) السنن الكبرى للنسائي: ۴۵۲/۲ رقم الحديث: ۴۱۲۷ ورواه أبوداؤد فی المناسک باب فی هدی البقر، رقم الحديث: ۱۷۵۰ وابن ماجه فی الأضاحی باب عن كم تجزئ البدنة والبقرة رقم الحديث: ۳۱۳۵.

[8]) أوجزالمسالک: ۹۱/۸.

شيخ الحديث حضرت زكريا رحمه الله دحافظ ابن حجر رحمه الله كلام او په هغې باندې د زرقاني رحمه الله رد ذكركولو نه پس فرمائي چه دا ترديد مضبوط نه دې ځكه چه عمار دهني رحمه الله (د چا روايت ته چه علامه زرقاني رحمه الله ترجيح وركړې ده) او په يونس كښې اختلاف شوې دې نو ترجيح به يونس ته وي ځكه چه سره ددې چه عمار ثقه دې مګر د يونس برابر كيدې نه شي ځكه چه يونس ثقه هم دې اوحافظ هم دې بل حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه عمار بن معاويه صدوق دې مګر په هغه باندې د شيعه كيدو الزام هم دې. لهذا چه كله د دغه دوارو راويانو په خپل مينځ كښې بيان وحدت او تعدد كښې اختلاف شو نو د يونس روايت ته به ترجيح حاصله وي.

دې نه علاوه ابوداؤد رحمه الله او منذري رحمه الله هم د يونس روايت ذكركړې دې او په دې باندې ئې سكوت اختيار كړې دې. اودا كوم چه علامه زرقاني رحمه الله وئيلي دي چه دعمار زيادت معارض نه دې نوداخبره صحيح نه ده ځكه چه د يونس په روايت كښې د وحدت بقرة صراحت دې د كوم په وجه چه يونس رحمه الله اوعمار دهني رحمه الله دوارو په روايتونوكښې جمع اوتوفيق ممكن نه دې اوبيا معمر رحمه الله د يونس متابعت هم كړې دې اودا وينا چه دمعمر رحمه الله په روايت كښې جنس مراددې غلطه ده ځكه چه په بقرة كښې "ة" په جنس او وحدت كښې فرق كوي او په وحدت باندې دلالت كوي لهذا د بقرة نه جنس مراد اخستل صحيح نه دي. چنانچه علامه عيني رحمه الله فرمائي (١)چه بقرة كښې د تمرة او تمر په شان فرق "ة" نه كيدو په صورت كښې احتمال كيدې شي چه د يوې نه زياتې غواګانې ئې ذبح كړې وي. په نورو الفاظو كښې د "ة" كيدو په صورت كښې د يونه د زيات هډو څه احتمال نه شي كيدې. بيا د يونس د روايت دپاره دحضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت هم شاهد دې او په دې روايت كښې زمونږ دپاره دوه شان حجت دې: ① "ة" فارقه بين الوحدة والجنس د وجې نه. ② لفظ "بينهن" د وجې نه ځكه چه كه د يوې نه زياتې غواګانې وې نوبيا د "بينهن" څه مطلب دې؟ دا لفظ خو صراحتاً په اشتراك باندې نص دې چه هغوي ټولې په يوه غوا كښې شريكې وې. دغه شان دامام مسلم رحمه الله د حضرت جابر رضي الله عنه نه (٢)نقل كړې شوې روايت هم د حضرت يونس رحمه الله د روايت د پاره شاهد دې ځكه چه په هغې كښې هم د بقرة صراحت دې.(٣)

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** وړاندې دا خبره تيره شوې ده چه د اكثرنسخونه دا ترجمة الباب ساقط دې اود هغه نسخو په اعتبارسره حديث اوترجمة الباب كښې مناسبت هم واضح دې چه په دوارو كښې بدايت حيض او د حيض د تاريخ تذكره ده او په كومو نسخوكښې چه ترجمة الباب "باب الأمربالنفساء إذانفسن" قائم دې دهغه نسخو په اعتبارسره دحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت دادې چه په ترجمة الباب كښې خودلې شوې دي چه د حيض په حالت كښې هم ښځوسره د اوامر او نواهي تعلق وي او حديث باب كښې دحضرت عائشه رضي الله عنها په عمل سره خودلې دي چه د حيض په حالت كښې ښځه طواف اوسعي نه علاوه د حج ټول اركان اداكولې شي. (٤)

---

(١) عمدة القاري: ٣٨٢/٣.

(٢) رواه الإمام مسلم في الحج باب جواز الاشتراك في الهدى الخ رقم الحديث: ٣١٩٢السنن الكبرى للنسائي: ٤٥٢/٢رقم الحديث: ٤١٣٠.

(٣) أوجز المسالك: ٩٢/٨-٩١.

(٤) فضل الباري: ٤٦٥/٢.

# ۲ - غَسْلِ الْحَائِضِ رَأْسَ زَوْجِهَا وَتَرْجِيلِهِ

**ماقبل سره ربط:** دوارو ابوابوکښې مناسبت دادې چه د وړاندینی باب په شان دا باب هم په احکام حیض باندې مشتمل دې.[1]

## د ترجمة الباب مقصد

**دعلامه رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله رائې:** حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله په دې باب سره دا خودل غواړی چه د حائضه د مقاربت نه چه قرآن پاك کومه منع کړې ده. دهغې نه مراد خاص جماع او دواعی جماع دی. د هرقسم مقاربت اونیزدیکت نه ممانعت نه دې اود یهودو غلطی خودل مقصد دې چه د حیض په حالت کښې ښځې سره خوراك څښاك او په یومکان کښې اوسیدل نی هم منع ګنړل. لهذا حائضه له د خپل خاوند سر وینځل ګمنزول خو جائزدی.[2]

**د شیخ الحدیث زکریا رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه زما په نیز احتمال دادې چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره دهغه روایت د تردید طرف ته اشاره کوی کوم چه د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دې چه هغه خپلې ترور حضرت میمونه رضی الله عنها کره تشریف راوړو. ترور نی چه کله اوکتل چه دهغې د وراره ویښته خیرن او شیندلې پراته دی نوتپوس نی اوکړې اې بچیه! څه خبره ده؟ ستاویښته داسې خیرن ولې دی نو وراره جواب ورکړو چه ام عمار به زما په ویښتوکښې ګمنز کوله مګر دې ورځوکښې هغه په حیض کښې ده (لکه چه ابن عباس رضی الله عنهما د حیض په حالت کښې داعمل ناخوښه ګنړلو) نو ترور حضرت میمونه رضی الله عنها نی اووئیل بچې حیض څه په لاس کښې خونه وی. دې نه پس نی اوفرمائیل رسول الله صلی الله علیه وسلم به زمونږ (ازواج) نه د یوې په غیږ کښې سر کیخودو سره ددې چه هغه بی بی به د حیض په حالت کښې وه. یعنی حضرت میمونه رضی الله عنها د خپل وراره ابن عباس رضی الله عنهما د رائې تردید اوکړو. ممکن ده چه ددې واقعه نه پس ابن عباس رضی الله عنهما دخپلې رائې نه رجوع کړې وی.[3]

## الحديث الأول

[۲۹۲/۲۹] - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «كُنْتُ أُرَجِّلُ رَأْسَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا حَائِضٌ»[4]

**ترجمه:** حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه مابه د حضورپاك صلی الله علیه وسلم په سرمبارك کښې د حائضه کیدو په حالت کښې هم ګمنز کوله.

---

[1] عمدة القاری: ۳۸۲/۳.
[2] لامع الدراری: ۲۴۲/۲.
[3] لامع الدراری: ۲۴۲.
[4] د حدیث ۲۹۲/۲۹۱ تخریج به د وړاندینی حدیث لاندې ذکرکولې شی.

## تراجم رجال

**عبدالله بن یوسف**: دا مشهور امام اومحدث ابومحمد عبدالله بن یوسف تنیسی کلاعی دمشقی رحمه الله دي. ددوی مختصر حالات بدء الوحي د دویم حدیث لاندې [1] اوتفصیلی حالات کتاب العلم باب لیبلغ العلم الشاهد الغائب د رومبی حدیث لاندې تیرشوی دی. [2]

**مالك**: دا امام دارالهجره عالم المدینه امام مالك بن انس بن مالك بن ابی عامر بن عمرو الاصبحی المدنی رحمه الله دي. ددوی کنیت ابوعبدالله دي. د دوی مختصر حالات بدء الوحي دویم حدیث لاندې [3] اوتفصیلی حالات کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن د وړاندې حدیث لاندې ذکرکولې شی. [4]

**هشام**: داد عروة بن الزبیر بن العوام رحمه الله خوئي دي. د دوی مختصر حالات بدء الوحي دویم حدیث لاندې [5] اوتفصیلی حالات کتاب الایمان باب أحب الدین إلی الله أدومه لاندې تیرشوی دی. [6]

**عروة**: دا عروة بن الزبیر بن العوام رحمه الله دي. د دوی مختصر حالات بدء الوحي دویم حدیث لاندې [7] او تفصیلی حالات کتاب الایمان باب أحب الدین إلی الله أدومه لاندې تیرشوی دی. [8]

**عائشة**: دا ام المؤمنین سیده عائشه بنت ابی بکر الصدیق رضي الله عنهما ده. د دوی حالات بدء الوحي دویم حدیث لاندې تیرشوی دی. [9]

## شرح حدیث

ددې حدیث نه دا معلومه شوه چه ښځه د حیض په حالت کښې هم د خاوند په سرکښې ګمنز کولې شی [10] بل داهم معلوم شوچه خاوند د خپلې ښځې نه خدمت اخستې شی خوچه هغه راضی وی [11] او دا اجماعی مسئله ده. [12]

### د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت

**د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې**: امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب دوه جزونه کړی دی یوغسل او بل ترجیل. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت ترجیل (د ګمنزکولو) په لحاظ سره

---

[1] کشف الباری: ۲۸۹/۱.
[2] کشف الباری: ۱۱۳/٤.
[3] کشف الباری: ۲۹۰/۱.
[4] کشف الباری: ۸۰/۲.
[5] کشف الباری: ۲۹۱/۱.
[6] کشف الباری: ٤۳۲/۲.
[7] کشف الباری: ۲۹۱/۱.
[8] کشف الباری: ٤۳۶/۲.
[9] کشف الباری: ۲۹۱/۱.
[10] عمدة القاری: ۳۸۳/۳.
[11] عمدة القاری: ۳۸۳/۳شرح ابن بطال: ٤۱۸/۱.
[12] عمدة القاری: ۳۸۳/۳.

خو ښکاره دې چه د باب په دوارو احاديثو کښې ددې ذکر موجود دې البته غسل رأس ذکر نشته دې مګر دا خو يا په ترجيل باندې قياس کړې شوې دې يا امام بخاري رحمه الله ددې جز په ذريعه د حديث هغه طريق طرف ته اشاره کړې ده کوم چه **باب مباشرة الحائض** کښې راتلونکې دې ځکه چه په هغې کښې د غسل رأس صراحت دې.(۱)

**د شيخ الحديث زکريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث زکريا رحمه الله د حافظ ابن حجر رحمه الله توجيه نقل کولو سره ليکلې دې چه زما په نيز دويم صورت (د اشاره والا) متعين دې.(۲) ځکه چه دا صورت د تراجم امام بخاري رحمه الله په حواله سره جمع کړې شوې اويا (۷۰) اصولونه يوولسم اصل عين موافق دې.(۳)

**دعلامه عيني رحمه الله رائې:** علامه عيني رحمه الله فرماني چه د باب په دوارو احاديثو کښې د ترجمه دويم جز "**ترجيل رأس**" سره مطابقت خو ښکاره دې د باقي رومبي جز "**غسل الحائض رأس زوجها**" سره څه مطابقت موجود نه دې. بل د حافظ ابن حجر رحمه الله په توجيهاتو باندې رد کولو سره فرماني چه "اوبعض خلقو چه د قياس او اشاره والاتاويلات کړې دى نوهغه دواړه بې حقيقت دى، د قياس والاتاويل خو په دې وجه چه تراجم ابواب ته د وضع اوتصنيف څه شرعي حيثيت خو حاصل نه دې چه په يوحکم باندې دويم قياس کړې شي يعنى چونکه د ترجيل ترجمه قائم کول صحيح دى په دې وجه په دې باندې قياس کولوسره مونږ ته دغسل رأس د ترجمه قائم کولوحق هم ملاؤ شو. د تراجم حيثيت صرف دعنوانات دې اوددې د صحت دارومدار دهغې لاندې پيش کړې شوې احاديثوسره مطابقت باندې دې اوچه کله دا خبره حاصل نه ده نو زياتى او غيرمطابق ترجمه اوعنوان ذکر کول لاحاصل دى."

اود اشاره والا تاويل ځکه صحيح نه دې ځکه چه داخبره د. چانه هم نقل کيدې نه شي چه ترجمه او عنوان خو په دې باب کښې وى اومترجم له (د کوم دپاره چه هغه عنوان دلته قائم کړې شوې دې) هغه باب پريږدى او په دريم باب کښې راشى ځکه چه دلته ددې باب نه پس يوباب "**باب قراءة الرجل في حجر امرأته**" راځى. بيادويم باب "**من سمى النفاس حيضاً**" به راځى. دې نه پس "**باب مباشرة الحائض**" راځى. په کوم کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله د وينا مطابق ددې ځائى عنوان معنون له ذکر دې.(۴)

## الحديث الثاني

[۲۹۲] - حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، قَالَ: أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَهُمْ قَالَ: أَخْبَرَنِي هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّهُ سُئِلَ أَتَخْدُمُنِي الحَائِضُ أَوْ تَدْنُو مِنِّي المَرْأَةُ وَهِيَ جُنُبٌ؟ فَقَالَ عُرْوَةُ: كُلُّ ذَلِكَ عَلَيَّ هَيِّنٌ، وَكُلُّ ذَلِكَ تَخْدُمُنِي وَلَيْسَ على أَحَدٍ فِي ذَلِكَ بَأْسٌ أَخْبَرَتْنِي عَائِشَةُ: «أَنَّهَا كَانَتْ تُرَجِّلُ، تَعْنِي رَأْسَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عَلَيْهِ

(۱) فتح الباري: ۵۲۸/۱.
(۲) لامع الدراري: ۲۴۲/۵.
(۳) لامع الدراري: ۲۴۲/۵ الكنز المتواري: ۳۵۷/۱.
(۴) عمدة القاري: ۳۸۳/۳-۳۸۲.

وَسَلَّمَ، وَهِيَ حَائِضٌ، وَرَسُولُ اللَّهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَئِذٍ مُجَاوِرٌ فِي الْمَسْجِدِ، يُدْنِي لَهَا رَأْسَهُ، وَهِيَ فِي حُجْرَتِهَا، فَتُرَجِّلُهُ وَهِيَ حَائِضٌ» [۱۹۲۶-۱۹۲۴، ۱۹۴۱، ۵۵۸۱] (۱)

**ترجمه**: دحضرت عروه رحمه الله نه چا سوال اوكړوآيا حائضه زما خدمت كولې شي يا د ناپاكئى په حالت كښې ښځه ماسره نيزدې كيدې شي؟ نوعروه رحمه الله اوفرمائيل زما په نيز په دې كښې هيڅ حرج نشته دې. دغه شان ښځې زماهم خدمت كوى او په دې كښې د چا د پاره هم څه حرج نشته دې. ماته حضرت عائشه رضي الله عنها اوونيل چه هغې به د حيض په حالت كښې د حضورپاك په سرمبارك كښې ګمنز كوله. حالاكه حضورپاك به هغه وخت په جمات كښې معتكف وو حضورپاك به خپل سرمبارك رانيزدې كولو اوحضرت عائشه رضي الله عنها د حائضه كيدو سره به هم د خپلې كمرې نه ګمنزكوله

## تراجم رجال

**إبراهيم بن موسى**: دا ابراهيم بن موسى بن يزيد بن زادان التميمي الرازي الفراء رحمه الله دې. ددوى كنيت ابواسحاق او لقب صغير دې اودې هم په دغه لقب باندې مشهوراومعروف وو. (۲)

دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه نقل دى چه هغوى به په هغه خلقو باندې نكير فرمائيلو چه ابراهيم بن موسى رحمه الله به ئې د صغير په لقب سره بللو. هغوى رحمه الله به د ابراهيم بن موسى رحمه الله باره كښې فرمائيل «هوكبيرفي العلم والجلالة» (۳) يعني ابراهيم بن موسى لوئى صاحب علم او صاحب جلال سړې وو. ابراهيم بن موسى رحمه الله د هشام بن يوسف صنعاني، وليد بن مسلم، يحيى بن ابي زائده، عيسى بن يونس، عبده بن سليمان، خالد الواسطي، ابوالاحوص اويزيد بن زريع رحمهم الله وغيره نه دحديث روايت كړې. (۴)

ددوى نه روايت كونكوكښې امام بخاري، امام مسلم، امام ابوداؤد (نور اصحاب صحيح ددوى نه بالواسطه روايت كوى) يحيى بن موسى البلخي، ابو حاتم، ابوزرعه، عمرو بن منصور النسائي، محمدبن مسلم بن واره الرازي، محمدبن يحيى الذهلي او ابو اسماعيل محمدبن اسماعيل الترمذي رحمهم الله وغيره دى. (۵)

---

(۱) قوله: "عائشة : الحديث، رواه البخاري في نفس الباب قبل هذه الرواية أيضاً تحت رقم الحديث: ۲۹۵ وكذافي باب: مباشرة الحائض: ۳۰۱، وفي الاعتكاف في باب: الحائض ترجل رأس المعتكف، رقم الحديث: ۲۰۲۸ وباب: لايدخل البيت إلا لحاجة رقم الحديث: ۲۰۲۹ وباب: غسل المعتكف، رقم الحديث: ۲۰۳۱-۲۰۳۰ وباب: المعتكف يدخل رأسه البيت للغسل رقم الحديث: ۲۰۴۶ وفي اللباس في باب: ترجيل الحائض زوجها، رقم الحديث: ۵۹۲۵ ورواه مسلم في الحيض في باب: جوازو غسل الحائض رأس زوجها وترجيله...... الخ رقم الحديث: ۶۸۴ والترمذي في الصوم باب: المعتكف يخرج لحاجته أم لا؟ رقم الحديث: ۸۰۴ وأبوداؤد في الصوم في باب: المعتكف يدخل البيت لحاجته رقم الحديث: ۲۴۶۹-۲۴۶۷ والنسائي في الحيض في باب: ترجيل الحائض رأس زوجهاالخ رقم الحديث: ۲۸۶ وباب غسل الحائض رأس زوجها رقم الحديث: ۳۸۹-۳۸۷ وابن ماجه في الطهارة في باب: الحائض تتناول الشي في المسجد، رقم الحديث: ۶۳۳

(۲) تهذيب الكمال: ۲۱۹/۲ تهذيب التهذيب: ۱۷۰/۱.

(۳) تهذيب الكمال: ۲۱۹/۲ تهذيب التهذيب: ۱۷۱/۱ عمدة القاري: ۳۸۳/۳.

(۴) تهذيب التهذيب: ۱۷۰/۱.

(۵) تهذيب التهذيب ۱۷۱/۱ د تلامذه ومشائخ د تفصيل د پاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۲۱۹/۲.

الإكمال كښې دی چه ابراهيم بن موسى رحمه الله نه امام بخاري رحمه الله اويا او امام مسلم رحمه الله ديرش احاديث روايت كړی دی.[1] امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى «إبراهيم بن موسى أتقن من أبى بكر بن أبى شيبة وأصح حديثاً منه، لا يحدث إلا من كتابه، لا أعلم أنى كتبت عنه خمسين حديث من حفظه، وهو أتقن من صفوان بن صالح» يعنى دابراهيم بن موسى رحمه الله (په علم حديث كښې) پوخوالى او مهارت د امام ابوبكر بن ابى شيبه په نسبت زيات دې او په صحيح احاديثو روايت كولو كښې هم دهغوى نه وړاندې دې. دهغوى د تحديث طريقه دا وه چه هغوى به د خپل كتاب نه احاديث بيانول (اود حديث په روايت كښې كولو كښې د احتياط دا حال وو چه) زه نه پوهيږم چه ما دهغوى نه پنځوس احاديث هم داسې ليكلې وى چه هغوى په حفظ سره بيان كړې وى او هغوى د علم په پوخوالى او حافظه كښې د صفوان بن صالح نه هم وړاندې وو.[2]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى «إبراهيم بن موسى من الثقات وهو أتقن من أبى جعفر الجمال».[3] امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى چه ما د ابراهيم بن موسى رازى او ابوبكر بن ابى شيبه رحمه الله نه يو يو لكه احاديث ليكلى دى.[4] امام نسائى رحمه الله فرمائى ثقة[5] ابن حبان رحمه الله دهغوى ذكر كتاب الثقات كښې كړې دې.[6] امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى «كان عند إبراهيم حديث بخط إدريس فحدث به فأنكروه عليه، فتركه».[7] يعنى د ابراهيم بن موسى رحمه الله سرة د ادريس رحمه الله ليكلې شوې يوحديث وو كله چه هغوى دا حديث بيان كړو نو محدثينو په دې باندې نكير اوفرمائيلو كوم نه پس چه ابراهيم بن موسى رحمه الله دغه حديث پريخودو. په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل چه «وهذا يدل على شدة توقيه»[8] يعنى د ابراهيم بن موسى رحمه الله داعمل د حديث په معامله كښې دهغوى د احتياط په سختوالى باندې دلالت كوى.

امام خليلى رحمه الله فرمائى د مقام "رى" د هغه لويو لويو اوحفاظ علماؤ نه كوم چه دامام احمد رحمه الله او امام يحيى رحمه الله برابر وو ابراهيم بن موسى رحمه الله هم وو چاچه (دعلم حديث د حصول دپاره) دعراق يمن او شام وغيره سفرونه هم اوكړل. د امام احمد رحمه الله به نې ډير تعريفونه كول.[9]

علامه شمس الدين الذهبى رحمه الله فرمائى «مات فى حدود سنة ثلاثين» يعنى د دوى انتقال ۲۳۰هجرى په آخره كښې شوې.[10] نورد وفات د كال په حواله سره يوقول داهم دې چه دهغوى انتقال ۲۱۹هجرى

---

[1] إكمال تهذيب الكمال: ۳۰۰/۱.
[2] سير أعلام النبلاء: ۱۴۱/۱۱ الجرح والتعديل: ۸۲/۲تهذيب الكمال: ۲۲۰/۲تهذيب التهذيب: ۱۷۱/۱الكاشف: ۵۰/۱.
[3] سير أعلام النبلاء: ۱۴۱/۱۱ الجرح والتعديل: ۸۲/۲تهذيب الكمال: ۲۲۰/۲تهذيب التهذيب: ۱۷۱/۱.
[4] سير أعلام النبلاء: ۱۴۱/۱۱ تهذيب الكمال: ۲۲۰/۲تهذيب التهذيب: ۱۷۱/۱الكاشف: ۵۰/۱.
[5] سير أعلام النبلاء: ۱۴۱/۱۱تهذيب الكمال: ۲۲۰/۲.
[6] ۷۰/۸.
[7] تهذيب التهذيب: ۱۷۱/۱تهذيب الكمال: ۳۰۰/۲.
[8] تهذيب التهذيب: ۱۷۱/۱.
[9] تهذيب التهذيب: ۱۷۱/۱تهذيب الكمال: ۲۹۹/۲.
[10] سير أعلام النبلاء: ۱۴۱/۱۱.

کنبي شوي (١) علامه مغلطائي رحمه الله فرمائي چه ابراهيم بن موسى رحمه الله او محمد بن مهران الجمال انتقال ۲۲۰ هجري نه پس شوي دي. (٢)

**هشام بن یوسف**: دا هشام بن يوسف صنعاني رحمه الله دي. د دوى كنيت ابوعبدالرحمن دي دا فارسي النسل وو او صنعا يمن كنبي د قضاء په عهده باندي فائز وو. (٣)

هشام بن یوسف رحمه الله د معمر بن راشد، ابن جريج، قاسم بن فياض، سفيان ثوري، عبدالله بن بجير بن زيسان، عبدالله بن سليمان نوفلي، رباح بن عبيدالله بن عمرالعمري، ابراهيم بن عمر بن كيسان او نعمان بن ابى شيبه جندي رحمهم الله وغيره د حديث روايت كړې. اود هغوى نه روايت كونكو كښې دهغه دتره خوئى زكريا بن يحيى بن تميم بن عبدالرحمن صنعاني، محمدبن ادريس شافعي، علي بن المديني، يحيى بن معين، عبدالله بن محمد المسندي، ابراهيم بن موسى الرازي، اسحاق بن راهويه علي بن بحر بن بري، موسى بن هارون البردي او اسحاق بن ابي اسرائيل رحمهم الله وغيره دي (٤)

امام عبدالرزاق رحمه الله فرمائي: «**إن حدثكم القاضي – هشام بن يوسف – فلا عليكم أن لاتكتبوا عن غيره**» (٥)

ترجمه: كه چرې قاضي هشام بن يوسف رحمه الله تاسو ته څه حديث بيان كړي نوبياستاسو د پاره په هغې كښې هيڅ حرج نشته دي چه تاسو دبل چا نه د حديث كتابت اونه كړئى. هم پخپله د هشام بن يوسف رحمه الله نه روايت دي چه كله سفيان ثوري رحمه الله يمن ته تشريف راوړو نوهغوى خواهش ښكاره كړو چه د هغوى دپاره يوتيز ليكونكې اولټولې شى نوددې كاردپاره ئى زه خوښ كړم نوهم ما به د هغه نه روايات ليكل. (٦)

يحيى بن معين رحمه الله فرمائي: «**لم يكن به بأس، كان هو أضبط عن ابن جريج من عبدالرزاق**» يعنى د هشام بن يوسف رحمه الله نه په رواياتو اخستوكښې هيڅ حرج نشته دې هغه د ابن جريج رحمه الله نه احاديثو روايت كولوكښې د عبدالرزاق رحمه الله په مقابله كښې ډير مضبوط وو. په يوه بله موقع باندې فرمائى: «**هشام بن يوسف أثبت من عبدالرزاق في حديث ابن جريج وكان أقرأ الكتب ابن جريج من عبدالرزاق وكان أعلم بحديث سفيان من عبدالرزاق وهو ثقة**» (٧) يعنى هشام بن يوسف رحمه الله د ابن جريج رحمه الله نه حديث نقل كولوكښې د عبدالرزاق رحمه الله نه زيات مضبوط دې او هغه د عبدالرزاق په مقابله كښې د ابن جريج رحمه الله كتابونه هم زيات لوستونكې وو. او دغه شان د سفيان ثوري رحمه الله احاديث هم د عبدالرزاق رحمه الله نه زيات پيژندل او هشام بن يوسف رحمه الله يو ثقه راوى وو.

---

(١) إكمال تهذيب الكمال: ٣٠٠/١.

(٢) إكمال تهذيب الكمال: ٢١٩/١.

(٣) الجرح والتعديل: ٨٨/٩ كتاب الثقات لابن حبان: ٢٣٢/٩ تهذيب الكمال: ٣٠/٢٦٦-٢٦٥ سير أعلام النبلاء: ٥٨٠/٩ تهذيب التهذيب: ٥٧/١١ الكاشف: ٢١٢/٣ السلوك فى طبقات العلماء والملوك: ١٤٠/١-١٣٩.

(٤) تهذيب التهذيب: ٥٧/١١ دتلامذه او مشائخ د تفصيل دپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ٢٦٦/٣.

(٥) الجرح والتعديل: ٨٩/٩ تهذيب الكمال: ٢٦٧/٣٠ سير أعلام النبلاء: ٥٨١/٩.

(٦) سير أعلام النبلاء: ٥٨١/٩ تهذيب الكمال: ٢٦٧/٣٠ الجرح والتعديل: ٨٩/٩.

(٧) الجرح والتعديل: ٨٩/٩ تهذيب الكمال: ٢٦٧/٣٠.

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائي: «هشام أصح اليمانيين كتاباً»[۱] ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړی دی.[۲] امام عجلی رحمه الله فرمائی ثقة.[۳] امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي ثقة متقن.[۴] حاکم رحمه الله فرمائی ثقة مأمون.[۵] علامه شمس الدين الذهبی رحمه الله د هشام بن یوسف رحمه الله تعارف په ډیرو درنو الفاظو کښې کړی دی اوهغه فرمائی چه هشام بن یوسف رحمه الله د عبدالرزاق د زمانې د خلقو نه دی.[۶] امام خلیلی رحمه الله فرمائی: ثقة متفق علیه.[۷] دهشام بن یوسف رحمه الله انتقال ۱۹۷هجری کښې تقریبا د اویاؤ کالو په عمر کښې شوی.[۸]

**ابن جریج:** د جیم په ضمه او راء په فتحه سره دامشهور امام عبدالملک بن عبدالعزیز بن جریج مکی قرشی مدنی رحمه الله دی. دا په اصل کښې د رومی نسل نه وو دهغه دوه کنیتونه وو یو ابوخالد او بل ابوالولید.[۹] ابن جریج د حکیمه بنت رقیه، خپل پلار عبدالعزیز، امام زهری، عطاء بن ابی رباح، اسحاق بن ابی طلحه، صالح بن کیسان، طاؤوس، ابن ابی ملیکه، عطاء الخراسانی، عکرمه بن خالد المخزومی، عکرمه مولی بن عباس، عمرو بن دینار، سعیدبن الحویرث، محمدبن المنکدر، نافع مولی ابن عمر، هشان بن عروه، موسی بن عقبه، ایوب سختیانی، عبدالله بن کیسان، سهیل بن ابی صالح، عبدالحمید بن جبیر، عبدالله بن طاؤوس، علاء بن عبدالرحمن، یعلی بن مسلم، یوسف بن ماهك، یوسف بن یونس اومعمر بن راشد رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کړی.

اوددوی نه روایت کونکوکښې دهغوی دواړه ځامن عبدالعزیز اومحمد، امام اوزاعی، لیث، یحیی بن سعیدالانصاری، عبدالوهاب الثقفی، عیسی بن یونس، حفص بن غیاث، مسلم بن خالد الزنجی، ابن عیینه، اسماعیل بن علیه، ابن المبارك، یحیی بن زائده، هشان بن یوسف اومکی بن ابراهیم رحمهم الله وغیره دی.[۱۰] د ابن جریج رحمه الله نه روایت دی چه هغوی ۱۷کاله عطاء بن ابی رباح رحمه الله سره دتحصیل علم دپاره تیر کړل.[۱۱] هم دغه وجه ده چه دهغوی اکثر روایات هم د دوی نه مروی دی. امام مجاهد رحمه الله صرف د قراءات دوه حرفونه ه روایت کړی دی. طاؤوس رحمه الله هم یو حدیث روایت کړی دی اوعکرمه العباسی رحمه الله نه مرسلاً روایت کوی.[۱۲] ځکه چه ابن جریج رحمه الله ته د عکرمه مولی ابن عباس نه سماع حاصله نه ده.[۱۳]

---

[۱] سیرأعلام النبلاء: ۵۸۱/۹الجرح والتعدیل: ۸۹/۹تهذیب الکمال: ۲۶۸/۳۰.
[۲] ۲۳۲/۹.
[۳] تهذیب الکمال: ۲۶۸/۳۰.
[۴] سیرأعلام النبلاء: ۵۸۱/۹الجرح والتعدیل: ۸۹/۹تهذیب الکمال: ۲۶۸/۳۰.
[۵] إکمال تهذیب الکمال: ۱۵٤/۱۲.
[۶] إکمال تهذیب الکمال: ۱۵۵/۱۲.
[۷] سیرأعلام النبلاء: ۵۸/۹.
[۸] سیرأعلام النبلاء: ۵۸۱/۹ تهذیب الکمال: ۲۶۸/۳۰کتاب الثقات لابن حبان: ۲۳۲/۹عمدة القاری: ۳۸۳/۳.
[۹] عمدة القاری: ۳۸۳/۳الکنی والأسماء حرف الخاء من الکنی من کنیة أبوخالد ص: ۵۰۳.
[۱۰] د تلامذه او شیوخ دتفصیل دپاره اوګورئی: تهذیب الکمال: ۳٤٦/۱۸-۳۳۹سیرأعلام النبلاء: ۳۲۷/٦-۳۲٦.
[۱۱] تهذیب الکمال: ۳٤۸/۱۸سیرأعلام النبلاء: ۳۲۷/٦تهذیب التهذیب: ٤۰٤/٦.
[۱۲] سیرأعلام النبلاء: ۳۲٦/٦صفة الصفوة، الطبقات الثالثة من أهل مکة: ۲۱٦/۲.
[۱۳] تهذیب الکمال: ۳٤۲/۱۸تهذیب التهذیب: ٤۰۲/٦.

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي چه د ټولو نه د كتابونود ليكلوكار كونكي ابن جريج او ابن ابى عروبه رحمهما الله دى[1] عطاء بن ابى رباح رحمه الله فرمائي: «سيد شباب أهل الحجاز ابن جريج» [2] يعنى ابن جريج د اهل حجاز د ځوانانو سردار دي. يحيى بن سعيد رحمه الله فرمائي: «وابن جريج أثبت من مالك في نافع» [3] يعنى ابن جريج رحمه الله د نافع رحمه الله نه په روايت كولوكښي د مالك رحمه الله نه زيات مضبوط دي. امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي «عمرو بن دينار وابن جريج أثبت الناس في عطاء» [4] يعنى عمرو بن دينار رحمه الله او ابن جريج رحمه الله د عطاء بن ابى رباح رحمه الله نه احاديث روايت كولوكښي د ټولو نه زيات مضبوط دي. نور فرمائي «كان من أوعية العلم» [5] يعنى ابن جريج د علم نه ډك لوښى په شان وو. مخلد بن الحسين رحمه الله فرمائي «ما رأيت خلقاً من خلق الله أصدق لهجة من ابن جريج» [6] يعنى ما د ابن جريج د خبرو اترو نه زياتې خبرې اترې د چانه دى ليدلى.

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي: «ابن جريج ثبت صحيح الحديث لم يحدث بشئ إلا أتقنه» [7] يعنى ابن جريج رحمه الله د اعتمادقابل او صحيح الحديث راوى دې هغه هيڅ يو روايت بغيرد پوخوالى نه دې روايت كړې. د يحيى بن معين رحمه الله نه تپوس اوكړې شو چه «ابن جريج أحب إليك أو عبدالملك بن أبى سليمان؟» يعنى تاسو د حديث په معامله كښې ابن جريج ډير خوښونئ كه عبدالملك بن ابى سليمان؟ نوهغوى اوفرمائيل «كلاهما ثقتان» چه دواړه ثقه راويان دى.[8] د عطاء بن ابى رباح رحمه الله نه تپوس اوكړې شو «من نسأل بعدك يا أبا محمد؟» يعنى تاسو نه پس مونږ د حديث په معامله كښې چاته رجوع اوكړو؟ نو هغوى اوفرمائيل «هذا الفتى ـ إن عاش ـ يعنى: ابن جريج» [9] يعنى د ابن جريج رحمه الله طرف ته ئى اشاره اوكړه وئى فرمائيل كه چرې دا ځوان ژوندې وى نو زما نه پس ده طرف ته رجوع كوئى. على بن عبدالله رحمه الله فرمائي: «لم يكن في الأرض أحد أعلم بعطاء من ابن جريج» [10] يعنى په دې زمكه باندې دعطاء (بن ابى رباح) علم د ابن جريج نه زيات پيژندونكي بل څوك نشته دې. امام عبدالرزاق رحمه الله فرمائي «ما رأيت أحسن صلاة من ابن جريج» [11] نور فرمائي چه: «كنت إذا رأيت ابن جريج علمت أنه يخشى الله» يعنى ما د ابن جريج په كتو سره معلوم كړې ووچه هغه د الله تعالى نه ويريدونكي دې.[12]

---

[1]) تهذيب الكمال: ۳۴۶/۱۸سير أعلام النبلاء: ۳۲۸/۶.
[2]) تهذيب الكمال:۳۴۷/۱۸سير أعلام النبلاء: ۳۲۸/۶.
[3]) تهذيب الكمال:۳۴۸/۱۸سير أعلام النبلاء: ۳۲۸/۶تهذيب التهذيب: ۴۰۴/۶.
[4]) حواله بالا.
[5]) تهذيب الكمال: ۳۴۹/۱۸سير أعلام النبلاء: ۳۲۹/۶ تهذيب التهذيب: ۴۰۴/۶.
[6]) تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۸سير أعلام النبلاء: ۳۳۰/۶ تهذيب التهذيب: ۴۰۵/۶.
[7]) الجرح والتعديل: ۴۲۲/۵.
[8]) حواله بالا.
[9]) تهذيب الكمال: ۳۴۷/۱۸سير أعلام النبلاء: ۳۲۸/۶تهذيب التهذيب: ۴۰۴/۶.
[10]) سير أعلام النبلاء: ۳۳۱/۶ الجرح والتعديل: ۴۲۲/۵.
[11]) تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۸سير أعلام النبلاء: ۳۳۰/۶تهذيب التهذيب: ۴۰۵/۶.
[12]) سير أعلام النبلاء "۳۳۲/۶.

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی «صالح الحدیث»[1] امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی «بخ من الأئمة»[2] امام خراش رحمه الله فرمائی «کان صدوقاً»[3] امام عجلی رحمه الله فرمائی «مکی ثقة»[4] ابن حبان د هغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[5] لیکن ابو الاثر رحمه الله دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه نقل کوی چه «إذا قال ابن جریج (قال فلان) و (أخبرت) جاء بمناکیر، وإذا قال: (أخبرني) و (سمعت) فحسبك به» هم دغه شان ابوالحسن المیمونی رحمه الله هم دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه نقل کوی چه «إذا قال ابن جریج (قال) فاحذره، وإذا قال: (سمعت) أو (سألت) جاء بشيء، لیس في النفس منه شيء»[6] یعنی که ابن جریج قال فلان یا أخبرت ونیلو سره حدیث نقل کړی نودغه حدیث مه اخلئی خوکه چرې سمعت یا سألت په شان الفاظو سره حدیث نقل کړی نو دداسې احادیثو په صحت هیڅ کلام نشته دې.

یزید بن زریع رحمه الله فرمائی «کان ابن جریج صاحب غثاء»[7] یعنی ابن جریج ګډوډ کلام کونکې وو. مالك بن انس رحمه الله فرمائی «کان حاطب لیل» یعنی ابن جریج رطب ویابس جمع کونکې راوی وو.[8]

د دې ټولو اقوالو حاصل دادې چه ابن جریج مدلس وو اوکله چه هغه قال فلان یا أخبرت وغیره په شان مبهم الفاظو سره روایت کوی نوهغه روایت د حجت قابل نه وی اوکله چه أخبرنا یاسمعت یاسألت وغیره په شان الفاظوسره روایت کوی نوهغه روایت د حجت قابل وی. بهرحال ابن جریج رحمه الله په اتفاق سره ثقه راوی دې. هم دغه وجه ده چه صحاح سته، مسند احمد، المعجم الکبیر للطبرانی وغیره د حدیث کتابونه د ابن جریج رحمه الله د روایاتونه ډك دی. چنانچه علامه ذهبی رحمه الله فرمائی «وروایات ابن جریج وافرة في الکتاب الستة، وفي مسند أحمد ومعجم الطبراني الأکبر وفي الأجزاء»[9]

اوحافظ ابن حجر رحمه الله ابن جریج رحمه الله په خپل کتاب طبقات المدلسین دریمه طبقه کښې ذکرکړې دې[10] په دې دریمه طبقه کښې حافظ ابن حجر رحمه الله هغه مدلسین راجمع کړی دی د چا روایات چه ائمه حدیث په دې شرط باندې قبول کړی دی چه په هغې کښې د سماع وغیره تصریح وی خو بعض ائمه د دغه رواتو روایات علی الاطلاق رد کوی اوبعض علی الاطلاق قبول کوی.[11]

علامه ذهبی رحمه الله د ابن جریج سره متعلق ټول اقوال ذکرکولو نه پس دهغوی باره کښې فیصله کونکې انداز کښې فرمائی: «الرجل في نفسه ثقة، حافظ، لکنه یدلس بلفظة "عن" و "قال". وقد کان صاحب تعبد وتهجد

---

[1] ) إکمال تهذیب الکمال: ۳۲۱/۸.

[2] ) إکمال تهذیب الکمال: ۳۲۱/۸.

[3] ) حواله بالا

[4] ) حواله بالا.

[5] ) ۹۳/۷.

[6] ) تهذیب الکمال: ۳۴۸/۱۸سیر أعلام النبلاء: ۳۲۸/۶تهذیب التهذیب: ۴۰۴/۶.

[7] ) تهذیب الکمال: ۳۴۹/۱۸سیر أعلام النبلاء: ۳۲۹/۶.

[8] ) حواله بالا

[9] ) سیر أعلام النبلاء: ۳۳۲/۶.

[10] ) طبقات المدلسین: ۴۱/۱مکتبة المنار.

[11] ) طبقات المدلسین مقدمة ابن حجر: ۱۳/۱.

ومازال يطلب العلم حتى كبروشاخ» (١)هم علامه ذهبي رحمه الله فرمائی چه ابن جريج رحمه الله به اجازه او مناوله غوند طرق سره هم حديث روايت كولو او په دې كښې به ئې د توسيع نه كار اخستلو. (٢)چنانچه پخپله ابن جريج رحمه الله فرمائي: «لم أسمع من الزهري، إنما أعطاني جزءا كتبته، وأجازه لي» ما د زهرى رحمه الله نه هيڅ نه دى اوريدلى (البته) هغوى ماته يوه نسخه راكړه كوم چه ما اوليكله او هغه ماته د دې نه د حديث روايت كولو اجازت راكړو. (٣) هم دغه شان ابو بكر بن ابى سبره رحمه الله فرمائى چه ماته ابن جريج د جيد احاديثو ليكلو اووئيل نوماد هغه د پاره داسې زر احاديث اوليكل او د هغه طرف ته مې اوليګل. نه ما دغه احاديث په هغه باندې اولوستل اونه هغه زما په وړاندې دا اولوستل. (٤)ددې قصې نه پس محمدبن عمر رحمه الله فرمائي چه ماد ابن جريج رحمه الله نه واؤريده چه هغه به د ډيرو زياتو احاديثو سندونه داسې بيانول«حدثنا أبوبكر بن أبي سبرة» (٥)

بل عبدالرحمن بن ابى الزناد رحمه الله فرمائى چه ما ابن جريج رحمه الله اوليدلو چه هغه هشام بن عروه رحمه الله له راغلو او هغوى ته ئې اووئيل: «يا أبا المنذر! الصحيفة التي أعطيتها فلانا هي من حديثك؟ قال: نعم!» چه اې ابو منذر كومه نسخه چه تاسو فلانكى ته وركړې ده آيا هغه هم ستاسو احاديث دى؟ نو هشام بن عروه رحمه الله اوفرمائيل اوجى. دې نه پس محمدبن عمر رحمه الله فرمائى چه ما ابن جريج رحمه الله داسې سند بيانولو سره واؤريدو: «حدثنا هشام بن عروة» (٦)

جرير الضبى رحمه الله فرمائى چه ابن جريج رحمه الله به متعه جائز ګڼړله اوهغه شپيتو ښځو سره متعه كړې. (٧)

خو امام شافعى رحمه الله فرمائي ابن جريج رحمه الله اوياؤ ښځو سره متعه كړې. (٨)

دا صحيح ده چه ابن جريج رحمه الله په فقهي توګه باندې د متعه د جواز قائل وو ليكن په دې سره دهغه شيعه كيدل په يوشان هم نه ثابتيږى. هم دغه وجه ده چه حافظ ابن حجر رحمه الله هدي الساري كښې كله دغه روات ذكر كړل په كوم چه طعن كړې شوې دى نو په دغه فهرست كښې ابن جريج شامل نه وو. (٩)

بل يوزمانه پس ابن جريج رحمه الله د خپلې دې نظريې او فتوې نه رجوع كړې وه. (١٠)

د ابن جريج رحمه الله د تاريخ وفات په حواله سره مختلف اقوال دى: يحيى بن سعيد القطان، مكى بن ابراهيم، ابونعيم او نور محدثين رحمهم الله فرمائى چه د ابن جريج رحمه الله انتقال ١٥٠هجرى كښې شوې اوامام على بن المدينى رحمه الله فرمائى چه ١٥١هجرى كښې انتقال شوې. (١١)

---

(١) سير أعلام النبلاء: ٣٣٢/٦.

(٢) سير أعلام النبلاء: ٣٣٢/٦.

(٣) إكمال تهذيب الكمال: ٣١٩/٨.

(٤) إكمال تهذيب الكمال: ٣١٩/٨.

(٥) إكمال تهذيب الكمال: ٣١٩/٨.

(٦) إكمال تهذيب الكمال: ٣١٩/٨.

(٧) سير أعلام النبلاء: ٣٣١/٦.

(٨) إكمال تهذيب الكمال: ٣٢٣/٨.

(٩) هدى السارى الفصل التاسع: ٥٤٨.

(١٠) التفسير المظهرى: ٧٧/٢.

(١١) سير أعلام النبلاء: ٣٣٤/٦ تهذيب الكمال: ٣٥٢/١٨ تقريب التهذيب: ٦١٧/١

**هشام**:داد عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله خوئی دی. د دوی مختصر حالات بدء الوحي دويم حديث لاندې[1] اوتفصيلي حالات كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوی دی.[2]

**عروة**: دا عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله دی. د دوی مختصر حالات بدء الوحي دويم حديث لاندې[3] اوتفصيلي حالات كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوی دی.[4]

**عائشة**:دا ام المؤمنين سيده عائشه بنت ابی بکر الصديق رضي الله عنهما ده. د دوی حالات بدء الوحي دويم حديث لاندې تيرشوی دی.[5]

## شرح حديث

**قوله:: كل ذلك علي هين**: ددې جملې نه وړاندې چه کومه جمله استفهاميه ذکر ده يعنی «أتخدمني أوتدنو؟» نو دا په دې خبره باندې دلالت کوی چه **كل ذلك** نه مقصود د جواز خدمت او د قرب د جواز طرف ته اشاره کول دی زما په نيز په دې دواړو کښې څه حرج نشته.[6]

چه دا اشکال نه وی ذلك نه دتثنيه طرف ته څنګه اشاره ده؟ ځکه چه په ذلك سره د تثنيه طرف ته هم اشاره کيږی چنانچه په قرآن پاك کښې دی: ﴿عَوَانٌ بَيْنَ ذٰلِكَ﴾[7] أي: ماذكر من الفارض والبكر.[8]

**قوله::وكل ذلك**: ددې دويمې جملې نه مراد حائضه او جنبی دی.[9]

**قوله::وليس علي أحد في ذلك بأس**: د ظاهری کلام تقاضا خو داوه چه حضرت عروه بن الزبير رحمه الله خپل طرف ته نسبت کولوسره داسې فرمائی: «ليس علي الخ» ليکن هغوی د عموم قصد کولوسره مبالغةً داسې کلام راوړلو په کوم کښې چه دهغوی ذات دټولو نه اول داخل دی يعنی صرف زما دپاره نه بلکه د هيچاد پاره هم څه حرج نشته.[10] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه حضرت عروه رحمه الله جنابت د حيض تابع کړې دی چه د حيض حکم خودلوسره داسې اشاره اوکړه چه کله د حيض داحکم دی نود جنابت به په طريقه اولی هم دغه حکم وی ځکه چه د حيض خيرې اوګندګی د جنابت نه زيات دی. دغه شان خدمت په هم د ترجيل تابع کړې دی.[11]

---

[1]) كشف الباري: ۲۹۱/۱.
[2]) كشف الباري: ۴۳۲/۲.
[3]) كشف الباري: ۲۹۱/۱.
[4]) كشف الباري: ۴۳۶/۲.
[5]) كشف الباري: ۲۹۱/۱.
[6]) عمدة القاري: ۳۸٤/۳.
[7]) عمدالقاري: ۳۸٤/۳ إرشادالساري: ۵۳۶/۱.
[8]) التفسير المظهري: ۸۲/۲.
[9]) عمدالقاري: ۳۸٤/۳ إرشادالساري: ۵۳۶/۱.
[10]) عمدة القاري: ۳۸٤/۳.
[11]) فتح الباري: ۵۲۹/۱.

هم دا خبره علامه عيني رحمه الله بيانولوسره فرمائي چه حديث صرف د حائضه نه د خدمت اخستلو په جواز باندې دلالت کوی او د جنبی نه په جواز قرب باندې ددې حديث نه دلالت قياسي دې.[1]

**قوله: مجاور**: أي: معتكف.[2] مجاور "جوار" نه ماخوذ دې د کوم معنی چه داعتکاف ده.[3] دحضرت عائشه رضي الله عنها حجره جمات سره ملاؤشوې وه.[4]

**احکام ومسائل**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ددې روايت نه معلومه شوه د حائضه بدن اودهغې خوله پاکه ده اود کوم مباشرت نه چه معتکف منع کړې شوې دې دهغې نه مراد جماع او مقدمات جماع دی.[5]

دغه شان ددې روايت نه معلومه شوه که چرې معتکف خپل سر يا لاس يا خپې د جمات نه بهراوباسی نو اعتکاف نه فاسد کيږی. اودې نه دا هم معلومه شوه چه د ښځې نه په غسل وغيره کښې خدمت اخستل دهغې په رضامندئی سره جائز دی ليکن بغيرد مرضئی نه جائزنه دې. ځکه چه په هغې باندې خو ضروری او لازم صرف د کوروالي تعلق کښې اتباع اود خاوند په کورکښې هروخت اوسيدل دی. بل ددې روايت نه معلومه شوه چه حائضه جمات کښې نه شی داخليدلې.[6]

**لطيفه**: په دې پورتنی حديث کښې دا لطيفه ده چه د ابن جريج د شاګردنوم هم هشام دې اود استاذ نوم هم هشام دې ليکن شاګرد دې هشام بن يوسف او استاذ دې هشام بن عروه.[7]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**: ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت لاندې هم هغه تفصيلی بحث دې کوم چه د سابقه حديث لاندې تيرشوې دې.

## ۳-باب: قِرَاءَةِ الرَّجُلِ فِيْ حَجْرِ امْرَأَتِهِ وَهِيَ حَائِضٌ

**قوله: الحجر**: په فتحه د حاء او کسره اوسکون د جيم د غيږې په معنی کښې راځی ددې جمع حجور ده اود فی حجر امرأته محل اعراب دادې چه دا منصوب علی الحال دې اوتقديری عبارت داسې دې: «قراءة الرجل حال کونه متکئا علی حجر امرأته» اوکله فی د علی په معنی کښې ده. کمافی قوله تعالیٰ: ﴿فِيْ جُذُوْعِ النَّخْلِ﴾ أي: علی جذوع النخل.[8]

**ماقبل سره ربط**: دواړو ابوابوکښې مناسبت دادې چه په دواړوکښې حائضه سره متعلق يويو حکم بيان شوې دې.[9]

---

[1]) عمدة القاری: ۳۸٤/۳.
[2]) فتح الباری: ۵۲۹/۱عمدة القاری:۳۸٤/۳إرشادالساری: ۵۳۶/۱.
[3]) النهاية لابن الأثير: ۳۰۷/۱.
[4]) فتح الباری: ۵۲۸/۱عمدة القاری:۳۸٤/۳.
[5]) فتح الباری: ۵۲۹/۱.
[6]) عمدة القاری: ۳۸۵/۳-۳۸٤.
[7]) فتح الباری:۵۲۸/۱عمدة القاری:۳۸٤/۳.
[8]) عمدة القاری: ۲۶۰/۳-۲۵۹إدارة الطباعة المنيرية.
[9]) عمدة القاری: ۲۶۰/۳إدارة الطباعة المنيرية.

## د ترجمة الباب مقصد

**د ابن بطال رحمه الله او ابن ملقن رحمه الله رائې:** د ابن بطال رحمه الله او ابن ملقن رحمه الله رائې داده چه ددې ترجمة الباب نه د امام بخاري رحمه الله مقصد د حائضه دپاره حمل مصحف بالعلاقه (غلاف سره قرآن پاك اوچتول) اود قرآن كريم قراءت كولو جواز خودل دی.(۱) په دې رائې باندې تقدير كولوسره علامه عيني رحمه الله فرمائی په حديث كښې هيڅ څه اشاره دمذكوره حمل متعلق نشته دې. په حديث كښې خو اتكاء ده كوم چه غير حمل دې اود يوسړى په حجر حائض كښې كيدو سره د حمل جواز نه راوځی.(۲)

**دعلامه كرماني رحمه الله او علامه عيني رحمه الله رائې:** اوپخپله دعلامه كرماني رحمه الله اوعلامه عيني رحمه الله رائې داده چه دامام بخاري رحمه الله مقصد جواز قراءت قرب موضع الجناسه (د نجاست ځائې سره نيزدې د قراءت جواز) خودل دی. (۳)بل علامه كرماني رحمه الله هم د ابن بطال رحمه الله رائې ذكركولونه پس په دې باندې رد كړې دې.(۴) دكوم سره متعلق چه علامه عيني رحمه الله فرمائی د علامه كرماني رحمه الله د ردتعلق د قرآن پاك دقراءت د جواز سره دې ځكه چه په حديث باندې هيڅ داسې څه څيز نشته په كومن سره چه جوازِ قراءتِ قرآن للحائض (د حائضه دپاره د قرآن كريم تلاوت جائز كيدو) باندې استدلال اوشي. (۵)

ليكن ددې نه باوجود دې حضراتو (علامه كرماني رحمه الله اوعلامه عيني رحمه الله) په بيان كړې شوې رائې باندې هم اشكال كيږى اوهغه داچه اول خودا مسئله (د نجاست ځائې سره نيزدې د قراءت جواز) څه اهمه مسئله نه وه، په كوم چه امام بخاري رحمه الله ته د تنبيه ضرورت پيښ شو اوكه چرې هم دغه مقصد ئې وې نو په ځائې د «قراءة الرجل فی حجرامرأته» به ئې «قراءة الرجل بقرب النجاسة» ترجمه قائم كوله.

**دعلامه انورشاه كشميري رحمه الله رائې:** د علامه انورشاه كشميري رحمه الله رائې داده چه امام بخاري رحمه الله په دې باب كښې داخودل غواړى چه د حائضه ښځې په غيږ كښې سر كيخودو سره د قرآن كريم تلاوت كول جائز دی. دې نه پس فرمائی چه دغه شان مسئله د احنافو په نيز هم ده اود فقه په كتابونو كښې چه كومه دامسئله ده چه مړى ته دغسل وركولونه وړاندې دهغه د جنازې سره نيزدې كيناستل يا بل داسې پليت څيزسره خواكې د قرآن مجيدتلاوت كول مكروه دی.(۶) نودا مسئله او په باب كښې ذكرشوې مسئله كښې د فرق وجه داده چه دحائضه ښځې نجاست د كپړو لاندې پټ دې ځكه چه كه دهغې لباس پاك وى نوكراهت به هم نه وى.(۷)

**دشيخ الحديث زكريا رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائی چه شارحينو حضراتو ددې ترجمة الباب مختلف اغراض بيان كړى دی مگر زما په نيز د ټولو نه بهتره توجيه هم هغه ده كومه چه

---

(۱) شرح ابن بطال: ۴۱۹/۱.

(۲) عمدة القاري: ۲۶۱/۳.

(۳) عمدة القاري: ۲۶۱/۳شرح الكرماني: ۱۶۳/۳.

(۴) شرح الكرماني: ۱۶۳/۳-۱۶۲.

(۵) عمدة القاري: ۲۶۱/۳.

(۶) البحرالرائق: ۳۰۱/۲دارالكتب العلمية الدرالمختارمع ردالمحتار: ۸۴/۳-۸۳دار عالم الكتب.

(۷) فيض الباري: ۸۸/۱-۴۸۷أنوارالباري: ۳۷۵/۱۰.

علامه ابن بطال رحمه الله اوابن ملقن رحمه الله وغيره ذکرکړې ده چه دامام بخاری رحمه الله مقصد حمل مصحف بالعلاقه جواز خودل دی. یعنی د امام بخاری رحمه الله مقصد یومختلف فیه مسئله طرف ته اشاره کول دی اوهغه داده چه آیا حائضه او جنبی غلاف یا جزوان وغیره سره قرآن کریم اوچتولې شی که نه؟ نوامام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب سره د حمل د جواز طرف ته اشاره کړې ده اود حضرات حنفیه او حنابله د مذهب تائیدئی کړې دې ځکه چه ددې حضراتو هم دغه مذهب دې او هم په دې کښې په مالکیه او شوافع باندې رد هم دې ځکه چه هغوی د عدم جواز قائل دی.

ددې نه علاوه دعلامه کرمانی رحمه الله رائې ذکرکولونه پس په هغه باندې رد کولوسره فرمائی چه علامه کرمانی رحمه الله چه د علامه ابن بطال رحمه الله په رائې سره دعدم اتفاق اظهارکړې دې نو په دې کښې څه د حیرانتیا خبره نشته ځکه چه هغه شافعی دې اودا وېناکول به کله هم برداشت نه کړی چه دامام بخاری رحمه الله مقصد په شوافع باندې رد دې. باقی چونکه د امام بخاری رحمه الله د تراجم شایان شان هم دغه دې چه په دې سره د یواختلافی مسئلې طرف ته اشاره وی نه چه د یو متفق علیه مسئلې طرف ته. په دې وجه هم هغه توجیه بهتر ده کومه چه علامه ابن بطال رحمه الله وغیره ذکر کړې.([1])

دې نه علاوه شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه حافظ ابن حجر رحمه الله هم د ترجمة الباب نه هم هغه مقصد ګڼړلې کوم چه علامه ابن بطال رحمه الله بیان کړې دې خو په واضحه الفاظو کښې ددې رائې اظهار نه دې کړې. چنانچه حافظ ابن حجرفرمائی: (**وذلك مصير منهما إلى جواز حمل الحائض المصحف لكن من غير مسه، مناسبته لحديث عائشة من جهة أنه نظر حمل الحائض العلاقة التي فيها المصحف بحمل الحائض المؤمن الذي يحفظ القرآن، لأنه حامله في جوفه وهوموافق المذهب أبي حنيفه رحمه الله**) ترجمه: ددې دواړو تابعینود اثر نه معلومه شوه چه هغوی بغیرد مس حمل مصحف د حائضه دپاره جائز ګڼړل اوددې ترجمة الباب مناسبت حدیث عائشه رضی الله عنها سره داسې دې چه امام بخاری رحمه الله علاقه (جزوان) سره دحائضه حمل مصحف ته، د حائضه مومن په غیږ کښې د اخستلو په شان ګرځولې دې چه د هغه په سینه کښې هم قرآن مجید دې اوهغه (امام بخاری رحمه الله) په دې مسئله کښې د امام ابو حنیفه رحمه الله د مذهب موافق دې.([2])

ددې کلام نه صفا او په واضحه توګه سره معلومیږی چه د صاحب کلام رائې هم هغه ده کومه چه د علامه ابن بطال رحمه الله او علامه ابن ملقن رحمه الله وغیره ده. شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه زما په نیز دا ترجمه د شیخ الهند رحمه الله د بیان کړې شوی اصول تراجم نه یوویشتم اصل سره متعلق ده.([3])

**وَكَانَ أَبُو وَائِلٍ: يُرْسِلُ خَادِمَهُ وَهِيَ حَائِضٌ إِلَى أَبِي رَزِينٍ، فَتَأْتِيهِ بِالْمُصْحَفِ، فَتُمْسِكُهُ بِعِلَاقَتِهِ.** یعنی ابوائل رحمه الله به خپله وینځه دحیض په حالت کښې ابورزین رحمه الله له ورلیګله او خادمه به قرآن مجید دهغه ځائی نه جزوان کښې اینغښتلې شوې په خپل لاس سره نیولې راوړلو.

---

[1]) لامع الدراری: ۲۴۲-۲/۲۴۳الکنزالمتواری: ۳/۲۵۲-۲۵۱.

[2]) الکنزالمتواری: ۳/۲۵۲لامع الدراری: ۲/۲۴۳.

[3]) حواله بالا، وذلک الأصل الحادی والعشرون أن الإمام البخاری رحمه الله کثیراً ما یترجم بجزء من الحدیث أو بکلام اخر، ولا یرید بلفظ الترجمة مدلوله الأصلی اللفظی الصریح، بل یرید مدلوله الا لتزامی الثابت بالإشارة والإیمان، فمایورد فی الباب یکون موافقاللثانی، ومن أراد تطبیقه بالأول أی: المدلول اللفظی یقع فی التخبط، کما یظهر من أول أبوابه...... الخ (الکنزالمتواری: ۱/۳۶۷-۳۶۶).

**د تعليق تخريج**: د ابووائل رحمه الله دا اثر ابن ابی شیبه رحمه الله په صحیح سندسره موصولاً ذکر کړی دی هغوی فرمائی ((حدثنا جریر عن مغیرة: کان أبووائل........))[1]

**دتعلیق ترجمة الباب سره مناسبت**

**دعلامه ابن ملقن رحمه الله رائې**: علامه ابن ملقن رحمه الله فرمائی چه ددې مذکوره اثر ترجمة الباب سره مناسبت دادې چه کله امام بخاری رحمه الله د حائضه دپاره د جزوان په ذریعه دحمل مصحف جواز بیان کړو نود دې مثال نی حافظ قرآن اوګرځولو چه دهغه په سینه کښې قرآن وی. نولکه څنګه چه د حائضه دپاره جائز دی چه هغه د جزوان په ذریعه قرآن مجید اوچت کړی هم دغه شان د حافظ قرآن دپاره هم حجر حائضه (د حائضه غیږ) کښې تلاوت د کلام الله هم جائز دې. په داسې معنی چه د حائضه لباس په منزله د جزوان وی او پخپله حافظ قرآن په منزله د مصحف اوکلام پاك وی. [2]

چنانچه علامه ابن ملقن رحمه الله حدیث عائشه رضی الله عنها (کوم چه هم په دې باب کښې ذکر دې) ترجمة الباب سره مناسبت بیانولو سره هم دغه لیکی چه د امام بخاری رحمه الله مقصد د حائضه دپاره جزوان سره د حمل مصحف جواز بیانول دی. نو په حدیث کښې ددې دلیل او مثال موجود دې چه حضورپاك به په حجر عائشه رضی الله عنها کښې تلاوت فرمائیلو سره د دې چه هغه به د حیض په حالت کښې وه. نوثیاب د عائشه بی بی رضی الله عنها په منزله د علاقه اوجزوان شو اوشارع علیه السلام په منزله د مصحف اوقرآن مجید شو یعنی د حائضه دپاره حمل مصحف جزوان سره جائزدې لکه چه څنګه به حضرت عائشه رضی الله عنها د خپل لباس په ذریعه حضورپاك تلاوت کولوسره اوچت کړې وو کوم چه په منزله د مصحف دې ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم حامل قرآن دې. [3]

**دعلامه عینی رحمه الله رائې**: علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ترجمه او په مذکوره اثرکښې مناسبت دادې چه په دواړو کښې د حائضه دپاره د دوو جائزوخبرو ذکرشوې دې. مطلب داچه څنګه د حائضه په غیږکښې یوسړې د کلام پاك تلاوت کولې شی دغه شان حائضه د جزوان په ذریعه قرآن مجیدهم اوچتولې شی. د اول ذکر په ترجمه کښې دې او د دویمې خبرې ذکر په اثرکښې دې. ددې نه د زیات مناسبت توجیهات راویستل به د تکلیف نه خالی نه وی. [4]

**د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې**: حافظ ابن حجر رحمه الله د اثر او حدیث عائشه رضی الله عنها په مینځ کښې مناسبت بیانولوسره چه کوم کلام کړې دې دهغې نه معلومیږی چه د هغوی په نیز هم ترجمة الباب او اثرکښې هم هغه مناسبت دې کوم چه علامه ابن الملقن رحمه الله بیان کړې دې. البته د دواړو په طرز کلام کښې دومره فرق ضرور ښکاری چه علامه ابن ملقن رحمه الله خو ثیاب حائضه په منزله د جزوان او شارع علیه السلام په منزله د مصحف ګرځولې دې. [5] نورحافظ ابن حجر رحمه الله مؤمن په منزله د جزوان او زړه دمؤمن په منزله د مصحف ګرځولې دې. [6]

---

[1] مصنف ابن أبي شيبة كتاب الصلاة باب الرجل على غير وضوء والحائض يمسان المصحف؟: ۱۳۸/۵-۱۳۷رقم الحديث: ۷۵۰۰رقم الباب: ۶۵۰ إدارة القرآن والعلوم الإسلامية.

[2] التوضيح لشرح الجامع الصحيح لابن الملقن رحمه الله: ۲٤/۵.

[3] التوضيح لشرح الجامع الصحيح لابن الملقن رحمه الله: ۲٤/۵.

[4] عمدة القارى: ۲۶۰/۳إدارة الطباعة المنيرية.

[5] التوضيح: ۲٤/۵.

[6] فتح البارى: ۵۲۹/۱.

**دعلامه رشیداحمد گنگوهی رحمه الله رائې:** علامه رشیداحمد گنگوهی رحمه الله فرمائي چه مذکوره اثر د ترجمة الباب دپاره مؤید کیدل ښکاره دی اوهغه داسې چه په مذکوره اثرکښې نقوش سره د تلبس او تعلق ذکردې او ترجمة الباب کښې الفاظوسره د تلبس او تعلق ذکردې او هم دواړه «نقوش اوالفاظ» محترم اود تعظیم لائق دی.[۱] شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائي چه ترجمة الباب لاندې چه دترجمه کوم غرض مونږ بیان کړې دې «یعنی د حائضه دپاره دجزوان په ذریعه د حمل مصحف جواز» نودا مذکوره اثر هم د دغه غرض د تعیین دپاره دې.[۲]

**تنبیه:** شاته دا خبره تیره شوې ده چه د حائضه دپاره د جزوان په ذریعه د قرآن مجید د اوچتولو مسئله مختلف فیه ده. چنانچه په ائمه اربعه کښې امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمد رحمه الله د جواز او امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله د عدم جواز قائل دی. د علامه عیني رحمه الله نه دلته د مذاهب په نقل کولو کښې یوه غلطي شوې ده اوهغه دا چه هغوی قول د جوازد ائمه اربعه مذهب گرځولې دې. شیخ زکریا رحمه الله فرمائي دا په ظاهره د کاتب یا طباعت غلطي معلومیږی چه لفظ د **مالك** نه وړاندې **ومنعه** پاتې شوې دې. په دې باندې دې دا اشکال نه وی چه بیا خو امام احمد رحمه الله دمالیکه او شوافع د ډلې نه شو خکه چه دا په ضعیف روایت باندې محمول دی او صحیح هم دغه دی چه امام احمد رحمه الله د جواز قائل وو. چنانچه امام موفق رحمه الله دامام احمد مذهب اود امام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب موافق گرځولو نه پس فرمائي چه: «**وخرج القاضي رواية أخرى أنه لايجوز، والصحيح جوازه**» «چه قاضي رحمه الله د امام احمد رحمه الله نه د عدم جواز د روایت هم تخریج کړې دې او صحیح قول هم د جواز دې».[۳]

**(فتمسكه بعلاقة):** العلاقة په کسرسره هغه رسئی اوتار ته وائی په کوم سره چه جزوان تړلې کیږی.[۴] علامه عیني رحمه الله فرمائي چه علاقه هغه ده کوم سره چه مصحف زوړند کړې شی. هم دغه شان «**علاقة السيف وعلاقة القوس والسوط**» وغیره وی.[۵]

**قوله: أبووائل:** دا مشهور تابعي ابووائل شقیق بن سلمه رحمه الله دې. د دوی تفصیلي حالات «**كتاب الإيمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لايشعر**» لاندې تیرشوی دی.[۶]

**قوله: أبورزين:** دا مشهور تابعي ابورزین مسعود بن مالك اسدی کوفي مولی ابی وائل رحمه الله دې. دوی د معاذ بن جبل، ابن مسعود، عمرو بن ام مکتوم، علی بن ابی طالب، ابوموسی اشعری، ابوهریره، ابن عباس، مصدع ابی یحیی او فضل بن بندار رضی الله عنهم وغیره د حدیث روایت کړې.
اوددوی نه روایت کونکوکښې دهغوی خوئی عبدالله، اسماعیل بن ابی خالد، عاصم بن ابی النجو، عطابن السائب، اعمش، منصور، موسی بن ابی عائشه، اسماعیل بن سمیع، مغیره بن مقسم، زبیر بن عدی اوعلقمه بن مرثد رحمهم الله وغیره شامل دی.[۱]

---

[۱] لامع الدراري: ۲/ ۲٤٤ الكنز المتواري: ۲۵۲/۳.
[۲] لامع الدراري: ۲/ ۲٤٤ الكنز المتواري: ۲۵۲/۳.
[۳] لامع الدراري: ۲/ ۲٤٤ الكنز المتواري: ۲۵۲/۳.
[٤] مجمع الأنوار: ۶۵۷/۳ الكوثر الجاري: ٤٤٩/۱.
[۵] عمدة القاري: ۲۶۰/۳.
[۶] كشف الباري: ۵۵۹/۲.

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی «اسمه مسعود، کوفی ثقة»(۲) ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.(۳)امام عجلی رحمه الله فرمائی «مسعود أبورزين الأسدي: كوفى ثقة»(۴) دلته دې داخبره واضحه وی چه أبوزرين اسدی دوه دی. یو ابوزرين الأسدی المسمی به عبید دې. (۵)اودویم ابو زرين الاسدی مسعودبن مالك دې. هم دغه شان مسعود بن مالك هم دوه دی. یوخو هم دغه ابو زرين مسعود بن مالك اسدی کوفي دې او دویم مسعود بن مالك بن معبد اسدي کوفی دې.(۶)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د اشتباه سبب امام اعمش رحمه الله دې ځکه چه امام اعمش رحمه الله دواړه «مسعود بن مالك بن معبد او مسعود بن مالك ابوزرين» نه حدیث روایت کړې دې. خوهغوی دواړه خپل نومونه دخپل والد په نوم د قبیلې طرف ته نسبت او د ښارطرف ته نسبت کښې متفق دی. نور فرمائی ددې ټولو خبرو حاصل دادې چه دابوزرين په نوم کښې اختلاف دې او اصح دادې چه ابو زرين هم دغه مسعود بن مالك دې. ددې دواړو په ولاء کښې هم اختلاف دې. (چنانچه مسعودبن مالك بن معبد اسدی کوفی مولی سعید بن جبیر دې او مسعودبن مالك ابوزرين مولی ابی وائل دې) او مسعود بن مالك بن معبد چه کوم د سعیدبن جبیر رحمه الله نه روایت کوی، ابوزرين د مسعودبن مالك نه ډیر وړوکې دې مګر دا چه په نوم کښې دواړه مشترك دی او زما خیال دادې چه چه ابوزرين المسمی به عبید هم هغه دې ځوك چه په کال ۶۰هجری کښې یاددې نه وړاندې داېن زیاد په دورکښې قتل کړې شوې وو اود دویم ابوزرين المسمی به مسعودبن مالك انتقال تقریباً ۹۰هجری کښې شوې. چنانچه ابن قانع د مسعوبن مالك ابوزرين د وفات تاریخ کال ۸۵هجری بیان کړې دې.(۷) بل دا چه مسعودبن مالك ابوزرين رحمه الله د صحاح سته راوی دې.(۸)

## الحدیث

[۲۹۳]-حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ الفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، سَمِعَ زُهَيْرًا، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ صَفِيَّةَ، أَنَّ أُمَّهُ، حَدَّثَتْهُ أَنَّ عَائِشَةَ حَدَّثَتْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَانَ يَتَّكِئُ فِي حَجْرِي وَأَنَا حَائِضٌ، ثُمَّ يَقْرَأُ القُرْآنَ»(۱)[۷۱۱۰]

---

۱) تهذیب التهذیب: ۱۱۸/۱۰د تلامذه او مشائخ د تفصیل د پاره اوګورئ: تهذیب الکمال: ۴۷۷/۲۷.
۲) تهذیب الکمال: ۴۷۸/۲۷.
۳) ۴۴۰/۵.
۴) تهذیب التهذیب: ۱۱۹/۱۰.
۵) تهذیب الکمال: ۴۷۹/۲۷ تهذیب التهذیب: ۱۱۸/۱.
۶) تهذیب الکمال: ۴۷۷/۲۷-۴۷۵ تهذیب الکمال: ۱۱۸/۱۰-۱۱۷ کتاب المتفق والمفترق: ۵۷۶/۳-۵۷۷ رقم الصفحه المسلسل: ۱۹۸۷-۱۹۸۶ رقم الترجمة: ۱۴۱۰.
۷) تهذیب التهذیب: ۱۱۹/۱۰ تقریب التهذیب: ۱۷۲/۲ رقم الترجمة: ۶۶۳۳، تحفة التحصیل فی ذکر رواة المراسیل ص: ۳۰۱.
۸) تقریب التهذیب: ۱۷۶/۲ عمدة القاری: ۲۶۰/۳.
۱) قوله: "عائشة الحدیث رواه البخاری رحمه الله فی کتاب التوحید أیضاً فی باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: "الماهر بالقرآن مع الکرام البررة" رقم الحدیث: ۷۵۴۹ ومسلم فی کتاب الحیض باب جواز غسل الحائض رأس زوجها وترجیله، رقم الحدیث: ۶۹۳ وأبوداؤد فی کتاب الطهارة باب مؤاکلة الحائض ومجامعتها رقم الحدیث: ۲۶۰ والنسائی فی کتاب الحیض باب الرجل یقرأالقرآن ورأسه فی حجر امرأته وهی حائض رقم الحدیث: ۲۷۵ جامع الأصول فی أحادیث الرسول رقم الحدیث: ۵۳۹۵، ۳۵۰/۷ دارالفکر.

**ترجمه**: حضرت عائشه رضي الله عنها بیان اوفرمائیلو چه نبی کریم ﷺ به زما په غیږ کښې سرمبارک کیخودو سره قرآن مجید لوستلو حالاتکه زه به هغه وخت حائضه ووم.

## تراجم رجال

**أبونعیم الفضل بن دکین**: دا مشهومحدث ابونعیم الفضل بن دکین الملائی لکوفی الاحول رحمه الله دي. ددوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب فضل من استبرألدینه لاندې تیرشوی دی. (۱)

**زهیربن معاویة**: دا زُهیر- بالتصغیر- بن معاویه بن خدیج - بضم الحاء المهملة وفتح الدال المهملة وبالجیم - بن الرحیل - بضم الراء المهملة وفتح الحاء المهملة - بن زهیربن خیثمه جعفی کوفی رحمه الله دي. ددوی کنیت ابوخیثمه دي. ددوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب الصلاة من الایمان لاندې تیرشوی دی. (۲)

**منصور ابن صفیة**: دا منصوربن عبدالرحمن بن طلحه بن حارث بن طلحه بن ابی طلحه بن عبدالعزیز بن عثمان بن عبدالدرار بن قصی القرشی العبدری الحجبی المکی رحمه الله دي.(۳) دي دخپلې مور صفیه بنت شیبه د شهرت د وجې نه هم دهغې طرف ته منسوب دي.(۴)

هغه د خپلې مور صفیه بنت شیبه، خپل ماما مسافع بن شیبه الحجبی، سعیدبن جبیر، محمدبن عباد بن جعفر اوابوسعید مولی ابن عباس رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کړې دې. اوددوی نه ددوی رور محمد، زائده، ابن جریج، وهیب، زهیربن معاویه، زهیر بن محمد، معروف بن مشکان، داؤد بن عبدالرحمن العطار، فضیل بن سلمیان، سفیان ثوری اوابن عیینه رحمهم الله وغیره د حدیث روایت کوی.(۵)

ابوحاتم رحمه الله فرمائی «صالح الحدیث»(۶) اثرم رحمه الله فرمائی چه امام احمدبن حنبل رحمه الله اوابن عیینه رحمه الله د منصورابن صفیه تعریف کړې دې(۷) ابن سعد رحمه الله فرمائی «کان ثقة قلیل الحدیث»(۸) امام نسائی رحمه الله فرمائی ثقة(۹) ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.(۱۰) ابن عیینه رحمه الله فرمائی «کان یبکی وقت کل صلاة» (۱۱) علامه ذهبی رحمه الله فرمائی «مکی صدوق» (۱۲) لیکن ابن حزم رحمه الله

---

۱) کشف الباری: ۶۶۹/۲.

۲) کشف الباری: ۳۶۷/۲.

۳) تهذیب التهذیب: ۳۱۰/۱۰.

۴) فتح الباری: ۵۲۹/۱.

۵) تهذیب التهذیب: ۳۱۰/۱۰مشائخ اوتلامذه دتفصیل دپاره اوګورئی تهذیب الکمال: ۵۳۹/۲۸-۵۳۸کتاب المتفق والمفترق: ۵۱۲/۳رقم الصفحه المسلسل: ۱۹۲۲رقم الترجمة: ۱۳۴۱.

۶) الجرح والتعدیل: ۲۱۰/۸.

۷) حواله بالا.

۸) تهذیب التهذیب: ۳۱۰/۱۰.

۹) میزالاعتدال: ۱۸۶/۴رقم الترجمة: ۸۷۸۷تهذیب التهذیب: ۳۱۰/۱۰.

۱۰) ۴۷۶/۷.

۱۱) تهذیب التهذیب: ۳۱۰/۱۰.

۱۲) میزان الاعتدال: ۱۸۶/۴.

فرمائی «ليس بالقوي»([1]) په دې باندې رد كولوسره حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه «أخطاابن حزم في تضعيفه»([2])
ابن حبان رحمه الله فرمائی چه د دوی انتقال ۱۲۹هجری کښې شوې ([3])ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله د وفات كال ۱۳۷ يا ۱۳۸هجری نقل کړې دې.([4])
**صفيه بنت شيبة**:دا صفيه بنت شيبه بن عثمان بن ابی طلحه بن عبدالعزيز بن عبدالدار بن قصی بن كلاب، الفقيهه العالمه القرشيه العبدريه المكيه الحجبيه ام منصور بن عبدالرحمن رضي الله عنها ده.([5])ددې په صحابيه كيدوكښې اختلاف دې.دارقطنی رحمه الله خو د صحابيه كيدو قول كمزورې گرځولې دې. ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله ددې په سختئی سره ترديد كولو سره فرمائی«وأبعد من قال لا رؤية لها، فقد ثبت حديثها في صحيح البخاري تعليقاً، قال: قال أبان بن صالح عن الحسن بن مسلم عن صفية بنت شيبة قالت: سمعت النبي صلى الله عليه وسلم. وأخرج ابن منده من طريق محمد بن جعفر بن الزبير عن عبيدالله بن عبدالله بن أبي ثور عن صفية بنت شيبة قالت: والله لكأني أنظر إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم حين دخل الكعبة...... الحديث» يعنى كومو حضراتو چه دا اووئيل چه صفيه بنت شيبه ته رؤيت حاصل نه دې، نودهغوی داخبره د حقيقت نه ډيره لرې ده، ځکه چه په صحيح بخاری کښې د صفيه بنت شيبه حديث تعليقاً ثابت دې، په كوم كښې چه د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم نه د سماع تصريح ده. (ابن ماجه رحمه الله هم دا روايت په دې طريق سره موصولاًهم ذكركړې دې) اودغه شان ابن منده رحمه الله هم محمدبن جعفر په طريق سره د صفيه بنت شيبه نه يو روايت نقل كړې دې په كوم كښې چه د رؤيت صراحت دې.([6])
بل امام ابوداؤد رحمه الله هم د ابن اسحاق رحمه الله په طريق سره د صفيه بنت شيبه يوروايت نقل كړې دې د كوم په آخر كښې چه دی:«وأنا أنظر إليه» يعنى ما حضورپاك ته كتل. حافظ مزی رحمه الله ددې روايت نقل كولونه پس ليكلی دی چه: «هذا الحديث يضعف قول من أنكر أن تكون لها رؤية، فإنه إسناد حسن» يعنى دا حديث دهغه حضراتو قول كمزورې كوی چه د صفيه بنت شيبه په حق کښې د رؤيت منكر دی، ځکه چه ددې حديث سند حسن دې.([7]) البته ابن حبان رحمه الله دوی ثقات التابعين کښې ذكركړې دې.([8])
صفيه بنت شيبه رضي الله عنها د نبی كريم صلى الله عليه وسلم نه د امهات المؤمنين نه حضرت عائشه ام حبيبه او ام سلمه رضی الله عنهن او عبدالله بن عمر، سماء بنت ابی بكر، بره المعروفه ب حبيبة بنت ابی تجراه، ام عثمان بنت ابی سفيان اود شيبه بن عثمان ام ولد وغيره رضی الله عنهن نه د حديث روايت كړې دې.
اوددې نه روايت كونكوكښې دهغې ځوئی منصوربن عبدالرحمن، د هغې وراره عبدالحميد بن جبير

---

[1]) تهذيب التهذيب: ۳۱۱/۱۰ميزان الاعتدال: ۱۸۶/٤.
[2]) تقريب التهذيب: ۲۱۵/۲.
[3]) كتاب الثقات لابن حبان: ٤٧٦/٧.
[4]) تهذيب التهذيب: ۳۱۰/۱۰تقريب التهذيب: ۲۱۵/۲.
[5]) سيرأعلام النبلاء: ۳/۵۰۸-۵۰۷رقم الترجمة: ۱۱۸.
[6]) الإصابة فی تمييز الصحابة: ٤/٣٤٨دارالفكر.
[7]) تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف: ۳٤٣/١١المكتب الإسلامی، الدار القيمة.
[8]) كتاب الثقات لابن حبان: ۱۹۷/۳قلت: لعل الناقلين والكاتبين أخطئوا فی النقل والكناية، لأنه ابن حبان رحمه الله لم يذكرها فی ثقات التابعين، بل إنما ذكرها فيمن روى عن النبی صلى الله عليه وسلم من النساء..... الخ وما ذكره ابن حبان رحمه الله صريح فی أن لها رؤية وصحبة وسماعا من النبی صلى الله عليه وسلم، والله أعلم بالصواب.

بن شيبه دويم وراره مسافع بن عبدالله بن شيبه د وراره خوئي مصعب بن شيبه بن جبير بن شيبه اودهغه نمسي محمدبن عمران الحجبى، ابراهيم بن مهاجر، حسن بن مسلم، قتاده، مغيره بن حكيم، عبيدالله بن عبدالله بن ابى ثور، يعقوب بن عطاء بن ابى رباح رحمهم الله وغيره شامل دى.(۱) يعني بن معين رحمه الله فرمائى چه ابن جريج رحمه الله هم دهغوى زمانه ليدلې ده ليكن سماع ورته حاصله نه ده.(۲) بلكه دا چه صفيه بنت شيبه رضي الله عنها د صحاح سته راويه ده.(۳)

**عائشة**: دا ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه بنت ابى بكر الصديق رضي الله عنهما ده.(۴)

## شرح حديث

**قوله: كان يتكئ في حجري وأنا حائض ثم يقرأ القرآن**: امام بخاري رحمه الله دا روايت كتاب التوحيد كښې په دې الفاظوسره راوړلې دې: «كان يقرأ القرآن ورأسه في حجري وأنا حائض»، د كوم نه چه مفهوم كيږي چه د اتكاء نه مراد د حضورپاك خپل سرمبارك دهغې په غيږ كښې كيخودل دى.(۵)

محقق ابن دقيق العيد رحمه الله فرمائى چه د حضورپاك په دې حالت كښې د قرآن مجيد د تلاوت فرمائيلو ذكر ددې امر طرف ته اشاره كوى چه حائضه تلاوت نه شي كولې. ځكه چه كه چرې پخپله هغې ته اجازت وې نودهغې په غيږ كښې د امتناع قراءت هډو سوال نه پيداكيدلو؟ د كوم د دفعيه دپاره چه د قراءت غير د ثبوت پيش كولو ضرورت پيښ شو.(۶)

علامه نووى رحمه الله فرمائى چه په دې حديث سره د محل نجاست سره نيزدې د قراءت د جواز حكم هم معلوم شو.(۷) ليكن په دې باندې علامه عينى رحمه الله نقد كولوسره فرمائي چه په دې كښې نظر دې ځكه چه حائضه خو پخپله پاكه ده اونجاست د وينې دې چه دحيض په زمانه كښې هروخت نه بنكاره كيږي د كوم د وجې نه چه د قراءت د جواز حكم اوشو. مګر په دې باندې قياس كولوسره مونږ د قرآن قراءت بيت الخلاء سره نيزدې هم غيرمكروه اومنو نودا به مناسب او موزون نه وى ځكه چه د قرآن دتعظيم د وجې نه دا هم مكروه كيدل پكاردى. ځكه چه نيزدې شئ هم دهغه شئ حكم اخلى.(۸)

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**: دترجمة الباب اوحديث د ظاهرى الفاظو په اعتبار سره خو په دواړو كښې مناسبت واضح دې چه په دواړوكښې د حائضه په غيږ كښې د قراءت د جواز بيان دې. البته ابن بطال رحمه الله او ابن ملقن رحمه الله وغيره د ترجمة الباب كوم غرض بيان كړې دې په هغه اعتبار سره په دواړو كښې مناسبت دادې چه په روايت كښې د حضرت عائشه رضي الله عنها كېږې په منزله دعلاقه دى اوشارع عليه السلام په منزله د مصحف دې نولكه چه عائشه رضي الله عنها د خپل لباس په ذريعه د حيض په حالت كښې حضورپاك چه حامل قرآن دې اوچت كړې دې اود ترجمة الباب نه غرض هم دغه دې چه د حيض

---

(۱) تهذيب التهذيب: ۴۳۰/۱۲ دنور تفصيل دپاره اوګورئى: تهذيب الكمال: ۲۱۱/۳۵.
(۲) تهذيب الكمال: ۲۱۲/۳۵ تهذيب التهذيب: ۴۳۰/۱۲.
(۳) تقريب التهذيب: ۶۴۷/۲.
(۴) كشف البارى: ۲۹۱/۱.
(۵) فتح البارى: ۵۳۰/۱ عمدة القارى: ۲۶۲/۳.
(۶) فتح البارى: ۵۳۰/۱ عمدة القارى: ۲۶۲/۳.
(۷) فتح البارى: ۵۳۰/۱ عمدة القارى: ۲۶۲/۳.
(۸) عمدة القارى: ۲۶۲/۳.

په حالت كښې حمل دمصحف بالعلاقه جائز دې.([1])

# ۴- باب: مَنْ سَمَّى النِّفَاسَ حَيْضًا

**ماقبل سره ربط:** ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه باب سابق كښې حائضه سره متعلق يوحكم بيان كړې شوې وو او په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د حيض اونفاس د احكامو په مينځ كښې مساوات كيدو طرف ته اشاره كړې ده.([2])

ددې باب لاندې دوه بحثونه دى: ① بحث حل ترجمه. ② بحث غرض ترجمه.

**دومبې بحث: حل ترجمه:** رومبې بحث د حل ترجمه سره متعلق دې اوهغه دادې چه امام بخارى رحمه الله باب قائم كړې دې «**باب من سمى النفاس حيضا**» (يعنى نفاس ته حيض وئيل) خو په حديث باب كښې ددې عكس دې ځكه چه په حديث كښې حيض ته نفاس وئيلې شوې دې. هم دغه وجه ده چه بعض شراح وييلى چه ددې نه مقصد دحيض اونفاس نه د هر يو په بل باندې د جواز اطلاق بيانول دى اوهغه داسې چه كله په حديث كښې حيض ته نفاس اووئيلې شو نو امام بخارى رحمه الله ددې نه دا نتيجه اخذ كړه چه هم دغه شان نفاس ته به حيض وئيل هم صحيح وى كوم چه هغوى په دغه مذكوره ترجمه قائم كولوسره واضح كړه.([3])

د بعض حضراتو وينا ده چه په ترجمه كښې تقديم اوتاخير دې. حيض مفعول اول او نفاس مفعول ثانى دې. اوس به مطلب داشى چاچه حيض ته د نفاس نوم وركړو. لهذا دغه شان به ترجمة الباب او حديث باب كښې مطابقت پيدا شى.([4])

اود بعض حضراتو وينا ده چه ترجمة الباب مقلوب دې ولې چه صحيح داسې وه «**باب من سمى الحيض نفاساً**»([5]) او يو قول داهم دې چه **سمى** نه مراد **أطلق** دې يعنى «**من أطلق لفظ النفاس على الحيض**» اوداسې به بغير د څه تكلف نه په ترجمه او حديث كښې مطابقت پيداشى ځكه چه په حديث كښې هم لفظ نفاس سره په حيض باندې اطلاق كړې شوې دې.([6])

**دامام مهلب رحمه الله رائې:** امام مهلب رحمه الله فرمائى چه كله امام بخارى رحمه الله دنفاس سره متعلق څه حديث دخپل شرط موافق پيدا نه كړو اودلته په حديث باب كښې په حيض باندې د نفاس اطلاق هم كړې شوې وو نوددې نه هغوى دا استنباط اوكړو چه حيض اونفاس په حكم كښې هم برابر دى اودې طرف ته اشاره كولودپاره ئې ترجمة الباب په دې انداز سره قائم كړو.([7])

ليكن په دې رائې باندې اعتراض كيږى چه په ترجمة الباب كښې خوتسميه ذكر دې نه چه د حكم؟ نوشيخ الحديث زكريا رحمه الله ددې اعتراض جواب وركولوسره فرمائى چه دا اعتراض صحيح نه دې

---

[1]) الكنزالمتوارى: ۲۵۳/۳لامع الدرارى: ۲۴۵/۲-۲۴۴.

[2]) هذا ملخص من الكنزالمتوارى: ۲۵۴/۳-۲۵۳.

[3]) فيض البارى: ۴۸۸/۱.

[4]) فتح البارى: ۵۳۰/۱فيض البارى: ۴۸۸/۱.

[5]) فتح البارى: ۵۳۰/۱الكنزالمتوارى: ۲۵۳/۳.

[6]) فتح البارى: ۵۳۰/۱إرشادالسارى: ۵۳۷/۲.

[7]) فتح البارى: ۵۳۰/۱شرح ابن بطال: ۴۲۱/۱.

خکه چه مصنف رحمه الله په تسمیه سره په حکم باندې استدلال کړې دې اودا جامع صحیح څه دلغت کتاب نه دې چه د مصنف رحمه الله مراد هم تسمیه وی. (١)

**د امام خطابی رحمه الله رائې:** امام خطابی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله ته په مذکوره ترجمه قائم کولوکښې وهم شوې دې ځکه چه په حدیث باب کښې حیض ته نفاس نه دې وئیلې شوې بلکه په حقیقت کښې لفظ **نفست** په مشترکه توګه باندې وزن بدلولوسره (د نون فتحه اوضمه سره) په دواړو معانوکښې (**بفتح النون بمعنی حیض اوبضم النون بمعنی نفاس**) استعمالیږی لهذا چه کله ددې لفظ استعمال د حیض په معنی کښې هم دې نو بیا دا څنګه وئیلې شی چه نفاس ته حیض وئیلې شوې؟ (٢)

ددې اشکال جواب ورکولوسره علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله ته هیڅ وهم نه دې شوې ځکه چه کله مذکوره فرق ثابت دې چه لفظ **نفست** فتحه سره په معنی دحیض او په ضمه سره په معنی د نفاس استعمالیږی او مذکوره روایت په ضمه دنون هم ثابت دې نوبیا داسې ویناکول به هم صحیح وی چه په حدیث کښې نفاس ته حیض وئیلې شوې دې. بله داخبره ده چه دا احتمال هم شته چه دامام بخاری رحمه الله په نیز مذکوره فرق هډو ثابت نه وی بلکه دهغوی په نیز دا لفظ دواړه شان په معنی د نفاس د ولادت وی نو په داسې صورت کښې داسې وینا کول به هم صحیح شی چه نفاس ته حیض وئیلې شوې دې. لکه چه د بعض حضراتو نه عدم فرق هم نقل دې چه دا لفظ **نفست** دواړه شان سره په دواړو معانوکښې استعمالیږی. (٣)

**دابن بطال رحمه الله او محدث ابن منیر رحمه الله رائې:** علامه ابن بطال رحمه الله (٤) اومحدث ابن منیر رحمه الله (٥) رائې هم هغه ده کومه چه دا مام مهلب رحمه الله ده اود دې دواړو حضراتو د رائې حاصل دادې چه کله دواړه (حیض اونفاس) کښې اشتراك اسمی موجود دې اوهغه داسې چه نفس یعنی دم والامعنی په دواړو کښې موجود ده اودا خبره هم ده چه په حدیث باب کښې حیض-ته نفاس وئیلې شوې دې نوضروری شوه چه هم د دغه اشتراك اسمی د وجې نه نفاس ته هم حیض اووئیلې شی او دواړه حکم (ترك صلاة) کښې هم یوشان دی. په دې وجه ترکومې چه د نفساء وینه بنده شوې نه وی دحائضه په شان د نفساء دپاره هم د ترك صلاة حکم دې. (٦)

دعلامه کرمانی رحمه الله په رائې باندې نقد کولوسره علامه عینی رحمه الله فرمائی چه داسې وینا کول چه کیدې شی د امام بخاری رحمه الله په نیز لفظ نفست کښې بیان کړې شوې فرق ثابت نه وی صحیح نه دې ځکه چه داسې خبره خو دیوامام لغت باره کښې وئیلې کیدې شی اوښکاره خبره ده چه امام بخاری رحمه الله امام لغت نه دې بلکه امام حدیث دې. دغه شان دعلامه ابن بطال رحمه الله او امام مهلب علیه الرحمه په رائې باندې نقد کولو سره فرمائی چه ددې حضراتو د رائې حاصل دادې چه دحیض اونفاس په مفهوم کښې مساوات دې خو په حقیقت کښې داسې نه ده. ځکه چه جائز دی چه په دواړو کښې عموم

---

(١) الکنزالمتواری: ٢٥٥/٣.

(٢) عمدة القاری: ٢٦٢/٣فتح الباری: ٥٣١/١-٥٣٠الکنزالمتواری: ٢٥٤/٣.

(٣) شرح الکرمانی: ١٦٤/٣عمدة القاری: ٢٦٢/٣الکنزالمتواری: ٤٥٤/٣.

(٤) شرح ابن بطال: ٤٢١/١.

(٥) عمدة القاری: ٢٦٢/٣.

(٦) شرح ابن بطال: ٤٢١/١.

خصوص من وجه نسبت وی.(۱)

**دعلامه عینی رحمه الله رائې:** دعلامه عینی رحمه الله رائې داده چه او خودږي ترجمه څه خاص فائده نشته او د تسلیم کولو په صورت کښې فائده دده ترجمه دتوجیه داکیدې شي چه کله دامام بخاري رحمه الله په نیزد حیض اونفاس دواړو په مفهوم کښې څه فرق نه وو نودهغوی دپاره د یو د ذکر او د دویم د مراد اخستلو جواز پیداشو. اولکه څنګه چه په حدیث کښې ذکر د نفاس اوشو اومراد حیض دې هم دغه شان امام بخاري رحمه الله هم ذکرد نفاس اوکړو او اراده ئې د حیض اوکړه، لهذا دهغوی قول «**باب من سمی النفاس حیضاً**» مطلب «**باب من ذکر النفاس حیضاً**» کیدل پکاروو یعنی ذکرئې د نفاس اوکړو اومرادئې ترې حیض واخستو. هم دغه شان په حدیث کښې ذکر نفاسَ دې اومراد حیض دی ځکه چه کله حضور پاک دام سلمه رضي الله عنها ته أنفست اوفرمائیلو اوهغې په جواب کښې نعم اوونیل حالانکه هغه حائضه وه نو لکه چه هغې هم نفاس هم حیض ګرځولې دې. دغه شان دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت کیږی.(۲)

**د علامه ابن رشید رحمه الله رائې:** علامه ابن رشید رحمه الله فرمائی چه دامام بخاري رحمه الله مقصددا خودل دی چه (**دم خارج من الرحم**) نوم أصالةً نفاس دې اوهم دې لفظ نفاس سره ددې تعبیرکول داعم او اشمل معنی سره تعبیردې اولفظ حیض سره ددې تعبیرکول اخص معنی سره تعبیرکول دی. لهذا د حضورپاک (**دم خارج من الرحم**) نفاس سره تعبیر کول داعم اواشمل معنی په لحاظ سره دې اود حضرت ام سلمه رضي الله عنها حیض سره تعبیر کول داخص معنی په لحاظ سره دې. په دې لحاظ سره ترجمة الباب ام سلمه رضي الله عنها د تعبیر موافق وی.(۳)

علامه کرمانی رحمه الله حل ترجمه سره متعلق یوه توجیه داهم ذکر کړې دې چه دلته حرف جر مقدر دې او تقدیری عبارت داسې دې: «**باب من سمی حیضاً بالنفاس**» داسې به په ترجمه اوحدیث کښې مطابقت پیدا شی.(۴)

**دعلامه ابوالحسن سندهی رحمه الله رائې:** علامه ابوالحسن سندهی رحمه الله حل ترجمه سره متعلق یوڅو توجیهات ذکر کولو نه پس لیکی چه زما په نیز دټولو نه خوښه او زړه ته نیزدې توجیه داده اوکه په دغه زړه کښې یوه لطیف غوندې نکته هم وی نویقیناً د صنعت قلب د بلاغت یوقسم به وی لکه چه دلته هم ذکر دی اوهغه داچه دامام بخاري رحمه الله ددې ترجمة الباب نه دې طرف ته اشاره ده چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم اطلاق اوتسمیهٔ نفاس اصل اوګرځولې شی او تسمیه د حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرع اوګرځولې شی.(۵)

## دویم بحث غرض ترجمه

**دعلامه ابن بطال، محدث ابن منیر، امام مهلب، شاه ولی الله اوشیخ الحدیث زکریا رحمهم الله رائې:** علامه ابن بطال رحمه الله محدث ابن منیر رحمه الله اوامام مهلب رحمه الله حل ترجمه سره متعلق چه څه

---

۱) عمدة القاری: ۲۶۳/۳.

۲) حواله بالا.

۳) فتح الباری: ۵۳۰/۱.

۴) شرح الکرمانی: ۱۶۵/۳.

۵) حاشیة السندی: ۱۰۵/۱-۱۰۴.

فرمائيلى دى دهغې نه ددې حضراتو رائې غرض ترجمه سره متعلق هم واضح كيږى اوهغه ذاسې چه ددې حضراتو په نيز دامام بخارى رحمه الله مقصد په حيض او نفاس كښې اشتراك اسمى كيدو د وجې نه په دې كښې تسويه فى الاحكام ثابت كول دى. دكوم تفصيل چه دحل ترجمه لاندې تيرشوې دې. هم دغه رائې د شيخ المشائخ شاه ولى الله رحمه الله هم ده. چنانچه هغوى فرمائى "دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه دحيض اطلاق په نفاس باندې په اهل عربوكښې مشهوردې، لهذا كوم احكام چه دحيض وى هم هغه به دنفاس هم وى. هم په دې وجه شارع عليه السلام د نفاس د احكامو جدا تفصيل نه دې كړې. هم دغه غرض دامام بخارى رحمه الله دحديث الباب د قصې نه دې چه په دې كښې يولفظ ددويم دپاره استعمال شوې دې فتدبروتشكر". [1]

هم دارائې اختيارول اودنورتفصيل كولوسره شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى زمايه نيزهم دامام بخارى رحمه الله دغه مقصد دې چه كله هغوى دنفاس سره متعلق يوحديث دخپل شرط برابر اونه موندلو نودې ترجمه قائمولوسره ئى دا ثابته كړه چه حيض اونفاس په احكام كښې هم متحد دى ځكه چه په دې كښې لفظى اتحاد هم دې اومعنوى هم. اتحاد لفظى خوداسې دې چه لفظ د نفاس دواړو معانو كښې استعماليږى او اتحادمعنوى داسې دې چه دواړه **دم خارج من الرحم** كيدو كښې مشترك دى. [2]

دې نه پس فرمائى چه په رائې باندې دا اشكال نه وى چه حيض اونفاس كښې تسويه فى الاحكام څنګه منلې كيدې شى ځكه چه په بعض احكاموكښې اختلاف ثابت دې؟ اود تسويه احكام دا معنى نه ده چه په ټولو احكامو كښې برابردى بلكه معنى داده چه كوم احكام دحيض دپاره ثابت وى هغه دې د نفاس دپاره هم ثابت وى. ((**الاماخصه الدليل**)) مګر دا چه هغه احكام يودليل خاص كړې وى نو په هغې كښې به حكم يوشان نه وى. اوددې مثال داسې دې لكه چه ديعلى بن اميه رضى الله عنه په روايت كښې دى چه حضور پاك فرمائيلى ((**اصنع فى عمرتك ماتصنع فى حجتك**)) يعنى په خپله عمره كښې هغه كارونه سرته اورسوئى كوم چه تاسو په خپل حج كښې كوئى. سره ددې چه دحج او عمرې په بعض افعالو كښې اختلاف هم دې. [3]د علامه عينى رحمه الله رائې حل ترجمه كښې تيره شوې ده.

**هغه مسائل كوم كښې چه دحيض اونفاس احكام مختلف دى:** علامه ابن عابدين رحمه الله فرمائى د نفاس حكم هم دحيض په شان دې سواد اووه څيزونونه اوهغه امور سبعه دادى: بلوغ، استبراء، عدت، داقل نفاس حدمقررنه دې، اكثرموده څلويښت ورځې ده، چه صوم كفاره كښې دم نفاس شروع شى،نودې سره تتابع منقطع كيږى. ددې په وجه سره طلاق سنت اوبدعت كښې فصل نه حاصليږى.[4]

**حيض اونفاس كښې تسويه فى الاحكام سره متعلق دعلامه رشيداحمدګنګوهى رحمه الله رائې:** علامه ګنګوهى رحمه الله فرمائى چونكه حيض اونفاس دواړه هم د رحم نه خارج كيږى او بيا په حيض باندې د نفاس اطلاق هم په حديث سره ثابت دې نوددې عكس هم صحيح شو يعنى په نفاس باندې د حيض اطلاق، ځكه چه د دواړو احكام فى الجمله مشترك دى اومقصد دادې چه د دواړو وصف خروج من

---

[1]) شرح تراجم أبواب البخاري: ۱۹/۱.

[2]) الكنزالمتواري: ۳/۲۵۵-۲۵٤.

[3]) الكنزالمتواري: ۳/۲۵۵.

[4]) حاشية ابن عابدين كتاب الطهارة باب الحيض: ۱/٤۹۶ دارعالم الكتب.

الرحم كښې اشتراك يا د يولفظ په بل باندې جواز د اطلاق ددې خبرې تقاضا نه کوی چه دا دواړه په جمع احکام کښې هم برابردی. بلکه د هريومخصوص احکام دی البته بعض احکام کښې اشتراك دې د کوم د وجې نه چه د يو په بل باندې اطلاق په توګه د اخلاق مجازی صحيح دې.[1]

نورفرمائی چه دويم صورت داهم کيدې شی چه حيضاً مفعول اول اوګرځولې شی او النفاس مفعول ثانی اوګرځولې شی دې دپاره چه ترجمة الباب سره د باب مطابقت ښکاره شی او غرض دادې چه په دواړو کښې اشتراك اسمی دې د شرعی احکامو په لحاظ سره نه. حاصل د کلام دا چه دا په کومو رواياتوکښې په حيض باندې دنفاس اطلاق شوې دې نوهغه صرف لفظی او اسمی اشتراك دې.[2]

شيخ الحديث زکريا رحمه الله فرمائی چه کيدې شی د حضرت ګنګوهی رحمه الله اشاره دې طرف ته وی چه کله په دې کښې اشتراك د احکام نشته نوبيا د اتحاد اسمی هم څه خاص فائده نشته، خاص کرچه د جامع صحيح لوئی مقصد احاديث د احکام بيانول دی. هم په دې وجه علامه عينی رحمه الله اوفرمائيل «لافائدة فی الترجمة»او حافظ ابن حجر رحمه الله هم د امام مهلب وغيره په رائې باندې اعتراض کولوسره دې طرف ته اشاره کړې ده.[3]

**دعلامه انورشاه کشميری رحمه الله رائې**:علامه انورشاه کشميری فرمائی دامام بخاری مقصد صرف د لغت بيان نه دې بلکه هغه ددې په ضمن کښې داهم خودل غواړی چه دم نفاس په حقيقت کښې هم دم حيض دې چه پس د بچی پيدا کيدون د رحم خله کولاويدو د وجې نه خارج کيږی چه په وجه د حمل د رحم خله بنديدود وجې نه بنده شوې وه. کله چه بچې پيدا شو اود رحم خله کولاوشوه نوهم هغه بنده شوې وينه دحيض خارج شوه. په دې وجه دبعض حضراتو رائې داده چه حيض چونکه څلور مياشتې پس د ماشوم خوراك جوړيږی په دې وجه د هرې مياشتې دزياتې نه زياته موده دحيض د لسو ورځو په حساب سره اکثرموده د نفاس هم صرف څلويښت ورځې کيدې شی. نوددې تحقيق نه معلومه شوه چه حامله باندې حيض نه راځی اود شريعت قواعد هم ددې تقاضا کوی. ځکه چه که دا خبره تسلم کړې شی چه حامله باندې حيض راځی نوبيا د شريعت نه استبراء د رحم باب به ختمولې کيږی ځکه چه شريعت همدغه دم حيض داستبراء رحم علامت ګرځولې دې. لهذا دامکان حيض په صورت کښې به دبراءت رحم هيڅ علامت پاتې نه شی اوداسې به داباب تول په توله ختمولې شی[4] بل داهم يو مختلف فيه مسئله ده چه په حامله باندې حيض راځی که نه؟ امام مالك اوامام شافعی فرمائی چه په حامله باندې حيض راځی اوامام ابوحنيفه او امام احمد فرمائی چه په حامله باندې حيض نه راځی[5].

علامه انورشاه کشميری رحمه الله دخپل تحقيق ذکرکولو نه او داختلافی مسئله طرف ته اشاره کولو نه.

پس ليکی چه ددې ترجمة الباب نه هم د امام بخاری رحمه الله غرض د احنافو حضراتو مذهب ته تقويت

---

[1]) الکنزالمتواری: ۲۵۵/۳-۲۵۳.

[2]) الکنزالمتواری: ۲۵۸/۳-۲۵۶.

[3]) الکنزالمتواری:۲۵۸/۳.

[4]) فيض الباری:۴۸۸/۱.

[5]) شرح الزرقانی علی المؤطاء کتاب الطهارة جامع الحيضة: ۱۷۳/۱دارالکتب العلمية، التمهيد لما فی المؤطامن المعانی والأسانيد: ۱۶/۸۷-۸۶مؤسسة القرطبة، عمدةالقاری کتاب الحيض باب مخلقة وغير مخلقة: ۴۳۲/۳ دارالکتب العلمية فتح الباری کتاب الحيض باب مخلقة وغيرمخلقة: ۴۱۹/۱دارالمعرفة

ورکول دی څوك چه ددې خبرې قائل دی چه حامله باندې حيض نه راځي.[1]
حاصل د کلام دا شو چه د ترجمة الباب د مقصد په حواله سره څلورقسمه اقوال دی. رومبی قول دعلامه ابن بطال رحمه الله امام مهلب رحمه الله محدث ابن منير رحمه الله شاه ولی الله رحمه الله اوشيخ زکريا رحمه الله وغيره دې چه د امام بخاری رحمه الله مقصد په حيض اونفاس کښې تسويه د احکام بيانول دی. «الاماخصه الدليل». دويم قول دعلامه عينی رحمه الله دې چه د امام بخاری مقصد داخودل دی چه د حيض اونفاس نه يوذکر کولونسره دويم مراد اخستلې کيدې شی. اودريم قول د علامه ګنګوهی رحمه الله دې چه مقصد داخودل دی چه په دواو کښې اشتراك اسمی کيدو د وجې نه دا نه لازميږی چه دواړه دې په جمع احکام کښې هم برابر وی. څلورم قول د انور شاه کشميری رحمه الله دې چه دامام بخاری رحمه الله مقصد د دغه حضراتو مذهب ته تقويت ورکول دی څوك چه د "الحامل لاتحيض" قائل دی. په دې اقوال اربعه کښې د بنده په نيزهم اول قول راجح دې.

## الحديث الأول

[۲۹۳]-حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ أُمِّ سَلَمَةَ، حَدَّثَتْهُ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهَا قَالَتْ: بَيْنَا أَنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مُضْطَجِعَةٌ فِي خَمِيصَةٍ، إِذْ حِضْتُ، فَانْسَلَلْتُ، فَأَخَذْتُ ثِيَابَ حِيضَتِي، قَالَ: «أَنُفِسْتِ» قُلْتُ: نَعَمْ، فَدَعَانِي، فَاضْطَجَعْتُ مَعَهُ فِي الْخَمِيلَةِ[2] [۳۱۶، ۳۱۷، ۱۸۲۸]

**ترجمه**: حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرمائی چه زه نبی کريم صلى الله عليه وسلم سره په يوڅادرکښې رانغښتې شوې ووم په دې کښې په ما حيض راغلو په دې وجه په مزه شان بهر راؤوتلم اود خپل حيض کپړې مې واچولې. حضورپاك صلى الله عليه وسلم تپوس اوکړو ولې په تاباندې (نفاس) حيض راغلو؟ ما عرض اوکړو اوجی نو حضورپاك زه راؤغوښتلم اوزه په څادرکښې حضورپاك سره سملاستم.

### تراجم رجال

**مكي بن إبراهيم**: دا امام مکی بن ابراهيم بن بشير بن فرقد تميمی حنظلی بلخی رحمه الله دې. د دوی کنيت ابوالسکن دې بعض حضراتو ددوی د نيکه نوم فرقد بن بشير خودلې دې. ددوی حالات كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد الخ لاندې تيرشوی دی.[3]

**هشام**: دا ابوبکر هشام بن ابی عبدالله دستوائی رحمه الله دې. د دوی حالات كتاب الإيمان باب زيادة الإيمان ونقصانه لاندې تيرشوی دی.[4]

---

[1] فيض الباري: ۴۸۹/۱.
[2] قوله: "أم سلمة الحديث، رواه البخاری رحمه الله فی باب النوم مع الحائض وهی فی ثيابها أيضاً رقم الحديث: ۳۲۲وفی باب من أخذ ثياب الحيض رقم الحديث ۳۲۳ وفی كتاب الصوم باب القبلة للصائم رقم الحديث: ۱۹۲۹ ورواه مسلم فی كتاب الحيض باب الاضطجاع مع الحائض فی لحاف واحد رقم الحديث: ۶۸۳ورواه النسائی رحمه الله فی الطهارة باب مضاجعة الحائض رقم الحديث: ۲۸۴.
[3] کشف الباري: ۴۸۱/۳.
[4] کشف الباري: ۴۵۶/۲.

**يحيى بن أبي كثير**: دا مشهور امام يحيى بن ابي كثير طائي يمامي رحمه الله دې. د دوى حالات كتاب العلم باب كتابة العلم د دويم حديث لاندې تيرشوى دى.[1]

**أبوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف**: دا د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه خوئى، د مدينې منورې د فقهاء سبعه نه يو لوئى فقيه اومشهور تابعي اومحدث دې. د دوى حالات كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتساباً من الإيمان د رومبى حديث لاندې تيرشوى دى.[2]

**زينب بنت أم سلمة**: دا د حضور اكرم صلى الله عليه وسلم ربيبه، حضرت ام سلمه رضي الله عنها لور، زينب بنت ابى سلمه عبدالله بن عبد الاسد بن هلال مخزوميه قرشيه رضي الله عنها ده. د دې حالات **كتاب العلم باب الحياء في العلم** لاندې تيرشوى دى.[3]

**أم سلمة**: دا ام المؤمنين ام سلمه هند بنت ابى اميه رضي الله عنها ده[4] د دوى حالات **كتاب العلم باب العلم والعظة بالليل** لاندې تيرشوى دى.

## شرح حديث قوله

**قوله: في خميصة**: **خميصة**: بفتح الخاء المعجمة والصاد المهملة ج: **خمائص**، داسې څلورګوټه څادر د كوم دواړو طرفو ته چه نقش ونګار وى اود بعض وينا داده چه **خميصة** د ريښمونه جوړشوې تورې يا د سور رنګ پيړې كپړې ته وائى په كوم چه ګلونه اوبوټى هم شوې وى.[5] صحاح كښې ليكلى دى چه **خميصة** تور څلورګوټه څادر ته وائى په كوم چه ګلونه او بوټى شوې وى كه چرې هغه منقش نه وى نو بيا **خميصة** ورته نه شى وئيلې.[6]

امام اصمعى رحمه الله فرمائى چه **خمائص** د ريښمويا وړئى نه جوړشوې تورمنقش څادرته وائى.[7] دلته د بخارى شريف په روايت كښې **خميصة** لفظ واردشوې دې خوددې حديث په نورو طرق كښې **خميلة** لفظ راغلې دې او**خميلة** جالروالا څادر ته وائى. امام نووى رحمه الله فرمائى چه هره هغه كپړه چه جاليداره وى چه هغه د كوم رنګ هم وى هغې ته **خميلة** وائى البته بعض تور كيدل لازمى ګرځولې دى.[8]

نودلته خود بخارى شريف په روايت كښې **خميصه** او په نور طرق كښې **خميلة** راغلې دې ليكن ممكن دى چه هغه څادر دواړه شان وى يعنى هغه څادر منقش هم وى او جاليدار هم وى.[9]

**قوله: فانسلت**: بلالمين لام اول مفتوح اولام ثانى ساكن دې اومعنى داده چه پټه شان اووتلم.[1]

---

[1]) كشف البارى: ٤/٢٦٧.

[2]) كشف البارى: ٢/٣٢٣.

[3]) كشف البارى: ٤/٦١٠.

[4]) كشف البارى: ٤/٣٩٣.

[5]) لسان العرب: ٤/٢٢٠ عمدة القارى: ٣/٢٦٣.

[6]) معجم الصحاح: ٣١٨ لسان العرب: ٤/٢١٩ معجم مقاييس اللغة: ٢/٢١٩ مادة: خمص.

[7]) لسان العرب: ٤/٢٢٠ عمدة القارى: ٣/٢٦٣.

[8]) لسان العرب: ٤/٢٢٢ النهاية لابن الأثير: ١/٥٣٤ شرح الكرمانى: ٣/١٦٤ عمدة القارى: ٣/٢٦٤.

[9]) فتح البارى: ١/٥٣١.

امام بخاری رحمه الله دا روایت شیبان عن یحیی په طریق سره هم روایت کړې دې اودې کښې فانسللت نه پس فخرجت منها الفاظو اضافه هم ده یعنی فخرجت من الخمیصة.(۲)
امام نووی رحمه الله فرمائی چه ممکن دی چه حضرت ام سلمه رضي الله عنها د کمبل یا څادر نه بهرددې اندیښنې د وجې نه وتلې وی چه هسې نه دغه وینه د حضورپاك په جسم اطهرباندې اونه لګی یا هغې خپل ځان ناپاکه محسوس کولوسره دا برداشت نه کړل چه هغه دې د دغه ناپاکئی په حالت کښې حضورپاك سره سملی یا بیا هغې ته اندیښنه اوشوه چه هسې نه حضورپاك ته د جماع تقاضا وی اوهغه په دغه حالت دحیض کښې ده اودې کښې جماع جائزنه ده نو په دې وجه هغه پټه شان اووتله اوخپلې دحیض کپړې ئې واغوستې دې دپاره چه حضورپاك ته هم دهغې دحائضه کیدو علم اوشی.(۳)

**قوله:: ثیاب حیضتي**: محدثین حضرات فرمائی چه حیضتي په کسره د حاء او فتح د حاء دواړه شان نقل دې. البته په دواړو صورتونوکښې د معنې په اعتبارسره فرق دې. د کسرې په صورت کښې به معنی داوی چه ما دحیض په حالت اوکیفیت کښې استعمالیدونکې کپړې واغوستې ځکه چه دحیضة معنی ده په حالت د حیض اوکیفیت دحیض کښې استعمالیدونکې کپړې اود فتحه په صورت کښې به معنی داوی چه ما د حیض په زمانه کښې استعمالیدونکې کپړې واخستې ځکه چه حَیضة نفس د حیض په معنی کښې دې.(۴)
امام خطابی رحمه الله او امام نووی رحمه الله دکسره والا روایت ته ترجیح ورکړې ده اوامام قرطبی رحمه الله د فتحه والاروایت ته ترجیح ورکړې ده. ځکه چه په بعض طرق کښې بغیرد تاء حیض هم راغلې دې، د کوم نه چه د فتحه والاد روایت تائید کیږی.(۵)

**قوله:: أنفست**: دامام خطابی رحمه الله په حواله سره تیرشوی دی چه هغه فرمائی چه اصل لفظ د نفست نفس په معنی د دم (وینې) دې کوم چه په حیض اونفاس دواړو کښې مشترك دې. البته دا ضرور دی چه دلغت علماؤ ددې لفظ بناء فعل کښې فرق کړې دې اوهغه فرق دادې چه په فتحه د نون یعنی معروف کیدو په صورت کښې به د حیض په معنی کښې وی او په ضمه د نون یعنی مجهول کیدو په صورت کښې به دنفاس په معنی کښې وی او هم دغه د اکثر لغویین قول دې. مګر حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ابوحاتم رحمه الله د امام اصمعی رحمه الله نه نقل کړی دی چه دا لفظ د نون په ضمه سره یعنی د مجهول صیغې سره حیض اونفاس دواړ معنی کښې مستعمل دې.(۶) دې لفظ سره متعلق باقی تفصیل وړاندې تیرشوې دې. ددې روایت نه معلومه شوه چه هم په یو لحاف کښې حائضه سره سملاستل جائز دی په دې شرط چه د نامه لاندې د زنګونونو پورې نه ځان اوساتلې شی.(۷)

---

۱) فتح الباري: ۵۳۱/۱.
۲) فتح الباري: ۵۳۱/۱.
۳) فتح الباري: ۵۳۱/۱عمدة القاري: ۲۶۴/۳شرح الکرماني:۱۶۴/۳إرشادالساري: ۵۳۸/۱.
۴) فتح الباري: ۵۳۱/۱إرشادالساري:۵۳۸/۱.
۵) حواله بالا
۶) فتح الباري: ۵۳۱/۱.
۷) فتح الباري: ۵۳۱/۱شرح الکرماني:۱۶۴/۳إرشادالساري:۵۳۸/۱عمدة القاري:۲۶۴/۳.

علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه ددې حدیث نه معلومه شوه چه په هغه زمانه کښې به ښځې د حیض په ورځوکښې داستعمال کپړې جدا ساتلې او په عاموحالاتوکښې به داستعمال کپړې نورې ساتلې.[1]

په دې واقعه سره دهغه وخت د سلامت ذوق اونفاست طبع اندازه هم کیدې شی چه دکپړو دعالم کمی داو خاص کر د د بیبیانو په کورونود نبی ﷺ کښې اختیاری فقر اوفاقه او غربت په حالاتوکښې داسې اهتمام کول معمولی خبره نه وه.[2]

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت دحل ترجمه د عنوان لاندې تیر شوې دې.

# ۵- باب: مُبَاشَرَةِ الْحَائِضِ

**ماقبل سره ربط**: وړاندینی باب سره ربط دادې چه دواړو ابوابوکښې د مباشرت حیض ذکر دې.[3] ځکه چه دلته هم د مباشرت حائض نه مراد التقاء البشرین یعنی د دوو ځرمنونو په خپل مینځ کښې ملاویدل او یوځائی سملاستل او اوده کیدل دی.[4]

**د ترجمة الباب مقصد**: امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې حائضه سره د مباشرت جواز بیانول غواړی.[5] اودلته دمباشرت نه مراد جماع نه ده ځکه چه هغه حائضه سره هیڅ صورت جائزنه ده.[6]

## الحدیث الأول

[۲۹۶/۲۹۵]- حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ كِلاَنَا جُنُبٌ» «وَكَانَ يَأْمُرُنِي، فَأَتَّزِرُ، فَيُبَاشِرُنِي وَأَنَا حَائِضٌ»[7]

**ترجمه**: حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما اونبی کریم ﷺ به هم په یولوښی سره غسل کولو او دواړه به جنبی وو. او حضورپاك به ماته حکم فرمائیلو نو ما به ازار تړلو بیابه ئی ماسره استراحت کولو

---

[1] فیض الباری: ۴۸۹/۱.

[2] أنوارالباری: ۳۸۲/۱۰.

[3] عمدة القاری: ۲۶۵/۳.

[4] فتح الباری: ۵۳۲/۱شرح الکرمانی:۱۶۵/۳إرشادالساری:۵۳۸/۱عمدة القاری:۲۶۵/۳.

[5] عمدة القاری: ۲۶۵/۳.

[6] حواله بالا

[7] قوله: "عائشة الحدیث قد مر طرفه فی کتاب الغسل باب غسل الرجل مع امرأته رقم الحدیث: ۲۵۰. روی البخاری هذا الطرف فی نفس هذا الباب رقم الحدیث: ۳۰۲ وفی الاعتکاف باب غسل المعتکف رقم الحدیث: ۲۰۳۰ ورواه مسلم فی الحیض باب مباشرة الحائض فوق الإزار رقم الحدیث: ۶۷۹ والترمذی فی الطهارة باب ماجاء مباشرة الحائض رقم الحدیث:۱۳۲وأبوداؤد فی الطهارة باب فی الرجل یصیب منها دون الجماع رقم الحدیث: ۲۶۸ والنسائی فی الحیض باب مباشرة الحائض الخ رقم الحدیث: ۲۸۷-۲۸۶.

(يعنى يوبه اوده كيدلو) حال دادې چه زه به په حيض كښې ووم. او حضورپاك به خپل سرمبارك زما طرف ته كولو په داسې حالت كښې چه حضورپاك به په اعتكاف كښې وو او ما به د حيض په حالت كښې دحضورپاك سرمبارك وينځلو.

## تراجم رجال

**قبيصة بن عقبة**: دا قبيصه بن عقبه بن محمد بن سفيان سُوائى كوفى رحمة الله عليه دې. ددوى كنيت ابوعامردې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب علامة المنافق د دويم حديث لاندې تير شوى دى.[1]

**سفيان الثوري**: دا مشهور امام حديث تبع تابعى ابوعبدالله سفيان بن سعيدبن مسروق ثورى كوفى رحمة الله عليه دې. ددوى حالات هم كتاب الإيمان باب علامة المنافق د دويم حديث لاندې تير شوى دى.[2]

**منصور بن المعتمر**: دا مشهور محدث ابوعتاب منصوربن المعتمر السلمى الكوفي رحمة الله عليه دې. د دوى حالات كتاب العلم باب من جعل لأهل العلم أياماً معلومة دړومبي حديث لاندې تيرشوى دى.[3]

**إبراهيم بن يزيد النخعي**: داد كوفې مشهور تابعى فقيه ابوعمران ابراهيم بن يزيد بن قيس بن أسود نخعى رحمة الله عليه دې. د دوى مور بى بى مليكه بنت يزيد ده چه د اسودبن يزيد اوعبدالرحمن بن يزيد خورده. د دوى حالات كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم د ړومبي حديث لاندې تيرشوى دى.[4]

**أسودبن يزيد**: دا اسود بن يزيد بن قيس نخعى رحمة الله عليه دې. ددوى حالات كتاب العلم باب من ترك بعض الاختيار الخ د ړومبى حديث لاندې تيرشوى دى.[5]

**عائشة**: دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابى بكر صديق رضي الله عنهما ده. ددوى حالات ((بدء الوحى)) ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوى دى.[6]

## شرح حديث

دمباشرت معنى ملامست او التقاء البشرة بالبشرة ده. يعنى ددوو بدنونو خپل مينځ كښې ملاويدل اودا ماخوذدې د ((لمس بشرة الرجل بشرة المرأة)) نه دكوم معنى چه د ښځې او د سړى بدن د ښځې بدن سره ملاويدل.[7] كله لفظ دمباشرت په معنى د جماع هم استعماليږى.[8] ليكن دلته هم ړومبې معنى مراد ده.[9]

**د حائضه د مباشرت صورتونو اودهغې احكام**: ددې نه پس دې دا واضحه وى چه دمباشرت حائضه درې صورته دى.

---

[1] كشف البارى: ۲۷۵/۲.
[2] كشف البارى: ۲۷۸/۲.
[3] كشف البارى: ۲۷۰/۳.
[4] كشف البارى: ۲۵۳/۲.
[5] كشف البارى: ۵۵۳/٤.
[6] كشف البارى: ۲۹۱/۱.
[7] النهاية لابن الأثير: ۱۳۶/۱-۱۳۵ عمدة القارى: ۲۶۶/۳.
[8] حواله بالا.
[9] عمدة القارى: ۲۶۶/۳.

**د مباشرت حائضه دومبې صورت:** رومبې صورت **جماع فى الفرج** دې. ددې حرمت نص قرآنى احاديث صحيحه او اجماع نه ثابت دې. لهذا دا حلال گنړل اوكونكې كافر دې اوكه يو سړې دا حلال نه گنړى مگر په هيره سره يا د حرمت د حكم نه د ناخبرتيا په وجه سره يا مجبوراً ددې ارتكاب اوكړو نو په هغه باندې څه گناه نشته اونه كفاره شته خوكه هغه ئې حلال نه گنړلو سره هم دا كار بنه قصداً عمداً كوى نو امام شافعى رحمه الله فرمائى چه دا د گناه كبيره ارتكاب دې. (١)

البته په دې مسئله كښې د كفارې په وجوب كښې اختلاف دې. امام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك رحمه الله امام شافعى رحمه الله (فى قول الجديد) امام احمد رحمه الله (فى رواية) ابوسليمان خطابى، ابن منذر، عطاء بن ابى رباح، ابن ابى مليكه، امام شعبى، امام نخعى، امام مكحول، امام زهرى، ايوب سختيانى، ابوالزناد، ربيعه، حمادبن ابى سليمان، سفيان ثورى اوليث بن سعد رحمهم الله وغيره فرمائى چه دده په ذمه باندې توبه اواستغفار لازم دې كفاره نه. او ابن عباس، قتاده، امام اوزاعى، امام احمد، اسحاق، امام شافعى (فى قول القديم) سعيدبن جبير، حسن بصرى او ابن جرير رحمهم الله وغيره فرمائى چه كفاره واجب ده. (٢)

بيا په قائلين وجوب كفاره كښې هم اختلاف دې. سعيدبن جبير رحمه الله اوحسن بصرى رحمه الله فرمائى چه ددې كفاره غلام آزادول دى او امام شافعى رحمه الله (فى قول القديم) او نور حضرات فرمائى چه ددې كفاره دينار يا نصف دينار دې ځكه چه د ابن عباس رضى الله عنهما نه نقل دى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم د حائضه سره جماع كونكى باره كښې فرمائيلى ((يتصدق بدينار أو بنصف دينار)) (٣)

بياد كفاره په توگه دينار يا نصف دينار قائلين كښې هم اختلاف دې چه دينار به كوم وخت واجب كيږى او نصف دينار به كوم وخت واجب كيږى؟ نوجمهورو دا امر اختيار كړې دې چه د حيض د شدت په زمانه كښې به دينار او د ضعف په زمانه كښې نصف دينار وى اوهم دغه مشهور دى. خو امام ابواسحاق اسفرائينى رحمه الله نه نقل دى چه كه چرته جماع قبل انقطاع الدم (د حيض وينه بنديدونه ورندې) اوكړى نو دينار به وى او كه چرې جماع بعد انقطاع الدم وقبل الاغتسال (د وينې بنديدونه پس اوغسل نه وړاندې) اوكړه نو نصف دينار به وى. هم دا قول قاضى رحمه الله او ابوالطيب رحمه الله اختيار كړې دې. د كفاره په توگه تصدق دينار يا نصف دينار قائلينو استدلال د ابن عباس رضى الله عنهما د دغه پورتنى روايت نه دې. (٤)

حضرات جمهور رحمهم الله ځوك چه دعدم وجوب كفاره قائل دى د ابن عباس رضى الله عنهما ددې حديث باره كښې فرمائى چه د محدثينو حضراتو ددې په ضعف او مضطرب كيدو باندې اتفاق دې. (٥)د ابن عباس رضى الله عنهما داروايت امام حاكم رحمه الله هم په خپل مستدرك كښې ذكر كړې دې اوفرمائيلى دى چه داحديث صحيح دې. (٦) مگر د امام حاكم رحمه الله دا تصريح د ائمه حديث رحمهم الله د تصريحاتو خلاف

---

(١) شرح الكرمانى: ۱۶۵/۳عمدة القارى: ۲۶۶/۳المجموع شرح المهذب: ۳۵۹/۲.

(٢) المجموع شرح المهذب: ۳۶۱/۲-۳۶۰عمدة القارى: ۲۲۶/۳معالم السنن: ۸۴/۱-۸۳.

(٣) المجموع شرح المهذب: ۳۵۹/۲عمدة القارى: ۲۲۶/۳معالم السنن: ۸۴/۱-۸۳.

(٤) المجموع شرح المهذب: ۳۶۰-۳۵۹/۲عمدة القارى: ۲۲۶/۳.

(٥) المجموع شرح المهذب: ۳۶۰/۲.

(٦) المستدرک للإمام الحاكم: ۲۷۸/۱رقم الحديث: ۶۱۲.

ده او بيا امام حاكم رحمه الله د انمه حديث په نيز متساهل هم دي لهذا هم دانمه حديث تصريحاتو ته به ترجيح حاصله وی. امام شافعي رحمه الله فرمائي چه دا روايت ثابت نه دې. امام بيهقي رحمه الله دا حديث ددې ټول طرق راجمع كولوسره په دې باندې د ضعيف كيدو حكم لګولې دې.(۱).اود امام بيهقي رحمه الله په حافظ، متقن اومحقق كيدو باندې د ټولو اتفاق هم دې.(۲) هم دغه شان ددې روايت په متن كښې هم سخت اضطراب دې. چنانچه په پورتني روايت كښې هم حكم تصدق د شك په بنيادباندې دې چه يا خو به ديناروی اويا به نصف دينار وی. په يوبل روايت كښې دی چه ((يتصدق بدينار، فإن لم يجد فبنصف دينار))(۳)يو دينار به صدقه كوی كه دومره نه شی كولې نو بيا به نصف دينار كوی.په دريم روايت كښې دی چه ((إن كان دماً أحمر، فدينار وإن كان أصفر، فبنصف دينار))كه چرې وينه د حيض سره وی نو يو پوره دينار اوكه چرې زيړه وی نو نصف دينار. هم دغه شان په يو څلورم روايت كښې دی چه ((إن كان الدم عبيطاً، فليتصدق بدينار، وإن كان صفرة، فنصف دينار))(۴)كه چرې وينه تازه وی نو يكاردی چه يو دينار صدقه كړی اوكه زيړه وی نو نيم دينار.(۵) لهذا صحيح هم دغه دی چه په دې صورت (د حرمت علم كيدو نه باوجود د جماع كولوصورت) كښې توبه او استغفار لازم دې كفاره نه. دې نه علاوه نور حضرات فرمائي چه تصديق دينار، يا نصف دينار روايات په استحباب باندې محمول دی يعنی كه چرته غواړی نو صدقه دې كړی اوكه نه غواړی نو نه دې كوی.(۶)

**د حائضه د مباشرت دويم صورت:** د حائضه د مباشرت دويم صورت دادې چه د نامه نه قپورته او د زنګون نه ښكته حصه د بدن كښې ذكر، ښكلولو معانقه اولمس وغيره طريقه سره مباشرت اوكړی، ددې صورت مباشرت حكم دادې چه دا صورت بالاجماع حلال دې.(۷)

**دحائضه د مباشرت دريم صورت:** د حائضه د مباشرت دريم صورت دادې چه چه دنامه نه لاندې د زنګونونو پورې بغيرد فرج او دبر نه جماع اوكړی. ددې صورت حكم دادې چه حضرت جمهور رحمهم الله امام ابوحنيفه، امام مالك امام شافعي په نيز د جماع دا صورت حرام دې اوهم دغه د سعيدبن المسيب، شريح، طاؤوس، عطاء، سليمان بن يسار او قتاده رحمهم الله قول دې. خو امام ابويوسف، امام محمد او امام احمد رحمهم الله په نيز صرف شعارذم، يعنی د فرج نه ځان ساتل ضروری دی د باقي بدن د حصې نه استمتاع حلال ده هم دغه د عكرمه، مجاهد، شعبی، سفيان ثوری، اوزاعی، اسحاق بن راهويه، ابوثور او ابن المنذر رحمهم الله وغيره قول دې.(۸) په دغه پورتني اختلاف كښې د فريقين دلائل كتاب الحيض د شروع مباحث كښې په تفصيل سره ذكر كړې شوی دی.

---

(۱) السنن الكبرى للإماما البيهقي كتاب الحيض باب ماروی فی كفارة من أتی امرأته حائضاً: ۱/۴۷۵-۴۶۹ رقم الحديث: ۱۵۳۰-۱۵۱۱

(۲) حواله بالا.

(۳) السنن الكبرى للإماما البيهقي رحمه الله كتاب الحيض باب ماروی فی كفارة من أتی امرأته حائضاً: -۴۶۹ ۱/۴۷۵ رقم الحديث: ۱۵۱۶-۱۵۲۸.

(۴) السنن الكبرى للإماما البيهقي رحمه الله كتاب الحيض باب ماروی فی كفارة من أتی امرأته حائضاً رقم الحديث: ۱۵۲۴.

(۵) عمدة القاري: ۳/۲۶۶.

(۶) عمدة القاري: ۳/۲۶۶المجموع شرح المهذب: ۲/۳۶۰.

(۷) عمدة القاري: ۳/۲۶۶.

(۸) عمدة القاري:۳/۲۶۶.

**قوله:** **قولها: فأتزر:** أتزر، دا لفظ همزه مفتوحه او تاء مشدده سره دې.د کوم اصل چه أأتزر دې. رومبې همزه متحرک مفتوح دويم ساکن او بيا تاء او دويم همزه په تاء کښې مدغم کړې شوې دې. دا د أفتعل، فعل مضارع صيغه واحد متکلم په وزن باندې دې.[1]

ليکن علامه ابن اثير، علامه زمخشرى او صاحب مفصل رحمهم الله أتزر په ادغام لوستل غلط گرځولي دی خکه چه د دغه حضراتو فرمانيل دی چه د همزه په تاء کښې ادغام جائزنه دې. علامه کرمانی رحمه الله او علامه عينی رحمه الله فرمائی چه حضرت عائشه رضي الله عنها د فصحاء عرب نه ده لهذا د هغې دا لفظ ادغام سره بيانول ددې د جواز دپاره دليل اوحجت دې خکه داغلط گرځول پخپله غلط دی. نور ممکن دی چه دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت کونکو دا (دا لفظ) داسې ادغام سره روايت کړې وی ليکن پخپله حضرت عائشه رضي الله عنها ادغام سره تلفظ نه وی فرمائيلې. په دې صورت کښې به غلطی د رواتو د طرف نه وی نه چه دحضرت عائشه رضي الله عنها د طرف نه.[2]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دحديث ترجمة الباب سره مناسبت د حديث د ټکړې ((فيباشرني)) سرخ بالکل واضح دې په داسې معنى چه دواړو کښې د مباشرت حائض تذکره ده.[3]

## الحديث الثاني

[۲۹۶]-حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ خَلِيلٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ هُوَ الشَّيْبَانِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَتْ إِحْدَانَا إِذَا كَانَتْ حَائِضًا، فَأَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُبَاشِرَهَا "أَمَرَهَا أَنْ تَتَّزِرَ فِي [ص:٦٨] فَوْرِ حَيْضَتِهَا، ثُمَّ يُبَاشِرُهَا، قَالَتْ: وَأَيُّكُمْ يَمْلِكُ إِرْبَهُ، كَمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْلِكُ إِرْبَهُ" تَابَعَهُ خَالِدٌ، وَجَرِيرٌ، عَنِ الشَّيْبَانِيِّ.[4]

**ترجمه:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه په مونږ ازواج کښې به کله څوک حائضه شوه او په دې حالت کښې به حضورپاک هغې سره د استراحت اراده کوله نود ازار تړلو حکم به ئې ورکولو باوجودد حيض د زياتې بيا به ئې استراحت کولو (يعنى يوځائې به اوده کيدل). حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل تاسو کښې داسې څوک دې چه په خپل خواهش باندې اختيار لرى لکه چه حضورپاک لرلو؟ على بن مسهرسره خالد او جرير هم داحديث د شيبانى نه روايت کړې دې.

### تراجم رجال

**إسماعيل بن الخليل:** دا اسماعيل بن الخليل الخزاز الکوفی رحمه الله دې ددوی کنيت ابوعبدالله دې. دوی د على بن مسهر، عبدالرحيم بن سليمان، حفص بن غياث، يحيى بن زکريا بن ابى زائده او سلمه بن رجاء رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت کړې دې. اوددوی نه امام بخارى، امام مسلم، امام

---

[1] فتح البارى: ۵۳۲/۱ عمدة القارى: ۲۶۵/۳.

[2] عمدة القارى: ۲۶۶/۳-۲۶۵ شرح الکرمانى: ۱۶۵/۳.

[3] عمدة القارى: ۳۹۳/۲.

[4] قوله: "عائشة الحديث مر تخريجه فى نفس هذاالباب تحت رقم الحديث: ۳۰۰.

ابوداؤد، عبدالله بن عبدالرحمن الدارمي، محمدبن اسحاق الصغاني، يعقوب بن شيبه او بشر بن موسى اسدي رحمهم الله وغيره حديث روايت كړي دي.[1]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي «كان من الثقات»[2]

محمدبن عبدالله خزرمي رحمه الله فرمائي: «كان ثقة»[3]

ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې.[4]

امام عجلي رحمه الله فرمائي: «كان ثقة صاحب سنة»[5]

ابن نمير رحمه الله ددوى نه كتابت حديث كړې دې.[6]

ابونعيم استر آبادي رحمه الله ددوى تاريخ وفات ۲۲۴هجرى ذكركړې دې. ليكن ائمه رجال رحمهم الله تاريخ وفات ۲۲۵هجرى ذكركړې دې[7]اوهم دغه صحيح دې. چنانچه امام بخاري رحمه الله فرمائي: «جاء نأنعيه سنة خمس وعشرين ومائتين».[8]

**علي بن مسهر**: دا حافظ ابوالحسن علي بن مسهر القرشي الكوفي رحمه الله چه دمقام موصل قاضي هم پاتې شوې وو.[9]

هغوى د يحيى بن سعيد انصاري، هشام بن عروه، عبيدالله بن عمر، موسى الجهني، اسماعيل بن ابى خالد، اعمش، عبدالملك بن ابى سليمان، مطرف بن طريف، ابواسحاق الشيباني، ابومالك الاشجعي، ابوحيان التيمي، اجلح بن عبدالله الكندي، داؤد بن ابى هند، ابوبرده بن ابى موسى، مختار بن فلفل، عاصم الاحوال، زكريا بن ابى زائده، سعيدبن ابى عروبه، عبدالله بن عطاء، عثمان بن حكيم الانصاري او محمدبن قيس الاسدي رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت كړې دې.

ددوى نه ابوبكر بن ابى شيبه، عثمان بن ابى شيبه، خالد بن مخلد، اسماعيل بن الخليل، بشر بن آدم، زكريا بن عدي، عبدالله بن عامربن ذراره بن ابى المغراء، محرز بن عون، سهل بن عثمان، سويدبن سعيد، علي بن حجر او هناد بن السري رحمهم الله وغيره حديث روايت كړى دى.[10]

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي: «صالح الحديث، أثبت من أبي معاوية الضرير في الحديث»[11]

يحيى بن معين رحمه الله فرمائي: «كان علي أثبت من ابن نمير»[12]

---

[1] تلامذه او مشائخ تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال:۸۳/۳.

[2] الجرح والتعديل: ۱۰۹/۲.

[3] تهذيب الكمال:۸۵/۳.

[4] كتاب الثقات لابن حبان: ۹۹/۸.

[5] تهذيب التهذيب: ۲۹٤/۱.

[6] تهذيب الكمال:۸۵/۳تقريب التهذيب: ۱۰۷الكاشف:۲٤۵/۱.

[7] تهذيب الكمال:۸۵/۳تهذيب التهذيب: ۲۹٤/۱تقريب التهذيب: ۱۰۷الكاشف:۲٤۵/۱.

[8] عمدة القاري: ۲۶۷/۳.

[9] تهذيب الكمال:۱۳۵/۲۱تهذيب التهذيب: ۳۸۳/۷سيرأعلام النبلاء: ٤۸٤/۸الجرح والتعديل: ۲۶۳/۶.

[10] تلامذه او مشائخ تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال:۱۳۵/۲۱سيرأعلام النبلاء:٤۸۵/۸.

[11] تهذيب الكمال:۱۳۷/۲۱تهذيب التهذيب: ۳۸۳/۷سيرأعلام النبلاء:٤۸۵/۸الجرح والتعديل: ۲۶٤/۶.

[12] تهذيب الكمال:۱۳۸/۲۱تهذيب التهذيب: ۳۸٤/۷سيرأعلام النبلاء: ٤۸۶/۸.

امام عجلی رحمه الله فرمائی: «كان ممن جمع الحديث والفقه، ثقة». امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی: صدوق، ثقة.[1]
امام نسائی رحمه الله فرمائی ثقة.[2]
ابن حبان رحمه الله هغوی په كتاب الثقات كښې ذكر كړی دی.[3]
ابن سعد رحمه الله فرمائی «كان ثقة كثير الحديث»[4]
د ابن معين رحمه الله نه تپوس اوكړې شو «هو (علی بن مسهر) أحب إليك أو أبوخالد الأحمر؟» نو هغوی اوفرمائيل ابن مسهر بيا تپوس اوكړې شو «ابن مسهر أو إسحاق بن الأزرق؟» نو بيائی هم د ابن مسهر نوم واخستو. بيا تپوس اوكړې شو «ابن مسهر أو يحيى بن أبي زائدة؟» نو په جواب كښې ارشاد اوفرمائيلو كلاهما ثقة[5] د هغوی رحمه الله انتقال ١٨٩ هجری كښې شوې دې.[6]
**أبوإسحاق الشيباني** دامشهورتابعی سليمان بن ابی سليمان فيروز رحمه الله دې.[7] دې په خپل كنيت ابواسحاق الشيبانی الكوفی سره مشهوردې.[8]
هغوی د ابراهيم نخعی، اشعث بن ابی الشعثاء، اسعدبن يزيد، ابوالزناد، ابو برده بن ابی موسی الاشعری، سعيدبن ابی برده، عبدالله بن شدادبن الهاد، عبدالرحمن بن الاسودبن يزيد النخعی، عدی بن ثابت، عكرمه مولی ابن عباس، محارب بن دثار او يزيد بن الاصم رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت كوی. اود او د دوی نه د دوی خوئی اسحاق، ابواسحاق السبيعی، عام الاحول، ابراهيم بن طهمان، ابو اسحاق الغزاری، سفيان ثوری، شعبه، حفص بن غياث، ابن عيينه، عبادبن العوام، علی بن مسهر، عوام بن خوشب، محمدبن فضيل او جعفر بن عون رحمهم الله وغيره حديث روايت كوی.[9] يحيی بن معين رحمه الله فرمائی ثقة حجة.[10]
ابوحاتم رحمه الله فرمائی: «ثقة، صدوق، صالح الحديث»[11]
امام نسائی رحمه الله فرمائی ثقة.[12]
امام عجلی رحمه الله فرمائی: «كان ثقة، من كبار أصحاب الشعبی»[13]

---

[1]) حواله بالا.
[2]) تهذيب الكمال:١٣٨/٢١ تهذيب التهذيب:٣٨٤/٧ إكمال تهذيب التهذيب: ٣٧٧/٩.
[3]) ١٣١/٤ رقم الترجمة: ٣٢٧٣.
[4]) تهذيب التهذيب: ٣٨٤/٧ إكمال تهذيب الكمال:٣٧٧/٩.
[5]) تهذيب الكمال:١٣٧/٢١ تهذيب التهذيب: ٣٨٣/٧ سير أعلام النبلاء: ٤٨٥/٨.
[6]) كتاب الثقات لابن حبان: ١٣١/٤ تهذيب الكمال: ١٣٨/٢١ تهذيب التهذيب: ٣٨٤/٧ سير أعلام النبلاء: ٤٨٦/٨.
[7]) عمدة القاری: ٢٦٧/٣ كتاب الثقات لابن حبان: ١٨٤/٢ رقم الترجمة: ١٤٢٠.
[8]) تهذيب الكمال:٤٤٤/١١ تهذيب التهذيب:١٩٧/٤ الجرح والتعديل: ١٣٠/٤ سير أعلام النبلاء: ١٩٣/٦.
[9]) تلامذه او مشائخ تفصيل دپاره اوګورئی تهذيب الكمال:٤٤٤/١١ سير أعلام النبلاء:١٩٣/٦.
[10]) تهذيب الكمال:٤٤٦/١١ تهذيب التهذيب:١٩٧/٤ الجرح والتعديل: ١٣٠/٤ سير أعلام النبلاء: ١٩٣/٦.
[11]) الجرح والتعديل: ١٣٠/٤.
[12]) تهذيب الكمال: ٤٤٦/١١ تهذيب التهذيب: ٩٧/٤١.
[13]) تهذيب الكمال:٤٤٦/١١ تهذيب التهذيب:١٩٧/٤ سير أعلام النبلاء: ١٩٤/٦.

علامه جوزجانی رحمه الله فرمائی چه امام احمدبن حنبل رحمه الله ته به د ابواسحاق شیبانی رحمه الله احادیث خوښیدل. تردې چه هغوی به د ابواسحاق شیباني رحمه الله د ثقاهت سره متعلق فرمانیل: «هوأهل أن لاندع له شيئاً» یعنی هغه ددې خبرې مستحق دې چه دهغوی د روایاتونه هیڅ هم پرینخودې شی یعنی هرڅه قبول کړې شی.([1]). ابوبکر بن عیاش رحمه الله فرمائی: «كان الشيباني فقيه الحديث»([2]) ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی: «هوثقة حجة عند جميعهم»([3])

ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې.([4])

ددوی د تاریخ وفات په حواله سره مختلف اقوال دی: ① یحیی بن بکیر رحمه الله فرمائی ۱۲۹هجری کښې وفات شوې. ② عمرو بن علی او ابوعیسی الترمذي رحمه الله فرمائی چه ۱۳۸هجری کښې وفات شوې. ③ هم دغه شان ابومعاویه او محمدبن عبدالله بن نمیر رحمهماالله فرمائی چه ۱۳۹هجری کښې وفات شوې. ④ او امام بخاری رحمه الله فرمائی ۱۴۱ یا ۱۴۲هجری کښې انتقال شوې.([5])

علامه ذهبی رحمه الله د دې اقوال اربعه نه قول اول فحش غلطی او قول رابع بعيد گرځولې دې. البته قول ثالث یعنی ابومعاویه اومحمدبن عبدالله بن نمیر بیان کړې شوې قول ته ئی قول متجه وئیلې دې یعنی دا قول قبلولې شی.([6]) ابن حبان رحمه الله او علامه عینی رحمه الله قول رابع یعنی دامام بخاری رحمه الله قول اختیارکړې دې. والله اعلم بالصواب.([7])

**عبدالرحمن بن الأسود:** دا عبدالرحمن بن الاسود بن یزید النخعی رحمه الله دې څوک چه دکبار تابعینونه دې. ددوی حالات كتاب الوضوء باب لايستنجى بروث لاندې تیر شوی دی.

**أسود بن يزيد:** دا اسودبن یزید بن قیس النخعی رحمه الله دې. د دوحالات کتاب العلم باب من ترك بعض الختيار الخ لاندې تیرشوی دی.([8])

**عائشة:** دا ام المؤمنین حضرت سیده عائشه بنت ابی بکر صدیق رضي الله عنهما ده. ددوی حالات «بدء الوحی» ددویم حدیث لاندې تفصیلاً تیرشوی دی.([9])

## شرح حديث

**قولها: فورحيضتها:** علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه «فور الحيض: أوله ومعظمه يعنى» دې نه مراد د حیض د شروع او د زیاتیدو زمانه ده.([1])علامه جوهری رحمه الله فرمائی «فورة الحر: شدته» یعنی فور د شدت په معنی کښې دې نو په دې اعتبارسره فورحيضتها معنی به د شدت حیض زمانه وی.([2])

---

[1]) حواله بالا

[2]) تهذيب التهذيب: ۱۹۸/٤.

[3]) حواله بالا.

[4]) كتاب الثقات لابن حبان: ۱۸٤/۲رقم الترجمة: ۱٤۲۰.

[5]) تهذيب الكمال: ٤٤٧/۱۱ تهذيب التهذيب: ۱۹۸/٤ سير أعلام النبلاء: ۱۹٤/٦.

[6]) سير أعلام النبلاء: ۱۹٤/٦.

[7]) كتاب الثقات لابن حبان: ۱۸٤/۲رقم الترجمة: ۱٤۲۰عمدة القاري: ۲٦۷/۳.

[8]) كشف الباري: ٥٥۳/٤.

[9]) كشف الباري: ۲۹۱/۱.

په دې قيد سره دحيض د شروع او روستو زماني فرق راؤخي. دکوم تائيد چه د ابن ماجه عن ام سلمه رضي الله عنها روايت: «كان يتقي سورة الدم ثلاثا ثم يباشرها بعد ذلك» نه هم کيږي اوداً روايت دهغه رواياتو منافي هم نه دې په کوم کښې چه مطلقاً د مباشرت ذکردې ځکه چه د حالاتود اختلاف سره دعمل اختلاف پاتې دې[1] بل د ابوداؤد په روايت کښې په ځائې د "فور" فوح حاء سره دې مګرمعنى د دواړو هم يوه ده[2]

«وأيكم يملك إربه» د لفظ "أرب" تحقيق: دالفظ دوه شان سره ضبط کړې شوې دې. يوأرب يعنى دهمزه او راء فتحه سره او دويم إرب يعنى د همزه کسره او راء سکون سره. اول حاجت او وطر (جماع) په معنى کښې دې او دويم د اندام مخصوصه په معنى کښې دې.
اوددې جملې هم دوه مطلبونه دى يودا چه رسول الله ﷺ سره دومره قوت او جوش په خپل حاجت او خواهش باندې قابو اوقدرت لرلو. چنانچه دانه شو کيدلې چه يود شريعت نه خلاف امر واقع شي خوتاسو خلق دومره طاقت نه لرئى لهذا خپل خان په حضورپاك باندې مه قياس کوئى بلکه احتياط کوئى هسې نه چه تاسود «من يرتع حول الحمى يوشك أن يقع فيه» مصداق جوړشنى اويود شريعت نه د خلاف کار مرتکب شئى. او دويم مطلب دادې چه حضورپاك په خپل اندام او حاجت باندې قابو لرله او ددې نه باوجود به ئى هم مباشرت فرمائيلو. نو بيا تاسو خودومره قابونه لرئى لهذا تاسو له خو به په درجه اولى جائزوى. ددې جملې په معنى کښې دا دوه وجهې دى او دواړه هم متضاد دى.
صاحب مجمع البحار فرمائى چه حضرت عائشه رضي الله عنها دا بيان کول غواړى چه حضورپاك به سره د مباشرت په شرمګاه کښې واقع کيدونه په امن کښې وو اودا په امن کښې پاتې کيدل ددې خبرې علت دې چه د بل چا دپاره دې دا حکم ثابت نه وى ځکه چه په نوروکښې دا علت موجودنه دې بلکه حضرات مجوزين هم دا قول عائشه رضي الله عنها د نورو دپاره ددې عمل مباشرت د جواز علت ګرځوى اوهغه داسې چه کله حضورپاك سره د قدرته د مباشرت عمل فرمائيلو نو بيا د نورو په حق کښې دا عمل څنګه غيرمباح کيدې شي؟ اوقدرت ئى هم نه وى.[5]

## تَابَعَهُ خَالِدٌ وَجَرِيرٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ

امام بخارى رحمه الله داخودل غواړى چه خالد بن عبدالله الواسطى او جرير بن عبدالحميد داحديث د ابواسحاق الشيبانى رحمه الله نه روايت کولوکښې دعلى بن مسهر متابعت کړې دې[6] د خالد بن عبدالله الواسطى رحمه الله دا متابعت ابوالقاسم التنوخى «وهب بن بقية عن خالد» په طريق سره موصولاً

---

[1]) فتح البارى: ۵۳۲/۱.

[2]) معجم الصحاح للجوهرى: ۵۲۷.

[3]) فتح البارى: ۵۳۳/۱عمدة القارى: ۲۶۸/۳.

[4]) شرح الكرمانى: ۱۶۷/۳ عمدة القارى: ۲۶۸/۳.

[5]) مجمع بحار الأنوار: ۴۳/۱الكنز المتوارى: ۲۵۸/۳-۲۵۷.

[6]) عمدة القارى: ۲۶۸/۳فتح البارى: ۵۳۳/۱ تغليق التعليق: ۱۶۸/۲.

الواسطی رحمه الله دا متابعت ابوالقاسم التنوخی ((وهب بن بقية عن خالد)) په طريق سره موصولاً ذکر کړې دې (١) اود جرير بن عبدالحميد متابعت امام ابوداؤد رحمه الله امام اسماعيلی او امام حاکم رحمهم الله موصولاً ذکرکړې دې. (٢)د امام ابوداؤد رحمه الله تخريج کړې شوې موصول روايت دادې:

((حدثنا عثمان بن أبي شيبة حدثنا جرير عن الشيباني عن عبدالرحمن بن الأسود عن أبيه عن عائشة رضی الله عنها قالت: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يأمرنا في فوح حيضنا أن نتزر ثم يباشرنا وأيكم يملك إربه، كما كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يملك أربه)) (٣)اود امام حاکم رحمه الله تخريج کړې شوې موصول روايت دادې: ((حدثني على بن عيسى حدثنا مسدد بن قطن عن عثمان بن أبي شيبة حدثنا جرير عن الشيباني عن عبدالرحمن بن الأسود عن أبيه عن عائشة رضي الله عنها قالت: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يأمرنا في فور حيضتنا أن نتزر، ثم يباشرنا، وأيكم يملك أربه، كما كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يملك أربه)) (٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله د خالد بن عبدالله الواسطی رحمه الله روايت دهغه په سند سره تغليق التعليق کښې هم ذکرکړې دې. (٥)بل دا روايت منصور بن ابی الاسود رحمه الله هم د ابواسحاق الشيباني رحمه الله نه هم په دې سند سره روايت کړې دې. (٦)

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**:دحديث اودغه شان د پورتنو متابعاتو ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې چه په دې ټولو کښې د مباشرت حيض تذکره ده. (٧)

## الحديث الثالث

[٢٩٧]-حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، قَالَ: حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَدَّادٍ، قَالَ: سَمِعْتُ مَيْمُونَةَ، تَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «إِذَا أَرَادَ أَنْ يُبَاشِرَ امْرَأَةً مِنْ نِسَائِهِ أَمَرَهَا، فَاتَّزَرَتْ وَهِيَ حَائِضٌ» وَرَوَاهُ سُفْيَانُ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ (٨)

**ترجمه**: حضرت ميمونه رضی الله عنها فرمائی چه کله به نبی کريم صلی الله عليه وسلم خپل ازواج مطهرات نه چاسره مباشرت کول غوښتل اوهغه به حائضه وه نود حضورپاك په حکم سره به هغې اول ازار تړلو. دا روايت سفيان هم د ابواسحاق الشيبانی نه روايت کړې دې.

---

(١) فتح الباری: ٥٣٣/١عمدة القاری: ٢٦٨/٣تغليق التعليق: ١٦٩/٢.

(٢) عمدة القاری: ٢٦٨/٣ فتح الباری: ٥٣٣/١تغليق التعليق: ١٦٩/٢سنن أبی داؤد کتاب الطهارة باب فی الرجل يصيب منها مادون الجماع رقم الحديث: ٢٧٣المستدرک على الصحيحين للإمام الحاکم کتاب الطهارة: ٢٧٩/١رقم الحديث: ٦١٤.

(٣) سنن أبی داؤد کتاب الطهارة باب فی الرجل يصيب منها مادون الجماع رقم الحديث: ٢٧٣ .

(٤) المستدرک للإمام الحاکم کتاب الطهارة: ٢٧٩/١رقم الحديث: ٦١٤.

(٥) ١٦٩/٢.

(٦) فتح الباری: ٥٣٣/١.

(٧) عمدة القاری:٣٩٦/٣.

(٨) قوله: "ميمونة. الحديث ورواه مسلم فی الحيض باب الاضطجاع مع الحائض فی لحاف واحد رقم الحديث: ٦٨٢وابوداؤد فی الطهارة باب فی الرجل يصيب منها مادون الجماع رقم الحديث:٢٦٧ والنسائی فی الحيض باب ذکر ما کان رسول الله صلی الله عليه وسلم يصنعه إذا حاضت إحدى نسائه رقم الحديث: ٣٧٦.

## تراجم رجال

**ابونعمان**: دا ابونعمان محمد بن الفضل السدوسی، الملقب عارم رحمه الله دي. ددوی حالات كتاب الإيمان باب قول النبی صلی الله عليه وسلم: الدين النصيحة ددويم حديث لاندې تيرشوی دی.[۱]

**عبدالواحد**: داعبدالواحدبن زياد البصری رحمه الله دي. ددوی حالات كتاب الإيمان باب الجهاد من الإيمان لاندې تيرشوی دی.[۲]

**أبوإسحاق الشيباني**: دا ابواسحاق سليمان بن ابی سليمان فيروز الكوفی رحمه الله دي.د دوی حالات د وړاندينی حديث لاندې تيرشوی دی.

**عبدالله بن شداد**: داعبدالله بن شداد الهاد الليثی الفقيه المدنی ثم الكوفی دي.ددوی كنيت ابو الوليد دي[۳]اوددوی مورسلمی بنت عميس الخثعميه رضي الله عنها ده چه دحضرت اسماء بنت عميس رضي الله عنها سكه خوراوام المؤمنين ميمونه بنت الحارث رضي الله عنها او ام الفضل بنت الحارث رضي الله عنها او لبابه الصغری رضي الله عنها دمورشريكه خورده اوددې ټولو مور هنده بنت عوف بن زهير بن الحارث بن حماطه ده.[۴]حضرت سملی بنت عميس رضي الله عنها اود حضرت حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه په نكاح كښې وه. بيا چه كله په غزوه احد كښې حضرت حمزه رضي الله عنه شهيد كړې شو نوهغې رضي الله عنها سره حضرت شداد رضي الله عنه نكاح اوكړه اوبيا هم ددوی په زوجيت كښې هم د پيغمبر صلی الله عليه وسلم په زمانه كښې د حضرت عبدالله بن شداد ولادت اوشو.[۵]

حضرت عبدالله بن شداد رحمه الله دخپل پلار شداد، عمر، علی، معاذ بن جبل، طلحه بن عبيدالله، ابن مسعود، ابن عباس، عباس، ابن عمر، اسماء بنت عميس، ميمونه بنت الحارث، عائشه اوام سلمه رضي الله عنهم وغيره نه د حديث روايت كړې دي.

او ددوی نه ابواسحاق الشيبانی، سعدبن ابراهيم، معبدبن خالد، حكم بن عتيبه، ربعی بن حراش، محمد بن كعب القرظی، منصوربن المعتمر، عبدالله بن شيرمه، معاويه بن عمار الدهنی او ابوجعفر الفراء رحمهم الله وغيره دحديث روايت كړې.[۶]يحيی بن سعيد رحمه الله فرمائی:«عبدالله بن شداد أحب إلی من أبی صالح مولی أم هانئ»[۷]يعنی عبدالله بن شداد زما په نيز د ابوصالح مولی ام هانی په مقابله كښې زيات خوښ دي. امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی: مدنی ثقة[۸] امام عجلی فرمائی: «هو من كبار التابعين وثقاتهم»[۹]، امام نسائی رحمه الله فرمائی: ثقة.[۱۰] ابن حبان رحمه الله دهغوی ذكر كتاب الثقات كښې كړې دي.[۱]

---

۱) كشف الباری: ۷٦۸/۲.

۲) كشف الباری: ۳۰۱/۲.

۳) تهذيب الكمال: ۸۲/۱۵-۸۱سير أعلام النبلاء: ٤۸۸/۳تهذيب التهذيب: ۲۵۱/۵خلاصة الخزرجی ص: ۲۰۱.

٤) تهذيب الكمال: ۸۲/۱۵.

۵) تهذيب الكمال: ۸۲/۱۵سير أعلام النبلاء: ٤۸۸/۳.

٦) د تلامذه ومشائخ د تفصيل دپاره اوګورئی تهذيب الكمال: ۸۲/۱۵

۷) الجرح والتعديل: ۹۵/۵رقم الترجمة: ۷۷۰۷.

۸) حواله بالا.

۹) تهذيب الكمال: ۸٤/۱۵تهذيب التهذيب: ۲۵۲/۵معرفة الثقات للإمام العجلی: ۳٦/۲مكتبة الدار.

۱۰) تهذيب الكمال: ۸٤/۱۵تهذيب التهذيب: ۲۵۲/۵.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې باندې اتفاق دې چه حضرت عبدالله بن شداد رحمه الله په جنګ جماجم کښې ورك شوې وو.(٢) امام عجلی رحمه الله فرمائی چه عبدالله بن شداد رحمه الله او عبدالرحمن بن ابی ليلی رحمه الله اسونه په جنګ کښې په نهر دجيل کښې داخل شوې وو دکوم نه پس چه دهغوی هيڅ خبر ملاؤنه شو. (٣)او ابن حبان رحمه الله هم په دې باندې د جزم اظهار فرمائيلې دې چه هغوی په نهر دجيل کښې ډوب شوې وو.(٤) دا حادثه ٨١ يا ٨٢هجری کښې پيښه شوې وه. (٥)
ابن سعد رحمه الله فرمائی: ((كان ثقة، قليل الحديث، شيعياً)) يعنی عبدالله بن شداد رحمه الله د شيعانِ علی نه وو(٦) عطاء بن السائب رحمه الله فرمائی چه ما عبدالله بن شداد رحمه الله په داسې ويناکولوسره اُوريدلې چه: ((وددت أنی قمت علی المنبر من غدوة إلی الظهر، فأذكر فضائل علی بن أبی طالب رضی الله عنه، ثم أنزل، فيضرب عنقی)) (زما دا خبره خوښه ده چه د سحرنه ترماسپښين پورې په منبرباندې کينم د حضرت علی رضی الله عنه مناقبت اوفضائل بيانوم، بيا چه کله د منبرنه کوز شم، نوچه زما سټ اووهلې شی.)(٧) علامه ذهبی رحمه الله ددې حکايت نقل کولو نه پس فرمائی ((هذا غلو وإسراف)) يعنی داد حضرت علی رضی الله عنه په محبت کښې غلو اوزياتې دې.(٨) بل علامه ذهبی رحمه الله فرمائی: ((حديث عبدالله مخرج فی الكتب الستة، ولا نزاع فی ثقته))(٩).

## شرح حديث

حديث سره متعلق ټول بحثونه دړومبی حديث لاندې تيرشوی دی.

**قوله:: رواه سفيان عن الشيبانی**: امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه د ابواسحاق شيبانی رحمه الله نه داروايت سفيان رحمه الله هم نقل کړې دې.(١٠) شراح حضراتو ليکلی دی چه د سفيان نه مراد سفيان ثوری رحمه الله دې.(١١) علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه د سفيان نه مراد سفيان ثوری وی يا ابن عيينة، چونکه دواړه داامام بخاری رحمه الله په شرط باندې موافق دی په دې وجه سفيان په صورت د ابهام ذکرکولوکښې هيڅ حرج نشته دې.(١٢)

---

(١) ٢٦٤/٢رقم الترجمة:٢٠٤٣.
(٢) الإصابة فی تمييز الصحابة: ٦٠/٣رقم الترجمة: ٦١٧٦ تهذيب الكمال:٨٥/١٥تهذيب التهذيب: ٢٥٢/٥.
(٣) الإصابة فی تمييز الصحابة: ٦٠/٣رقم الترجمة: ٦١٧٦ تهذيب الكمال:٨٥/١٥تهذيب التهذيب: ٢٥٢/٥معرفة الثقات للإمام العجلی: ٣٦/٢رقم الترجمة: ٩٠٣..
(٤) كتاب الثقات لابن حبان: ٢٦٤/٢.
(٥) الإصابة فی تمييز الصحابة: ٦٠/٣ تهذيب الكمال:٨٥/١٥سير أعلام النبلاء: ٤٨٩/٣.
(٦) سير أعلام النبلاء: ٤٨٨/٣.
(٧) سير أعلام النبلاء: ٤٨٩/٣.
(٨) حواله بالا.
(٩) حواله بالا
(١٠) عمدة القاری: ٢٦٩/٣فتح الباری: ٥٣٣/١.
(١١) حواله بالا.
(١٢) شرح الكرمانی: ١٦٨/٣.

علامه عيني رحمه الله د صاحب تلويح په حواله سره فرمائي چه دامام بخاري رحمه الله مقصد دحضرت سفيان ثوري رحمه الله ددې متابعت نه دمتابعت معنوي طرف ته اشاره کول دی ځکه چه د سفيان ثوري رحمه الله متابعت معنوي دې لفظي نه دې. اودا متابعت امام ابوداؤد رحمه الله موصولاً روايت کړې دې. هغوی فرمائي: «حدثنا محمد بن الصباح بن سفيان، حدثنا سفيان عن أبي إسحاق الشيباني سمعه من عبدالله بن شداد يحدثه عن ميمونة أن النبي صلى الله عليه وسلم صلى وعليه مرط وعلى بعض أزواجه منه وهي حائض وهو يصلي وهو عليه» يعني د حضرت ميمونه رضي الله عنها نه روايت دې چه حضورپاك يوځادر اغوستو سره مونځ کولو، کله چه د حضورپاك د دغه ځادر څه حصه نيزدې دحضورپاك په يوه زوجه باندې هم پروت وو اوهغه دغه وخت د حيض په حالت کښې وه. بل دا چه د سفيان ثوري رحمه الله په شان خالدبن عبدالله الواسطي او جرير بن عبدالحميد هم دا حديث د ابواسحاق الشيباني رحمه الله نه روايت کولوکښې دعبدالواحد متابعت کړې دې. ددې نه معلوميږی چه ابواسحاق الشيباني رحمه الله دا حديث د مسند عائشه رضي الله عنها نه هم روايت کولو (كما مر في الرواية السابقة) اوکله به ئې د مسند ميمونه رضي الله عنها نه هم روايت کولو اوهم دواړو سندونو سره د ابواسحاق رحمه الله نه خالد بن عبدالله الواسطي او جرير بن عبدالحميد نه اوريدلي دي خو په نورو رواتوکښې دواړو سندونو نه يوسره د ابواسحاق شيباني رحمه الله نه نقل کړې دې.[1] هم دغه شان حفص بن غياث، ابومعاويه او اسباط بن محمد هم داحديث د ابواسحاق الشيباني رحمه الله نه مسند ميمونه رضي الله عنها سره روايت کړې دې.[2] علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله د رواه الفاظ وئيلي تابعه ئې نه دی فرمائيلی، په دې وجه چه روايت، دمتابعت نه اعم دې نوکيدې شي چه امام بخاري رحمه الله دا روايت په توګه دمتابعت نه وی ذکر کړې.[3]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دحديث اوذکرکړې شوی متابعت ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په دې ټولو کښې دمباشرت حائض تذکره ده.[4]

## ۶-باب: تَرْكِ الْحَائِضِ الصَّوْمَ

**ماقبل سره ربط:** سابقه باب سره مناسبت دادې چه دواړه ابواب حيض سره متعلق په يوبو حکم باندې مشتمل دی.[5]

**په ترجمة الباب کښې د ترک صلاة د ذکرنه کولو وجه:** ابن رشيد رحمه الله وغيره فرمائي چه دلته هم امام بخاري رحمه الله د خپل عادت مطابق په ترجمة الباب کښې مشکل ذکرکړې دې اوواضحه او ښکاره شي ئې نه دې ذکرکړې.[6]

---

[1]) فتح الباري: ۵۳۳/۱.

[2]) فتح الباري:۵۳۳/۱عمدة القاري: ۲۶۹/۳.

[3]) شرح الكرماني: ۱۶۸/۳.

[4]) عمدة القاري: ۳۹۸/۳.

[5]) عمدة القاري: ۲۶۹/۳.

[6]) فتح الباري: ۵۳۴/۱.

یا په نورو الفاظوکښې داسې هم وئیلې کیدې شي چه دحائضه دپاره دترك صلوة حکم هم دې اودترك صوم هم او د دواړو هم په حدیث باب کښې ذکردې. بیاددې نه باوجود امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې په خاص توګه د روژې د پریخودو ذکرولې اونه کړو.(۱)

نوشراح وجه دا لیکلې ده چه د حائضه دپاره دترك صلوة حکم خو واضح دې کوم چه د طهارت د نه کیدو د وجې نه دې ځکه چه د صحت صلوة دپاره طهارت شرط دې خود صحت صوم یعنی د روژې دپاره طهارت شرط نه دې مګر ددې نه باوجود د ترك صوم حکم دې. ددې نه معلومه شوه چه د حائضه دپاره دترك صوم حکم امر تعبدی دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب کښې په خاص توګه د ترك صوم ذکر اوکړو.(۲)

**د شیخ الحدیث زکریا رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی زما په نیز دترك صلوة نه ذکرکولودا وجه نه ده ځکه چه د ترك صلوة باب وړاندې راغې. خو چونکه په ترك صوم کښې قضاء وی او ترك صلوة کښې قضاء نه وی نولکه چه ددواړو ترك کول جدا جدا قسم نه شو په دې وجه امام بخاری رحمه الله وجوب قضاء او عدم وجوب قضاء په اعتبار سره جدا جدا عنوان اوتړلو.(۳) اوچونکه په صوم کښې قضاء هم ده په دې وجه ئې دا مقدم کړو.(۴)

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله داخودل غواړي چه دحائضه دپاره د روژې اجازت نشته.(۵)

## الحدیث الأول

[۲۹۸]- حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي زَيْدٌ هُوَابْنُ أَسْلَمَ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِاللَّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَضْحًى أَوْفِطْرٍ إِلَى المُصَلَّى، فَمَرَّعَلَى النِّسَاءِ، فَقَالَ: «يَامَعْشَرَالنِّسَاءِ تَصَدَّقْنَ فَإِنِّي أُرِيتُكُنَّ أَكْثَرَ أَهْلِ النَّارِ» فَقُلْنَ: وَبِمَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: «تُكْثِرْنَ اللَّعْنَ، وَتَكْفُرْنَ العَشِيرَ، مَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَدِينٍ أَذْهَبَ لِلُبِّ الرَّجُلِ الحَازِمِ مِنْ إِحْدَاكُنَّ»، قُلْنَ: وَمَا نُقْصَانُ دِينِنَا وَعَقْلِنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: «أَلَيْسَ شَهَادَةُ المَرْأَةِ مِثْلَ نِصْفِ شَهَادَةِ الرَّجُلِ» قُلْنَ: بَلَى، قَالَ: «فَذَلِكِ مِنْ نُقْصَانِ عَقْلِهَا، أَلَيْسَ إِذَا حَاضَتْ لَمْ تُصَلِّ وَلَمْ تَصُمْ» قُلْنَ: بَلَى، قَالَ: «فَذَلِكِ مِنْ نُقْصَانِ دِينِهَا»(۶)[۹۱۲، ۱۳۹۳، ۱۸۵۰، ۲۵۱۵]

---

(۱) عمدة القاری: ۲۶۹/۳.

(۲) فتح الباری: ۵۳٤/۱عمدة القاری: ۲۶۹/۳.

(۳) الکنز المتواری: ۲۵۸/۳تقریربخاری:۹۸/۲.

(۴) تقریربخاری: ۹۹/۲.

(۵) فضل الباری: ٤۷۱/۲.

(۶) قوله: "أبی سعیدالخدری : الحدیث رواه الإمام البخاری رحمه الله فی العیدین أیضاً باب الخروج إلی المصلی بغیرمنبر رقم الحدیث: ۹۵۶وفی الزکاة باب الزکاة علی الأقارب رقم الحدیث: ۱٤۶۲ وفی الصوم باب الحائض تترک الصلاة والصوم رقم

**ترجمه:** ابوسعيدخدری رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د لوئی اختر يا وړوکی اختر په موقع باندې عيدګاه ته تشريف يوړو هلته حضورپاك دښځو طرف ته لاړو اووئی فرمائيل اې بيبيانو صدقه کوئی ځکه چه ما په جهنم کښې هم ښځې زياتې ليدلی دی. هغوی عرض اوکړو يا رسول الله داسې ولې دی؟ حضورپاك اوفرمائيل تاسو لعن طعن ډير کوئی اود خاوند ناشکری کوئی ددې نه باوجود په عقل او دين کښې ناقص کيدود وجې نه. ما تاسو نه هيڅوك زيات يو قابل اوتجربه كار سړې ليونې کونکې نه دې ليدلی.ښځو عرض اوکړو زمونږ په دين او زمونږ په عقل کښې څه نقصان دې؟ حضورپاك اوفرمائيل ولې د ښځې ګواهی د سړی په مقابله کښې د نيم برابر نه ده؟ هغوی اووئيل اوجی. حضورپاك اوفرمائيل بس هم دغه ددې عقل نقصان دې. بيا حضورپاك تپوس اوکړو ولې داسې نه ده چه کله ښځه حائضه وی نوهغه نه مونځ کولې شی اونه روژه ساتلې شی؟ ښځو اووئيل هم دغه شان ده. حضورپاك اوفرمائيل هم دغه ددوی د دين نقصان دې.

## تراجم رجال

**سعيدبن أبي مريم:** دا سعيدبن الحكم بن محمدبن سالم جُمحی مصری رحمه الله دې. ددوی حالات كتاب العلم**باب من سمع شيئا فراجع حتى يعرفه** دړومبی حديث لاندې تيرشوی دی.[1]

**محمدبن جعفر:** دامحمدبن جعفر بن ابی کثير الانصاری الزرقی رحمه اللهدې. دوی د اسماعيل بن جعفر، يحيى بن جعفر اويعقوب بن جعفر رور دې.[2]

هغوی د زيدبن اسلم، حميدالطويل، ابراهيم بن عقبه، حرام بن عثمان الانصاری، حميد بن ابی زينب، يحيى بن سعيد الانصاری، هشام بن عروه، ابراهيم بن طهمان، شريك بن ابی نمر او علاء بن عبدالرحمن رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت کړې دې. اوددوی نه عبدالله بن نافع الصائغ، زياد بن يونس،سعيدبن ابی مريم،عبدالعزيز بن عبدالله الأويسی،عبيد بن ميمون،خالدبن مخلد، اسحاق بن محمدالفراری اومعتمر بن سليمان التيمی رحمهم الله وغيره دحديث روايت کونکی دی.[3]

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائی:**ثقة**[4]علی بن المدينی رحمه الله فرمائی:**معروف.**[5]امام نسائی رحمه الله فرمائی:**صالح.**[6]نور امام نسائی رحمه الله فرمائی:**مستقيم الحديث.**[7] ابن حبان رحمه الله د هغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[1] امام عجلی رحمه الله فرمائی : **مدنی ثقة**[2]علامه ذهبی رحمه الله فرمائی دهغوی انتقال ۱۷۰هجری کښې خواؤشا شوې دې.[3]

---

الحديث:۱۹۵۱ وفی الشهادات باب شهادة النساء رقم الحديث: ۲۶۵۸ ومسلم فی العيدين باب صلاة العيدين رقم الحديث: ۲۰۵۳ والنسائی فی العيدين باب استقبال الإمام الناس بوجهه فی الخطبة رقم الحديث: ۱۵۷۷.

[1]) كشف البارى: ۱۰۶/٤.

[2]) تهذيب الكمال: ۵۸۳/۲٤سيرأعلام النبلاء: ۳۲۲/۷تهذيب التهذيب: ۹٤/۹الجرح والتعديل: ۲۹٦/۷.

[3]) تلامذه ومشائخ دَ تفصيل دپاره اوګورئی تهذيب الكمال: ۵۸۳/۲٤.

[4]) تهذيب الكمال: ۵۸۳/۲٤سيرأعلام النبلاء: ۳۲۲/۷تهذيب التهذيب: ۹٤/۹الجرح والتعديل: ۲۹٦/۷.

[5]) تهذيب الكمال: ۵۸۵/۲٤ تهذيب التهذيب: ۹۵/۹الجرح والتعديل: ۲۹٦/۷.

[6]) تهذيب الكمال: ۵۸۵/۲٤ تهذيب التهذيب: ۹۵/۹.

[7]) تهذيب التهذيب: ۹۵/۹.

**زيدبن أسلم**: دا ابواسامه يا ابوعبدالله زيد بن اسلم قرشي دوی مدنی رحمه الله دي. ددوی حالات كتاب الايمان باب كفران العشير الخ لاندې تیر شوی دی. (۴)

**عياض بن عبدالله**: داعياض بن عبدالله بن سعد بن ابی سرح العامری القرشي المکی رحمه الله دي. (۵)

دوی د حضرت عمر، ابوهريره، ابوسعيد اوحضرت جابر رضی الله عنهم نه حديث روايت کړی. اوددوی نه زيد بن اسلم، محمدبن عجلان، سعيدالمقبری، بکيربن الاشج، داؤد بن قيس الفراء، حارث بن عبدالرحمن بن ابی زباب، اسماعيل بن اميه، سعيد بن ابی هلال اوعبدالله بن عبدالله بن عثمان بن حکيم أبن حزام الاسدی رحمهم الله وغيره حديث روايت کوی. (۶)

امام يحيی بن معين رحمه الله فرمائی: ثقة. (۷)امام نسائی رحمه الله فرمائی: ثقة.(۸). ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.(۹)

ابن يونس رحمه الله فرمائي چه دعياض بن عبدالله د پيدائش ځائی مکه ده او هم په مکه کښې ۱۱۰هجری کښې وفات شوې.(۱۰)

**أبوسعيد الخدري**: داصحابی رسول ﷺ سعد بن مالك بن سنان ابوسعيدخدری رضی الله عنه دي. ددوی حالات كتاب الايمان باب من الدين الفرارمن الفتن لاندې تيرشوی دی. (۱۱)

## شرح حديث

**قوله:: في أضحى أوفي فطر**: حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينی رحمه الله وغيره فرمائی چه دا شك د يوراوی د طرف نه دي.(۱۲) خوعلامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه مذکوره شك دحضرت ابوسعيد خدری رضی الله عنه د طرف نه دي.(۱۳) ددې په جواب کښې علامه عينی رحمه الله فرمائی چه په دې باره کښې هيڅ تعيين نشته. په دې وجه په يقينی توګه سره نه شی وئيلې کيدې چه دا شك د چا دطرف نه دي.(۱۴)

---

(۱) ۲/۷ ٤۰دارالفکر.

(۲) تهذيب التهذيب: ۹/۹۵.

(۳) سيرأعلام النبلاء: ۳۲۲/۷.

(۴) كشف الباري: ۲۰۳/۲.

(۵) تهذيب الكمال: ۵۶۷/۲۲ تهذيب التهذيب: ۲۰۰/۸الجرح والتعديل: ۵۳۸/۶رقم الترجمة: ۱۱۵۳٤.

(۶) تلامذه ومشائخ د تفصيل دپاره اوګورلی تهذيب الكمال: ۵۶۷/۲۲.

(۷) تهذيب الكمال: ۵۶۷/۲۲ تهذيب التهذيب:۲۰۱/۸الجرح والتعديل: ۵۳۸/۶.

(۸) حواله بالا

(۹) ۲۶٤/۵.

(۱۰) تهذيب التهذيب: ۲۰۱/۸تقريب التهذيب: ۵۳۸.

(۱۱) كشف الباري: ۸۲/۲

(۱۲) عمدة القاري: ۲۷۰/۳فتح الباري: ۵۳٤/۱.

(۱۳) شرح الكرماني: ۱۶۹/۳.

(۱۴) عمدة القاري: ۲۷۰/۳.

لفظ "أضحى" دهمزه فتحه او ضاد په سکون سره مستعمل کيږي.[١] علامه جوهري رحمه الله ليکلي دي "الأضحية" هغه چيلئي ته وائي کومه چه د لوني اختر په ورځ ذبح کولې شي. اوامام اصمعي رحمه الله په دې کښې څلور لغات ذکرکړي دي. ① إضحية: دهمزه کسره سره. ② أضحية: د همزه ضمه سره. ③ ضحية: د ضاد فتحه سره. ④ أضاحاة.[٢] د إضحية او أضحية جمع أضاحي راځي. د ضحية جمع ضحايا اود أضحاة جمع أضحى راځي. أضحى مذکر اومؤنث دواړه شان استعماليږي.[٣] بيا يوم الأضحى ته يوم الأضحى هم په دې وجه وائي چه د قربانئي عمل ضحى يعني ساختي (دورځ راختو) وخت وي.[٤]

**قوله: فمر على النساء:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله دلته دا روايت په اختصارسره ذکرکړې دې او کتاب الزکاة کښې مکمل ذکرکړې دې. هلته د روايت الفاظ څه داسې دي: «إلى المصلى، فوعظ الناس وأمرهم بالصدقة، فقال: أيها الناس! تصدقوا، فمر على النساء» اوددې نه وړاندې کتاب العلم کښې هم دغه حديث د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه په دې معنى کښې تيرشوې دې چه د حضورپاك نه ښځو وعده اخستې وه چه تاسو ﷺ په خاص توګه ښځوته وعظ اونصيحت اوکړئي نودا وعده ئې د قربانئي داختر په ورځ پوره کړه.[٥]

**قوله: يامعشر النساء:** دليث رحمه الله نه نقل دی چه معشر هرهغه ډلې ته وائي د کومې احوال اومعاملات چه يوشان وي که هغه د سړو وی اوکه د ښځو وی يا ددواړو جماعت وی يا صرف د سړو يا صرف د ښځو جماعت وی. اوثعلب رحمه الله نه نقل دی چه د معشر اطلاق صرف د سړو په جماعت باندې کيږي.[٦] مګر چونکه په مذکوره حديث کښې لفظ معشر اطلاق د ښځودپاره شوې دې په دې وجه د ثعلب رحمه الله تحقيق ناقابل قبول دې.[٧]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه کيدې شي د ثعلب رحمه الله مراد داوی چه په حالت د اطلاق کښې لفظ معشر اطلاق سړو سره خاص کيږي او په حالت دتقييد کښې ددې لفظ اطلاق په ښځو باندې هم کيدې شي لکه چه دلته روايت کښې معشرالنساء وئيلې شوې.[٨] معشر جمع د معاشر راځي.[٩]

**قوله: أريتكن:** أريت دهمزه ضمه او راء په کسره سره فعل مجهول په معنى أخبرت دې. اودلته متعدي به سه مفعول دې. مفعول اول تاء ده کوم چه ضمير مرفوع متصل دپاره د واحد متکلم دې اومفعول ثاني کنّ دې اومفعول ثالث أكثر أهل النار دې.[١٠]

---

[١] إرشادالساري: ٥٤٢/١.
[٢] معجم الصحاح: ٦١٥
[٣] معجم الصحاح: ٦١٦
[٤] عمدة القاري: ٢٧٠/٣.
[٥] فتح الباري: ٥٣٤/١.
[٦] فتح الباري: ٥٣٤/١عمدة القاري: ٢٧٠/٣ إرشاد الساري: ٥٤٢/١.
[٧] حواله بالا
[٨] فتح الباري: ٥٣٥/١ إرشاد الساري: ٥٤٢/١.
[٩] عمدة القاري: ٢٧٠/٣.
[١٠] عمدة القاري:٢٧١/٣.

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا رؤیت د معراج په شپه «لیلة الإسراء» کښې شوې وو او صلاة الکسوف کښې دامضمون د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه داسې نقل دې: «أريت النار، فلم أر منظرا كاليوم قط أفظع ورأيت أكثر أهلها النساء» یعنی ماته دوزخ اوخودلې شو نو ما د نن ورځې په شان خطرناك منظر اول چرته نه دې لیدلې اوما اوکتل چه په دې کښې اکثر ښځې دی.[1] حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه «صلاة الكسوف» کښې ذکرشوې حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما نه معلومیږی چه دا رؤیت د کسوف د مونځ په حالت کښې شوې.[2]

په دې دوارو اقوالوکښې تضاد نشته خکه چه ممکن دی په دوارو موقعوباندې حضورپاك داسې لیدلې وی.[3]

**په جهنم کښې دښځودکثرت سره متعلق یواشکال:** دلته ددې روایت نه معلومیږی چه په جهنم کښې به د ښځو کثرت وی خود حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه: «إن أدنى أهل الجنة منزلة من له زوجتان من الدنيا» یعنی د ټولو نه دکمې درجې جنتی هغه دې چاته چه به په جنت کښې د انسانانونه دوه بیبیانې ملاویږی. ددې روایت مقتضٰی خو داده چه ښځې به دریوکښې دوه حصې وی یعنی په جنت کښې به د ښځو شمیر د سړو په نسبت زیات وی.[4]

**د اشکال جواب:** علامه عینی رحمه الله ددې اشکال په جواب کښې فرمائیلی دی چه دا کثرت دوقوع به د شفاعت نه پس وی.[5] مطلب داچه سره ددې چه په جهنم کښې به د ګناهګارو ښځو شمیرد سړو په نسبت زیات وی مګر څه به د سزا تیرولونه پس کله د شفاعت په وجه د دوزخ نه راوتل اوجنت ته د داخلیدلو سلسله وی نوبیا به په جنت کښې د ښځو شمیر زیات شی په دې وجه به دیوجنتی په نکاح کښې دوه دوه راځی.بعض حضراتو دا جواب ورکړې دې چه «رأيت أكثر أهلها النساء» په تخویف اوتغلیظ باندې مبنی دې مګر دا جواب صحیح نه دې ځکه چه د حضوراکرم خبر ورکول د رؤیت نه پس دې. بیا دا تخویف یا تغلیظ ګرځول څنګه صحیح کیدې شی .....؟[6]امام نووی رحمه الله فرمائی چه د حضورپاك فرمان «رأيت أكثر أهلها النساء»

کښې ددې خبرې دلیل دې چه نن هم څه خلق دجهنم په عذاب کښې اخته دی. «أعاذنا الله منه»[7]

**قوله: وبم يارسول الله:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه واؤ استینافیه دې اوباء تعلیلیه دې اومیم په اصل کښې ما استفهامیه ده کوم چه تخفیفاً حذف کړې شوې دې.[8]

---

[1] عمدة القاري: ۲۷۱/۳رواه البخاري في الكسوف في باب صلاة الكسوف جماعة رقم الحديث: ۱۰۵۲.
[2] فتح الباري: ۵۳۵/۱ إرشاد الساري: ۵٤۲/۱.
[3] أنوارالباري: ۳۹٤/۱۰.
[4] عمدة القاري:۲۷۱/۳، ۱۲۱/۷دارالكتب العلمية أوجزالمسالك: ۸٤/٤.
[5] حواله بالا.
[6] حواله بالا.
[7] أوجزالمسالك: ۸۴/۴.
[8] فتح الباري: ۵۳۵/۱.

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه واؤ عاطفه دې اومعطوف علیه مقدردې. تقدیری عبارت داسې دې: ((ما ذنبنا وبم)) او باء سببیه ده او میم په اصل کښې ما استفهامیه دې او حالت جرکښې ما استفهامیه الف غورزول اوفتحه باقی ساتل واجب وی دې دپاره چه فتحه، په الف محذوفه باندې دلالت اوکړی لکه چه إلام او علام ..... وغیره کښې هم داسې شوی دی. اود الف د حذف کولوعلت دادې چه استفهام او خبر په مینځ کښې فرق اوکړې شی. هم دغه وجه ده چه په آیت مبارك ﴿فِيمَ أَنتَ مِن ذِكْرَاهَا﴾ او ﴿فَنَاظِرَةٌ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُونَ﴾ کښې دما استفهامیه الف محذوف دې.[1] بل د حضرت عکرمه رحمه الله اوعیسی رحمه الله په قراءت کښې دی ﴿عَمَّا يَتَسَاءَلُونَ﴾ یعنی دما استفهامیه الف حذف نه کړې شو نوعلامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا نادر دی.[2]

## قوله: تكثرن اللعن

**د لعنت حکم**: د لعنت حکم د بددعا اود الله تعالی د رحمت نه لرې کول دی اود لعنت په حرمت باندې د علماؤ اتفاق دې ځکه چه یومسلمان یا کافر د چا د خاتمې چه په قطعی او یقینی توګه باندې علم نشته، دالله تعالی د رحمت نه لرې کول ناجائزدی. البته د یوکس په کفرباندې مړه کیدل په دلیل قطعی سره ثابت وی یا دا ثابت وی چه هم په کفر باندې به مړکیږی نو په داسې صورت کښې لعنت کول جائزدی.[3]

دغه شان بلاتعیین کسانوباندې د یوخاص صفت د وجې نه لعنت کول هم جائز دی لکه دالله تعالی لعنت دې وی په ظالمانو باندې فاسقانوباندې منافقانو باندې او په کافرانو باندې وغیره وغیره.[4]

**قوله: وتكفرن العشير**: د کفرمعنی پټول اود یونعمت ناشکری اوبې قدری کول دی. اود ښځې د ناشکرئی نه مراد دلته دادې چه هغه د خاوند د احساناتو ناشکری کوی اوهغه چه ورته څه هم راوړی هغه کم شمیری.[5]

العشیرد فعیل په وزن دې اودې اطلاق په خاوند، ملګری مجلس والاا و دوست ټولو باندې کیږی.[6] البته علامه عینی رحمه الله علامه باجی رحمه الله اوعلامه کرمانی رحمه الله وغیره فرمائی چه دلته د عشیر نه مراد خاوند دې او خاوند ته عشیر ځکه وائی چه هغه د ښځې سره اوښځه دهغه سره په یوځائی ژوند تیره وی.[7] علامه باجی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله وغیره دویم احتمال هم ذکرکړې دې اوهغه دا چه عشیر نه مراد عام وی که هغه خاوند وی اوکه بل څوك.[8]

---

[1] عمدة القاری: ۲۷۱/۳إرشادالساری: ۵٤۲/۱.
[2] حواله بالا.
[3] فتح الباری: ۵۳۶/۱عمدة القاری:۲۷۳/۳شرح الکرمانی:۱۶۹/۳ إرشادالساری:۵٤۳/۱.
[4] فتح الباری: ۱/۵۳۶عمدة القاری:۲۷۳/۳شرح الکرمانی:۱۶۹/۳ إرشادالساری:۵٤۳/۱.
[5] فتح الباری: ۵۳۵/۱عمدة القاری:۲۷۰/۳شرح الکرمانی:۱۶۹/۳ إرشادالساری:۵٤۳/۱.
[6] عمدة القاری: ۲۷۰/۳أوجزالمسالک: ۸۶/٤
[7] عمدة القاری:۲۷۰/۳شرح الکرمانی:۱۶۹/۳ المنتقی شرح المؤطا: ۳۲۹/۱.
[8] فتح الباری: ۵۳۵/۱المنتقی شرح المؤطا: ۳۲۹/۱.

علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دحضورپاك جواب په اسلوب حکیم باندې مبنی دې هغه داسې چه د دغه ښځو دسوال جواب «تکثرن اللعن وتکفرن العشیر» باندې مکمل شوې وو. خوددې نه باوجود حضور پاك ﷺ د دغه ښځو مذمت دعقل اودین په اعتبارناقص کیدوسره داسې اوکړو چه دې سره د دغه ښځو یوبل خراب صفت معلوم شو اوهغه خراب صفت دادې چه دا ښځې باوجود د ناقص العقل والدین کیدو کامل العقل او پوخ دماغو والاسړې خپل تابعدار او راګیره وی. او په جواب کښې دا شان طریقه اختیارولو ته صنعت استنباع وائی.[1]
لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله فیه نظر ونیلوسره دا توجیح مرجوح اوګرځوله اوبیائی خپله رائې ذکرکړه چه په ظاهره دا خبره هم د ښځو «أکثرأهل النار» کیدود اسباب نه خودلې شوې ده ځکه چه کله هغوی یوهوښیار دانا اوعقل مند سړې بیکاره کوی تردې چه نامناسب اوناجائز طریقې اختیارولوباندې مجبورشی نوهغه هم د ده د ناجائزکار په ګناه کښې شریکه شوه بلکه هغه پخپله د ګناه سبب کیدو د وجې نه ددغه سړې نه هم د ګناه په بوج کښې راګیره شوه اودغه شان په اورکښې د داخلیدلو نوره هم زیاته حقداره شوه.[2]
دعلامه عینی رحمه الله رائې داده په دې کښې د ښځو دمذمت نه زیات د حیرانتیا د اظهار اړخ ډیر ښکاره دې.[3]
په دې موقع باندې علامه نووی رحمه الله فرمائی چه په مذکوره روایت کښې د ښځوکثرت د لعن او خاوند د نافرمانی سبب د هغوی دپاره په دوزخ کښې د داخلیدلو وعید کیدل ددې خبرې دلیل دې چه دا دواړه کبیره ګناهونه دی.[4]

**قوله: من ناقصات**: من ناقصات صفت دې اوددې موصوف محذوف دې اوتقدیری عبارت داسې دې «مارأیت أحدا من ناقصات.....الخ».[5]

**قوله: أذهب: أي: أشد إذهابا**: داد باب افعال «الإذهاب» نه صیغه د تفضیل ده او دا د امام سیبویه رحمه الله د مذهب موافق دې ځکه چه هم هغه ثلاثی مزید فیه نه داسم تفضیل په بنیادباندې جائز ګرځوی خودقیاس تقاضاده چه دلته «أشدذهابا» وی.[6]

**قوله: للب الرجل الحازم من إحداکن**: اللبّ: د لبّ معنی مغز ده یعنی خالص عقل په کوم کښې چه د څه قسم دعیب یا نقص څه وجودنه وی. داسې لبّ (مغز) عقل سره خاص دې لهذا هرلبّ (مغز) عقل دې لیکن هرعقل لبّ (مغز) نه دې.[7]

---

[1]) شرح الطیبی کتاب الإیمان: ۱۴۵/۱ رقم الحدیث:۱۹.
[2]) فتح الباری: ۵۳۵/۱.
[3]) عمدة القاری: ۲۷۲/۳.
[4]) فتح الباری: ۵۳۶/۱ عمدة القاری:۲۷۳/۳.
[5]) عمدة القاری:۲۷۱/۳.
[6]) فتح الباری: ۵۳۵/۱ عمدة القاری:۲۷۱/۳ شرح الکرمانی: ۱۶۹/۳ إرشاد الساری: ۵۴۳/۱.
[7]) شرح الکرمانی:۱۶۹/۳ إرشادالساری:۵۴۳/۱ فتح الباری: ۵۳۵/۱.

**قوله: :الحازم:** حازم زیرك او پوخ كار سړی ته وائی.[1] او دلته د ښځو ناقصات العقل والدين كيدو سره ددې خبرې ذكر كول چه هغوى سره دعقل او دين كښې د كموالى د وجې نه يو پوخ كار سړې خپل تابعدارجوړه وى دا په توګه د مبالغه دې اوهغه داسې چه د يوپوخ كار سړى داحال دې نويبابه ناپخته كار سړى څه وايئى.....![2]

**قوله: :ومانقصان ديننا وعقلنا:** علامه عينى رحمه الله فرمائى چونكه دې ښځو ته د خپل ناقصات العقل والدين كيدو وجه په پوهه كښې نه راتله په دې وجه ئى دحضورپاك نه پوښتنه اوكړه چه «وما نقصان ديننا وعقلنا يارسول الله؟»![3]

حافظ ابن حجر فرمائى چه ددې ښځو داسوال كول هم دهغوى په ناقصات كيدوباندې دلالت كوى ځكه چه دغه پورته ذكرشوى دريواړه خاميانې (اكثارلعن، كفران عشير، اذهاب لب رجل) منلو باوجود هغوى ته خپل ناقصات كيدل په پوهه كښې رانغللې شو او پوښتنه ئى اوكړه «ومانقصان ديننا وعقلنا؟»![4]

په دې باندې نقد كولوسره علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا استشكال ګرځول صحيح نه دى بلكه په حقيقت كښې علت د نقصان د پتوالى په وجه دغه ښځو پوښتنه كړې وه اودا څنګه ممكن دى چه دا استشكال اوګرځولې شى. ځكه چه پخپله حضورپاك ددغه خفاء دختمولودپاره داسې ارشاد فرمائى: «أليس شهادة المرأة الخ»![5]

**قوله: :أليس شهادة المرأة:** د رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب د ډير شفقت نرمئى او خوند نه ډك دې په كوم كښې چه حضورپاك ښځو سره دهغوى د پوهې مطابق كلام اوفرمائيلو. ځكه چه د حضورپاك فرمان دې چه خلقو سره دهغوى د عقل په اندازه خبرې كونى.![6]

شراح فرمائى چه: «أليس شهادة المرأة بنصف شهادة الرجل» كښې دالله تعالى ارشاد ﴿فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى﴾ طرف ته اشاره ده. په كوم كښې چه دى د دوو ښځو ګواهى د يوسړى د ګواهئى برابره ده اوالله تعالى ددې وجه داخودلې چه يوې نه هيره شى نوبله به ئى وريادوى. ددې نه معلومه شوه چه په دوى كښې د هيرې ماده زياته ده چه يوقسم هم د عقل نقصان دې.![7]

بل حضورپاك دنقص دبيانولوپه ځانى (أليس شهادة المرأتين مثل شهادة الرجل) او (أليس شهادة المرأة مثل نصف شهادة الرجل) تعبيرځكه استعمال كړوچه په دې كښې په نقصان عقل باندې صريح دلالت دې خو په دويم

---

[1]) حواله بالا.

[2]) فتح البارى: ۵۳۵/۱ إرشادالسارى: ۵۴۳/۱.

[3]) عمدة القارى: ۲۷۱/۳.

[4]) فتح البارى: ۵۳۵/۱.

[5]) عمدة القارى: ۲۷۱/۳.

[6]) فتح البارى: ۵۳۵/۱ عمدة القارى: ۲۷۱/۳ إرشادالسارى: ۵۴۳/۱.

[7]) فتح البارى: ۵۳۵/۱ إرشاد السارى: ۵۴۳/۱.

تعبيركښې په نقصان باندې ضمناً دلالت دې.[١] ابن التين رحمه الله فرمائي چه بعض حضراتو عقل په دیت باندې محمول کړې دې مګر داخبره بعیدده اوسیاق کلام هم ددې نفی کوی.[٢] علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په ظاهره ددې حدیث نه معلومیږی چه د دنیا ټولې ښځې دعقل اودین په لحاظ سره ناقص وی حالانکه د نورو احادیثونه د ښځو د کمال ثبوت هم ملاویږی. چنانچه حضورپاك فرمائی «کمل من الرجال کثیر، ولم یکمل من النساء إلا مریم بنت عمران، وآسیة بنت مزاحم» یعنی په سړو کښې خو ډیرخلق د کمال دی مګر په ښځو کښې صرف دوه کامل دی حضرت مریم بنت عمران او حضرت آسیه بنت مزاحم. او دترمذی شریف په روایت کښې د څلورو ذکردې کوم چه حضرت انس رضي الله عنه روایت کړې دې چه حضورپاك فرمائی: «حسبك من نساء العالمین: مریم بنت عمران، وخدیجة بنت خویلد، وفاطمة بنت محمد، وآسیة امرأة فرعون»[٣]
بعض حضراتوددې جواب دا ورکړې دې چه دځه کسانو وجې نه په مذکوره کلیه باندې اثر نه پریوځی ځکه چه هغه ډیر کم اونادر دی.[٤] دویم بهترجواب دادې که د یوې خبرې حکم په چرته په ټول قسم باندې هم راشی نودا ضروری نه دی چه هغه حکم به دهغې په هریو کس باندې لازم وی او هیڅوك به نشی بچ کیدې.[٥]

**قوله:: فذلك**:: کاف د خطاب د کسره سره اودا خطاب هغه ښځې ته دې د چا په ذمه چه حضورپاك سره خبرې کول وو.[٦]
علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی په دې باندې اشکال کیږی چه خطاب خو ډیرو ښځوته وو بیائی فذلك ولې اوفرمائیلو دلته فذلکن کیدل پکاردی؟ نوجواب دادې چه ذلك مذکر مخاطب کښې داخبره ده چه ددې په استعمال سره د ذلکم نه استغناء حاصلیږی لکه چه د الله تعالی ارشاد دې ﴿وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ مِنْكُمْ﴾ هم دغه شان په مؤنث کښې هم ده چه دمؤنث واحد په استعمال سره د جمع مؤنث مخاطب نه استغناء حاصلیږی. خود بعض نحویانونه دا هم نقل دی چه کاف مکسوره مفرده دهرمؤنث د خطاب د پاره کافی دې. دویم جواب دادې چه خطاب لاعفلی التعیین دې یوې ښځې سره هم خاص نه دې دې دپاره چه دې ټولو ښځو ته علی سبیل البدلیة شامل وی په دې معنی چه د دوی ناقص العقل کیدل دومره اندازه کښې واضح دی چه داخطاب بعض سره خاص کول او بعض سره غیرمختص کولې نشی.[٧] بل د کاف فتحه سره هم جائز دې په دې بناء باندې خطاب عام دې.[٨]
**ددین اوعقل نقصان په توګه د ملامتیانه دې**: شراح حدیث لیکلی دی چه د ښځو په حواله سره ددین نقصان اودعقل ذکر په توګه دملامتیانه دې بلکه ددې ذکرخود تنبیه په غرض دې دې دپاره چه ددغه کم

---

[١] عمدة القاری:٢٧٢/٣.
[٢] فتح الباری: ٥٣٥/١.
[٣] عمدة القاری: ٢٧٢/۴ إرشادالساری: ٥٤٣/١صحیح البخاری کتاب أحادیث الأنبیاء رقم الحدیث: ٣٤٣٣وجامع الترمذی، کتاب المناقب، باب فضل خدیجة رقم الحدیث: ٣٨٧٨.
[٤] عمدة القاری:٢٧٢/٣.
[٥] عمدة القاری:٢٧٢/٣إرشادالساری: ٥٤٣/١.
[٦] فتح الباری: ٥٣٥/١عمدة القاری:٢٧٢/٣إرشادالساری: ٥٤٣/١.
[٧] إرشادالساری: ٥٤٣/١.
[٨] فتح الباری: ٥٣٥/١عمدة القاری:٢٧٢/٣إرشادالساری: ٥٤٣/١ شرح الکرمانی: ١٧٠/٣.

عقل والو د فتنې د اخته کیدو نه انسان محفوظ وی. هم دغه وجه ده چه په مذکوره روایت کښې د عذاب ترتب په نقص دین اوعقل باندې اونه کړې شو بلکه کفران عشیر او اکثار لعن غوندې گناهونوباندې اوکړې شو.(۱)

علامه نووی رحمه الله نور فرمائی چه د دین نقصان هم د گناه په کارونوکښې راګیرنه دې لیکن کله خو نقص دین په داسې توګه شی چه په هغې سره ګناه لازمی راځی. لکه بغیرد عذر نه مونځ پریخودل. او کله په داسې توګه کیږی چه په هغې سره ګناه نه لازمیږی لکه د یو عذر د وجې نه جمعه پریخودل او کله داسې هم کیږی چه انسان د هغه فعل د کولو مکلف کیږی لکه د حائضه دپاره چه دمونځ پریخودل او روژه نه ساتلو حکم.(۲)

**ایا حائضه به سره د ترک صلاة وصوم د ثواب مستحق وی؟**: بیا دلته یو سوال داهم پیداکیږی چه آیا په داسې صورت کښې کله چه حائضه د مونځ ترک کولو او د روژې پریخودلو پابند ده د ثواب مستحق به وی که نه؟ هغې ته به د دغه مونځونو او روژ ثواب ملاویږی که نه؟ او شریعت خودهغې د ذمې نه د دغه مونځونو قضاهم ساقط کړې ده. لکه څنګه چه بیمارته دبیمارئی په حالت کښې دهغه نفلونو ثواب ملاویږی کوم چه هغه د پابندئی سره په حالت د صحت کښې اداکول. د کوم د اداکولونه چه د بیمارئی په وجه عاجز شوې دې؟ نو علامه نووی رحمه الله فرمائی چه په ظاهره هم دغه معلومیږی چه ثواب به ورته نه ملاویږی او دواړه (حائضه اومریض) کښې وجه د فرق داده چه د مریض نوافل اداکول په نیت د همیشه والی وو اوهغه ددې د اداکولو اهل هم دې خو په حائضه کښې داسې خبره نشته دې ځکه چه دهغې نیت د ایام حیض سره متعلق د مونځ روژې پریخودلو وی اوبیا حائضه اهل هم نه ده، ځکه چه په هغې باندې مونځ کول حرام دی.(۳) مګر علامه عینی رحمه الله فرمائی لیکن دا کیدې شی چه د ترک حرام په وجه هغه د ثواب مستحق اوګرځی.(۴)

**قوله: لم تصل ولم تصم**: حافظ ابن حجرفرمائی چه په دې جمله کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه د شریعت د طرف نه د حائضه دپاره د مونځ روژې د ممانعت حکم ددغه مجلس نه وړاندې واقع شوې وو.(۵) باقی د حائضه دپاره د ترک صلاة و صوم حکم ددې دعلت اوعدم قضا صلاة اوقضا صوم په تعلیل کښې د فقهاؤ اختلاف، دا ټول بحثونه په تفصیل سره د شروع په مباحث کښې تیر شوی دی.

**استنباط احکام**: ① ددې روایت نه معلومیږی چه دامام د قوم سره د اختر د مونځ دپاره کولاؤ میدان کښې د عیدګاه طرف ته وتل مستحب دی.(۶)

② په دې کښې د صدقه او خیرات کولو د رغبت ورکولوحکم دې. خاص کر د اخترونو په موقع باندې ددې حکم اهمیت ځکه دې چه غنیان اوفقیران یوشان شی. فقیران یتیمان مسکینان سړی او ښځې د امیرانو او غنیانو خوراک لباس فاخره وغیره ته کتلوسره افسوس او ارمان کوی نوکه چرې په دغه موقع باندې دهغوی امداداوکړې شی نوهغوی سره به هم ښکلې لباس اود خوراک څښاک سامان وی.

---

(۱) فتح الباری: ۵۳۶/۱ إرشادالساری: ۵۴۳/۱.

(۲) فتح الباری: ۵۳۶/۱عمدة القاری:۲۷۲/۳إرشادالساری:۵۴۴/۱ شرح الکرمانی: ۱۷۰/۳.

(۳) فتح الباری: ۵۳۶/۱عمدة القاری:۲۷۲/۳إرشادالساری: ۵۴۴/۱ شرح الکرمانی: ۱۷۰/۳.

(۴) عمدة القاری:۲۷۲/۳.

(۵) فتح الباری: ۵۳۵/۱.

(۶) فتح الباری: ۵۳۵/۱عمدة القاری:۲۷۲/۳ شرح الکرمانی: ۱۷۰/۳.

او بيا حضورپاك په خاص توگه باندې صرف ښځو ته په دې حكم كښې خطاب د دې دپاره كړې دې چه په هغوى كښې په عام توگه د بخل صفت زيات وى اود صدقې د اجر او ثواب علم او استحضار ورته كم وى.(١)

④ داختر په ورځو كښې عيدگاه ته د ښځو د تللو هم جواز معلوم شو.(٢) دې د پاره چه هغوى هم په مونځ اودعاكښې شامل شى. ليكن دامت علماؤ فيصله كړې ده چه دا جوازد حضورپاك د زمانې مباركې پورې وو اوس خوانانو ښځوله د كورونو نه وتل نه دى پكار. په دې وجه خو حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل كه چرې حضورپاك دغه حالات كتلې وې(٣) كوم چه دحضورپاك د وفات نه پس ښځو پيداكړل نوهغوى به ئې د جماتونو د حاضرئى نه منع كړې وې لكه څنگه چه به بنى اسرائيلو ښځې رامنع كولې.(٤)

علامه عينى رحمه الله چه حضرت عائشه رضي الله عنها دا قول د حضورپاك دوصال نه پس دنيزدې زمانې دې او اوس خو نعوذ بالله حالت ډير زيات خراب شوې دې په دې وجه د ښځود بهر وتلو جواز هيڅ شان سره نه شى كيدې. خاص كر د ښاريو د ښځودپاره د چا حال چه ټولو ته ښه معلوم دې.(٥)

④ ابن ملقن رحمه الله فرمائى چه يوجماعت د ښځو عيدگاه ته تلل جائز گڼړى او په دوى كښې حضرت ابوبكر، حضرت على، حضرت ابن عمر او نور صحابه كرام رضي الله عنهم دى. او نورو حضراتو دا منع كړې دى په كوم چه عروه، قاسم، يحيى بن سعيدانصارى، امام مالك او امام ابويوسف رحمهم الله دى. د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د دواړو روايت دې او بعض حضراتو د ځوانانو ښځودپاره ممانعت كړې دې اود ماشومانو او بوډې گانو ښځودپاره ئې ممانعت نه دې كړې. د امام مالك رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله هم دغه مذهب دې.(٦)

امام طحاوى رحمه الله فرمائى چه د اسلام په شروع كښې د ښځودپاره د وتلو حكم د دښمنانو په نظركښې تكثير سواد مسلمين په غرض سره وو.(٧) زه دا وايم چه هم دې سره هغه زمانه د امن وه او نن صبا امن ډيركم دې اود مسلمانانوشميرهم ډيرزيات شوې دې. په دې وجه د تكثيرسواد غرض فوت شو.(٨)

او زمونږ د احنافو مذهب هم هغه دې كوم چه صاحب د بدائع علامه كاسانى رحمه الله ذكر كړې دې چه ټولو فقهاؤ په دې امرباندې اتفاق كړې دې چه داخترونو اود جمعو د مونځونو او دنورو مونځونو دپاره د ځوانانو ښځو د وتلو د رخصت اجازت نه وى. لقوله تعالى ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ يعنى په خپلو كورونو كښې كښنئ. بل دا چه دهغوى د كورونو نه وتل به د فتنو او خرابو سبب وى. البته بوډې گانې ښځې د اخترونو د پاره وتلې شى سره ددې چه غوره دهغوى دپاره هم بغيرد څه خلاف نه هم دغه دى چه د يو

---

١) عمدة القارى: ٢٧٢/٣.

٢) فتح البارى: ٥٣٥/١عمدة القارى: ٢٧٢/٣.

٣) قالت: لو أدرك النبى صلى الله عليه وسلم ما أحدث النساء لمنعهن المسجد، كما منعت نساء بنى اسرائيل. رواه الإمام ابخارى فى الأذان، باب انتظار الناس قيام الإمام العالم رقم الحديث: ٨٦٩

٤) عمدة القارى: ٢٧٢/٣التوضيح لابن الملقن: ٥١/٥.

٥) عمدة القارى: ٢٧٢/٣.

٦) التوضيح: ٢٥/٥.

٧) التوضيح: ٢٥/٥.

٨) عمدة القارى: ٢٧٢/٣.

مونځ دپاره دې هم نه اوځي. بیا که څرې اوځي نو په روایت د حسن عن الامام ابی حنیفه رحمه الله داختر مونځ به کوی اود امام ابویوسف رحمه الله د روایت مطابق به مونځ نه کوی بلکه صرف تکثیر سواد مسلمین به کوی اود دعا د شرکت نه به فائده اخلی. د ام عطیه رضي الله عنها نه روایت دې چه حضورپاك به نابالغ جینکئی پیغلې پرده کونکې جینکئی اود حیض والا ښځو ته هم د عیدګاه طرف ته د وتلو هدایت کولو. بیا د حیض والا د عیدګاه نه جدا مګر متصل ځائی کښې جمع کیدلې اودغه شان د برکت نه ډك تقریب اود اختر په اجتماع کښې شرکت کولو اودمسلمانانو په دعاګانوکښې به ورسره وې.(۱) هغه وخت حضورپاك دا هم اوفرمائیل د الله تعالی بندیګانې د جماتونود حاضرئی نه مه منع کوئی.(۲) او سنن ابی داؤد (۳)روایت کښې دی چه هغوی دې په ساده د استعمال په کپړوکښې اوځی او عطر اوخوشبوئی کښې لړې نه اوځی.(۴)

امام نووی رحمه الله فرمائی چه د ځوانې ښځې د پاره په اخترکښې وتل مکروه دی اودغه شان هغه ښځه هم د کومې طرف ته چه د سړو رغبت وی ځکه چه دداسې ښځودپاره بهروتلوسره هغه پخپله هم په فتنوکښې اخته کیدې شی اودهغې د وجې نه سړی هم راګیریدې شی.(۵)

⑤ ددې روایت نه معلومه شوه چه د ښځو د نصیحت او وعظ دپاره د وخت امام یا چه کله هغه موجود نه وی نودهغه نائب جدا وخت ورکولې شی.(۶)

⑥ دنصیحت په موقع سخته لهجه هم اختیارولې شی دې دپاره چه اوریدونکی د خرابو طور طریقو نه اوډ انسانیت د ننګ اوصاف پریږدی.(۷)

⑦ په صدقه کولوسره دالله تعالی عذاب دفع کیږی او په دې سره د ګناهونو کفاره کیږی.(۸)

⑧ دالله تعالی د نعمت نه انکار حرام دې او کفران نعمت مذموم دې.(۹)

⑨ په مومن باندې لعن طعن او ظلم او سختی کول حرام دی اوکه داسې بار بار کوی نود سختې کبیره ګناه مرتکب کیږی به.(۱)

---

[1]) قالت أم عطیة: أمرناأن تخرج، فنخرج الحیض والعواتق.وذوات الخدور. فأما الحیض فیشهدن جماعة المسلمین ودعوتهم ویعتزلن مصلاهم. رواه السنة. فالبخاری فی العیدین باب اعتزال الحیض المصلی تحت رقم الحدیث:۹۸۱ ومسلم فی صلاة العیدین باب ذکرإباحة خروج النساء فی العیدین إلی المصلی تحت رقم الحدیث: ۲۰۵۶ والترمذی فی أبواب العیدین باب فی خروج النساء فی العیدین تحت رقم الحدیث: ۵۳۹ وأبوداؤد فی الصلاة باب خروج النساء فی العید تحت رقم الحدیث: ۱۱۳۶، والنسائی فی صلاة العیدین باب اعتزال الحیض مصلی الناس تحت رقم الحدیث: ۱۵۶۰وابن ماجة فی أبواب إقامة الصلوات ولاسنة فیها، باب ماجاء فی خروج النساء فی العیدین تحت رقم الحدیث: ۱۳۰۸.

[2]) صحیح البخاری رقم الحدیث: ۹۰۰ صحیح مسلم رقم: ۹۹۰ سنن أبی داؤد رقم ۵۶۶.

[3]) سنن أبی داؤد کتاب الصلاة والسنة فیها، باب ماجاء فی خروج النساء إلی المسجد رقم الحدیث:۵۶۵.

[4]) بدائع الصنائع: ۲۳۹-۲۳۷عمدة القاری:۲۷۲/۳.

[5]) عمدةالقاری:۲۷۳/۳.

[6]) عمدة القاری: ۲۷۳/۳ فتح الباری: ۵۳۵/۱شرح الکرمانی: ۱۷۰/۳.

[7]) فتح الباری: ۵۳۶/۱عمدة القاری: ۲۷۳/۳.

[8]) حواله بالا.

[9]) حواله بالا.

⑩ دکفر اطلاق په حدیث باب کښې په ګناهونو باندې خکه کړې شوې دې (حالانکه ددې مرتکب د اسلام نه نه خارج کیږی) دې دپاره چه ددې امورو نه احتراز اوغفلت نه وی اوداسې کونکې به سخت بد ګڼړلې شی. بل دا هم معلوم شو چه دکفر اطلاق په غیر کفر باندې کیدې شی.([2])

⑪ ددې روایت نه معلومه شوه چه شاګرد د خپل استاذ نه د یوسوال په ذریعه یوه خبره په ښه شان سره زده کولې شی.([3])

⑫ معلومه شوه چه دشهادت لوئې مدار په عقل باندې دې په دې وجه د ښځې شهادت دسړی د شهادت په نیمه ګرځولې شوې دې.([4])

⑬ د فقیرانو مسکینانو دپاره سفارش کول مستحب دی اودهغوی دپاره د نورو نه سوال هم کولې شی. لهذا کومو حضراتو چه دنورو خلقو دپاره سوال کول مکروه ګرځولی دی هغه صحیح نه دی.([5])

⑭ د حدیث باب نه د امت دپاره د حضورپاك عظیم اخلاق او غیرمعمولی رحمت ورأفت ثبوت ملاؤ شو د عذاب نه خلاصې ورکول او رحمت ته د نیزدې کولو په فکر کښې به اوسیدلو. علیه الف الف تحیة وسلام.([6])

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت د حدیث د ټکړې ((ولم تصم)) کښې دې او هغه دا چې چه دواړو کښې د حائضه دپاره دعدم جواز صوم ذکر دې.([7])

## ٧- باب: تَقْضِى الْحَائِضُ الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا إِلَّا الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ.

**ماقبل سره ربط:** په دې باب کښې دا مسئله بیان کړې شوې ده که په یوه ښځه باندې د احرام تړلونه پس حیض راغلو نوبیابه هم هغه سواد طواف د بیت الله نه ټول مناسك حج اداکوی.([8]) هم په دې سره په دواړو ابوابو کښې مناسبت هم معلومیږی چه باب سابق کښې د حائضه د ترك صوم ذکر وو او په دې باب کښې دترك طواف ذکر دې او دواړه (صوم او طواف) هم د فرائض نه دی.([9])

**قوله: المناسك:** په احادیثو کښې دا درې الفاظ مَنَاسِك، نُسُك او نَسِيكَة په کثرت سره واردشوی دی. مَنَاسِك د مَنْسِك جمع ده دا لفظ د سین فتحه اوکسره دواړو سره استعمالیږی اوددې اطلاق مصدر میمی، ظرف زمان او ظرف مکان درې واړو باندې کیږی.([10]) دمصدر میمی کیدو په صورت کښې

---

[1] عمدة القاری: ٢٧٣/٣.
[2] حواله بالا
[3] شرح الکرمانی: ١٧٠/٣عمدة القاری: ٢٧٣/٣.
[4] عمدة القاری: ٢٧٣/٣شرح الکرمانی: ١٧٠/٣.
[5] حواله بالا.
[6] فتح الباری: ٥٣٦/١عمدة القاری: ٢٧٣/٣.
[7] عمدة القاری:٢٧٠/٣.
[8] عمدة القاری:٢٧٣/٣.
[9] عمدة القاری:٢٧٣/٣.
[10] النهاية لابن الأثير: ٧٣٦/٢عمدة القاری: ٢٧٣/٣.

منسك معنى دعبادت كولو اوظرف زمان كيدو په صورت كښې د عبادت وختونه او ظرف مكان كيدو په صورت كښې د عبادت د ځائى به وى. په دې وجه د حج افعال ته مناسك وائى چه هغه ټول افعال په عبادت كښې داخل دى. بل لفظ مَنْسِك د مذبح او قربان ګاه په معنى كښې هم استعماليږى. چنانچه نَسَكَ، يَنْسُكُ، نَسْكاً معنى ذبح، يذبح راځى.(۱)

**نسيكة:** ددې معنى د ذبيحه ده اوجمع نُسُك راځى.(۲)

**نُسُك او نُسک:** ددې اطلاق په طاعت عبادت او هر هغه كار باندې كيږى چه د الله تعالى د قرب ذريعه جوړشى او ناسك معنى عبادت كونكې د كوم جمع چه نُسَّاكٌ ده.(۳)

**د ترجمة الباب مقصد:**

د ترجمة الباب دمقصد په حواله مختلف اقوال دى:

**دعلامه ابن بطال رحمه الله او علامه كرمانى رحمه الله رائې:** علامه ابن بطال رحمه الله او علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دا پوره باب دهغه حضراتو په مذهب باندې مبنى دې چه د حائضه او جنبى دپاره د قرآن قراءت ته جائز وائى. چه داامام بخارى رحمه الله مذهب هم دغه دې يا هغه د بل چا د مذهب حكايت كرې وى.(۴)

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په دې باب كښې ذكركړې شوى احاديث اوآثار نه د امام بخارى رحمه الله مقصد داخودل دى چه حيض اوجنابت د ټولو عباداتو منافى نه دى بلكه باوجود د حيض اوجنابت په حالت كښې د كيدوسره ذكر اواذكار وغيره لوستل جائزدى. او چونكه دطواف نه علاوه باقى ټول افعال اومناسك د حج هم په دې حالتونوكښې جائز وى.(۵) خو بيافرمائى چه دا امام بخارى رحمه الله مقصد ګرځولو كښې نظر دې. ځكه چه مناسك حج خو په نص سره هم دغه شان ثابت دى. بيا په دې باندې نور استدلال څه ضرورت دې؟ بلكه بهترخبره هم هغه ده كومه چه ابن رشيد رحمه الله ابن بطال رحمه الله او نورو حضراتو ليكلې ده چه داامام بخارى رحمه الله مقصد د حائضه او جنبى دپاره په جوازد قراءت باندې حديث عائشه رضي الله عنها مذكورفى الباب نه استدلال كول دى په كوم كښې چه حضورپاك حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوفرمائيل چه هغه دې د طواف نه علاوه په ټولو مناسك حج ادا كولوكښې حصه واخلى. او اعمال حج ذكر اذكار تلبيه او دعاء وغيره باندې مشتمل وى او حائضه ئې په دې كښې د يونه هم منع نه كړه. لهذا كه چرته اوس د قراءت د ممانعت حكم ددې وجې نه اوكړې شى چه دا ذكردې نو په دې ذكر اوپه نورو ذكرونوكښې هيڅ فرق نشته لكه څنګه چه نور ذكرونه جائز دى هم هغه شان دا ذكر هم، يعنى تلاوت د قرآن پاك به هم جائز وى.(۶)

اوكه چرې د قراءت نه ممانعت دې وبناكولوسره اوكړې شى چه امر تعبدى دې نوددې د اثبات دپاره د خاص دليل ضرورت دې خود امام بخارى رحمه الله په نيز د قراءت د ممانعت سره متعلق روايات د صحت درجې ته نه دى رسيدلى په دې وجه امام بخارى رحمه الله او نورو مجوزين حضرات لكه امام طبرى رحمه الله

---

(۱) حواله بالا.

(۲) حواله بالا.

(۳) حواله بالا.

(۴) شرح ابن بطال: ۴۲۶/۱ شرح الكرماني: ۱۷۳/۳.

(۵) فتح الباري: ۵۳۷/۱ التوضيح لابن الملقن: ۵/۵۷.

(۶) فتح الباري: ۵۳۷/۱.

ابن منذر رحمه الله او داؤد ظاهري وغيره جديث «كان يذكر الله على كل أحيانه» د عموم نه استدلال کوي چه ذکر اعم دي که هغه د قرآن په ذريعه وي او که د نورو ذکرونو په ذريعه وي.(١)

**دعلامه عيني رحمه الله رائې:** علامه عيني رحمه الله په ړومبو دوو بابونو کښې مناسبت بيان کړې چه باب سابق کښې د ترک صوم ذکر وو او دې باب کښې دترک طواف ذکر دې او دواړه هم فرض دی.(٢) دې نه پس ترجمة الباب سره آثار مذکوره فى الباب مناسبت ذکر کولو سره فرمائي چه مناسبت دادې چه حيض د ټولو عباداتو منافي نه دې بلکه بعض عبادتونه په دغه حالت کښې هم جائز دی لکه ذکر اذکار وغيره. او مناسک حج هم بغير د طواف نه د دغه ټولو عبادتونو نه دې چه حالت حيض د دې منافي نه دې لهذا دغه اعمال د حج هم جائز شو.(٣). مګر وړاندې تلو سره پخپله علامه عيني رحمه الله هم هغه خبره کړې ده کومه چه نورو شراح ذکر کړې ده چه د بخاري رحمه الله مقصد د حائضه او جنبي دپاره د قراءت په جواز باندې استدلال کول دی.(٤)

**دعلامه رشيداحمد ګنګوهي رحمه الله رائې:** علامه رشيداحمد ګنګوهي رحمه الله فرمائي چه د باب لاندې ذکر کړې شوې روايت خو په ترجمة الباب کښې ذکر کړې شوې معنی باندې ظاهر دې چه چه په دواړو کښې د دې خبرې بيان دې چه حائضه بغير د طواف نه ټول مناسک حج اداکولې شي. امام بخاري رحمه الله يو څو آثار ذکر کړي چه په دغه آثارو سره هم ترجمة الباب ثابت کړي. د دغه آثارو ذکر کولو سره امام بخاري رحمه الله د حائضه دپاره د قراءت جواز او د ذکراذکار جواز ثابت کړې. لهذا چه کله د حائضه دپاره د ذکر اذکار لوستل جائز دی نومناسک حج به هم جائز وی ځکه چه مناسک حج هم په ذکر اذکار باندې مشتمل دی. البته حائضه طواف نه شي کولې ځکه چه طواف په جمات کښې وی او حائضه جمات ته نه شي داخليدې. او دويمه وجه داده چه طواف د مونځ په شان دې لهذا د مانځه په شان حائضه طواف هم نه شي کولې.(٥) چنانچه په روايت کښې دی چه: «الطواف حول البيت مثل الصلوة» يعني د بيت الله طواف د مونځ په شان دې.(٦)

حضرت شيخ الحديث زکريا رحمه الله فرمائي د دغه ټولو اقوالو حاصل په څلورو اقوالو کښې راڅي. ړومبې قول دادې چه دامام بخاري رحمه الله مقصد د حائضه دپاره بغير د طواف نه ټول مناسک د حج ادا کولوجواز خودل دی. دويم قول دادې چه مقصد د بخاري رحمه الله د حائضه دپاره د حائضه د قراءت په جواز باندې استدلال کول دی. دريم قول دادې د حائضه د پاره د بعض طاعاتو جواز بيانول دی بغير دهغه طاعاتو دکوم نه چه دممانعت تصريح د قرآن اوحديث وغيره نه ثابت دی لکه مونځ روژه اوطواف وغيره. څلورم قول دادې چه مقصود په خاص توګه د ممانعت د طواف بيانول دی لکه چه سابقه باب کښې په خاص توګه د روژې ذکروو.(٧) بله داخبره دې واضحه وی چه په ذکر کړې شوو

---

(١) حواله بالا.

(٢) عمدة القاري:٢٧٣/٣.

(٣) حواله بالا

(٤) عمدة القاري: ٢٧٥/٣-٢٧٤.

(٥) لامع الدراري: ٢٦١/٣.

(٦) لامع الدراري: ٢٦١/٣.

(٧) الكنز المتواري: ٢٦١/٣.

احكاموكښې د حائضه اوجنبي حكم برابردې ځكه چه د حيض حدث د جنابت د حدث نه اغلظ او زيات سخت دې.([1])

اوس دغه آثار په ترتيب سره ذكركولې شي: ((وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ: لَا بَأْسَ أَنْ تَقْرَأَ الآيَةَ. وَلَمْ يَرَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِالْقِرَاءَةِ لِلْجُنُبِ بَأْساً. وَكَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَذْكُرُ اللهِ على كُلِّ أَحْيَانِهِ. وَقَالَتْ أُمُّ عَطِيَّةَ: كُنَّا نُؤْمَرُ أَنْ يَخْرُجَ الْحُيَّضُ فَيُكَبِّرْنَ بِتَكْبِيرِهِمْ وَيَدْعُونَ. [ر:۳۱۸]))

**قوله:: (۱-وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ: لَا بَأْسَ أَنْ تَقْرَأَ الآيَةَ):** ابراهيم رحمه الله فرمائي د حائضه دپاره د يوآيت په لوستلو كښې هيڅ حرج نشته دې.

**ابراهيم:** دا ابراهيم بن يزيد النخعي رحمه الله دې. ([2])د دوی حالات كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم لاندې تير شوی دی.

**تخريج:** دا اثر امام عبدالله بن عبدالرحمن الدرامي رحمه الله په دې سندسره او په دې الفاظوسره موصولاً ذكركړې دې: ((حدثنا يزيد بن هارون عن هشام الدستوائي عن حماد عن ابراهيم قال: أربعة لايقرءون القرآن: عند الخلاء، وفي الحمام، والجنب والحائض إلا الآية ونحوها للجنب والحائض)) ([3]).

يعنې ابراهيم بن يزيد نخعي رحمه الله فرمائي څلور كسان قرآن نه شي لوستلې. يو هغه چه بيت الخلاء كښې وی دويم هغه چه په حمام كښې وی دريم جنبي او څلورم حائضه ده. البته حائضه اوجنبي يوآيت يا ددې په شان لوستلې شي.

**د تعليق مقصد:** دامام بخاری رحمه الله مقصد دمذكوره تعليق نه دادې چه دحائضه او جنبي دپاره د قرآن كريم د قراءت جواز ثابتول دی.([4])

**فائده:** واضحه دې وی چه د ابراهيم نخعي رحمه الله نه صرف دغه يو قول نقل نه دې كوم چه امام بخاری رحمه الله روايت كړې دې بلكه په دې سلسله كښې د ابراهيم نخعي رحمه الله نه مختلف اقوال نقل دی. يو قول داهم دې چه د آيت نه دكم قراءت خو كولې شي ليكن دپوره آيت نه. ([5]). دغه شان يوبل روايت داهم دې چه حائضه قرآن لوستلې شي او په يوروايت كښې دی چه جنبي قرآن نه شي لوستلې.([6])

**دعلامه شبيراحمد عثماني رحمه الله تحقيق:** علامه شبيراحمد عثماني رحمه الله فرمائي چه امام بخاری رحمه الله د حائضه او جنبي دپاره د قرآن د قراءت جواز باندې دحضرت ابراهيم نخعي رحمه الله د قول نه استدلال كړې دې. مونږ ته د امام بخاری رحمه الله په دې استدلال باندې حيرانتيا كيږي. زمونږ په نيز په استدلال كښې د پيش كولودپاره دصحيح بخاری دحديث طلب كولې شي اوپخپله امام بخاری رحمه الله د يوتابعي قول پيش كوی. اودتابعي باره كښې امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي ((هم رجال ونحن رجال)) بيا د امام بخاری

---

[1]) فتح الباري: ۵۳۷/۱،عمدة القاري:۲۷۳/۳.

[2]) كشف الباري:۲۵۳/۲.

[3]) سنن الدارمي: ۲۵۲/۱،رقم الحديث: ۹۹۳ قديمي.

[4]) فتح الباري: ۵۳۷/۱،عمدة القاري: ۲۷۵/۳-۲۷٤.

[5]) مصنف ابن أبي شيبة كتاب الطهارة باب: من رخص لجنب أن يقرأمن القرآن: ۳۸/۲-۳۷ رقم الحديث: ۱۰۹٦، ۱۱۰٤-۱۱۰۳، إدارة القرآن والعلوم الإسلامية

[6]) عمدة القاري: ۲۷٤/۳.

قول هم واضح نه دي. ددې نه خود يوآيت د تلاوت جوازمعلوميږي. لكه چه امام بخاري د يوداسې قول نه استدلال كوى په كوم كښې چه د قراءت د معمولى مقدار د قراءت جواز دى. معلومه شوه چه ددې نه د امام بخاري د مؤقف پوره تائيدنه كيږي. ممكن ده چه ابراهيم نخعي دلعه د ذكر اودعا په توګه باندې د يوآيت د تلاوت اجازت وركړې وى اوزمونږ مسلك هم دغه دې چه د ذكر اودعا په نيت سره كه د قرآن آيت اولوستلې شى نو په دې كښې بديت نشته دې. زمونږ په نيز پوره ايت لوستل خو په اتفاق سره منع دى. البته د آيت نه بغير كښې د امام طحاوى او امام كرخى اختلاف دې.[1] امام طحاوى د آيت نه كم لوستلو ته جائز وئيلى دى اوامام كرخى دعدم جواز حكم لګولې دې.[2]

**دمذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت**: د مذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت دادې چه په دواړو كښې داخودلې شوى دى چه حيض د ټولو عباداتو منافى نه دې بلكه ذكر اذكاز وغيره په دې حالت كښې هم جائز دى. او د طواف نه علاوه ټول مناسك حج اودغه شان تلاوت د كلام پاك هم په ذكر كښې داخل دې په دې وجه د حائضه د پاره دا عبادتونه په خاني راوړل به هم جائز وى.[3]

**قوله:** (٢ - ولم يرابن عباس بالقراءة للجنب بأساً): ابن عباس به د جنبى په قرآن لوستلو كښې هيڅ حرج نه ګڼړلو.

**ابن عباس**: داحضرت عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف، د حضورپاك د تره خوئى دې. د دوى مختصر حالات بدء الوحى. دڅلورم حديث لاندې او تفصيلى حالات كتاب الايمان باب كفران العشيرووكفربعدكفر لاندې تيرشوى دى.[4]

**تخريج**: دامام بخاري دا اثر ابن المنذر په دې سندسره او په دې الفاظوسره موصولاً ذكركړې دى: «عن محمود بن ادم، عن الفضل بن موسى، عن الحسين، يعني ابن واقد، عن يزيد النحوي عن عكرمة: أن ابن عباس كان يقرأ ورده وهو جنب».[5] يعنى ابن عباس به خپله وظيفه لوستله اوحال دا چه هغه به په جنابت كښې وو. دغه شان ابن ابى شيبه هم دا اثر موصولاً ذكر كړې دې چه ابن عباس يو يا دوه آياتونه لوستلو كښې هيڅ حرج نه ګڼړلو.[6]

**دتعليق مقصد**: ددې تعليق نه هم دامام بخاري مقصد د حائضه اوجنبى دپاره د قرآن پاك دقراءت كولوجواز ثابتول دى.[7]

---

[1] فضل الباري:٢/٤٧٣.
[2] فيض الباري: ١/٤٩٢.
[3] عمدة القاري: ٣/٢٧٣.
[4] كشف الباري: ١/٤٣٥، ٢/٢٠٥.
[5] الأوسط لابن المنذر: ٢/٩٨ رقم الحديث: ٦٢٤دارطيبه.
[6] مصنف ابن أبي شيبة كتاب الطهارة باب من رخص للجنب أن يقرأمن القرآن رقم الحديث: ١٠٩٥ تغليق التعليق: ٢/١٧١عمدة القاري: ٣/٢٧٤.
[7] فتح الباري:١/٥٣٧عمدة القاري:٣/٢٧٥-٢٧٤.

**دجواز قراءت په سلسله کښې د امام بخاری رحمه الله اونورو ائمه مذاهب:** امام ترمذی رحمه الله حدیث ابن عمر رضی الله عنهما «لاتقرأ الحائض ولا الجنب شیئاً من القرآن» یعنی حائضه اوجنبی دې د قرآن پاك نه لوستل نه کوی روایت کولونه لیکلی دی چه هم دغه شان د حضرت علی رضی الله عنه نه هم روایت دې اوهم دغه دعدم جواز قول دحضرات صحابه کرامو نه حضرت عمر، حضرت علی، حضرت جابر رضی الله عنهم او تابعین نه حضرت حسن، زهری، ابراهیم نخعی، قتاده، امام احمد، امام شافعي، اسحاق، سفیان ثوری، ابن المبارك رحمهم الله دې. ددې ټولو حضراتو په نیزهم حائضه او جنبی قرآن نه شی لوستلې بغیرد حرف یا د آیت جز وغیره نه، البته ددوی دپاره تسبیح اوتهلیل اجازت دې.(۱)

امام مالك رحمه الله فرمائی چه آیت اوددې برابر دې نه لولی.(۲) اود دوی نه دا هم روابت دې چه جنبی خودې نه لولی مګر حائضه لوستلې شی ځکه چه که هغه ئې نه لولی نوقرآن به ترې هیر شی ځکه چه ایام حیض زیاتې وی اودجنابت موده کمه وی.(۳)

د احناف رحمهم الله مذهب دادې چه حالت د جنابت اوحیض اونفاس کښې تلاوت جائزنه دې. که چرې معلم وی نوشاګرته یوه یوه کلمه جدا جدا خودلې شی. هم دغه حکم دمعلمه دپاره هم دې. دغه شان د کار په شروع کښې تسمیه په مقصد د دعا یا ثناء وړوکی آیت لوستلو هم اجازت دې.(۴) البته د آیت نه کم په اراده دتلاوت قراءت کښې دوه روایتونه دی دکوم تفصیل چه کتاب الحیض د شروع مباحث کښې تیرشوې دې.

دامام بخاری رحمه الله مذهب په دې مسئله کښې د داؤد ظاهری رحمه الله دمذهب موافق دې اوهغه دادې چه ددې حضراتو په نیز حائضه اوجنبی تلاوت کولې شی. هم دغه مذهب د سعیدبن المسیب، طبری، ابن المنذر رحمهم الله او ابن عباس رضی الله عنهما دې.(۵) دلته امام بخاری رحمه الله دحدیث عائشه رضی الله عنها اطلاق او ذکرکړې شوی آثار نه استدلال کړې دې. خود حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله په قول د دې ټولو نه استدلال محل نظردې.(۶)

امام بخاری رحمه الله دټولو نه رومبې اثر د ابراهیم نخعی رحمه الله پیش کړې دې اوشاته داخبره تیره شوې ده چه د ابراهیم نخعی رحمه الله نه صرف هم دغه یوقول نقل نه دې بلکه په دې مسئله کښې د هغه نه مختلف اقوال نقل دی د کوم تفصیل چه د اثر لاتدې ذکر دې اود دغه مختلف اقوالو په رڼاکښې دهغوی مذهب د ائمه اربعه د مذاهب موافق هم دې.

شراح لیکلی دی چه جمهورو دامام بخاری رحمه الله په مسلك باندې په دې احادیثوسره ردکړې دې چه د حائضه او جنبی دپاره د قرآن پاك د قراءت د ممانعت په سلسله کښې راغلی دی.(۷) علامه عینی رحمه الله د ممانعت سره متعلق دا احادیث پیش کړی دی: ① «فقال أبوداؤد......... دخلت علی علی رضی الله عنه أنا

(۱) جامع الترمذی کتاب الطهارة باب ماجاء فی الجنب والحائض أنهما لا یقرآن القرآن رقم الحدیث: ۱۳۱

(۲) عمدة القاری:۳/۲۷٤.

(۳) بدیة المجتهد: ۱/۵٤۲المغنی لابن قدامة:۱/۹٦عمدة القاری:۳/۲۷٤.

(۴) رسائل ابن عابدین ۱۱۱-۱۱۲.

(۵) فتح الباری: ۱/۵۳۷عمدة القاری: ۳/۲۷٤إرشادالساری: ۱/۵٤۵.

(۶) فتح الباری: ۱/۵۳۸عمدة القاری:۳/۲۷۵.

(۷) عمدة القاری: ۳/۲۷۵.

ورجلان...... فقال: "إن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يخرج من الخلاء فيقرأنا القرآن ويأكل معنا اللحم، لايحجزه عن القرآن شيء ليس الجنابة. أخرجه الأربعة». (۱)

يعني حضرت على رضي الله عنه اوفرمائيل چه حضورپاك د قضاء حاجت نه پس تشريف راوړلو نو مونږ ته به ئې قرآن لوستلو مونږ سره به غوښه خوړله اوهغوی ته په قرآن مجيد لوستلو او بل ته دخودلو نه د جنابت نه بل هيڅ څيز نه مانع كيدلو.

ددې حديث د رواتو نه عبدالله بن سلمه سره متعلق امام بخاري رحمه الله كلام كړې دې او امام شافعي رحمه الله هم دا حديث ذكر كولوسره ليكى چه: «وان لم يكن أهل الحديث يثبتونه» يعني اګرچه اهل حديث دا ثابت نه مني. او امام خطابي رحمه الله ليكلى دى چه امام احمد رحمه الله دې حديث ته ضعيف وئيلى وو اوعبدالله بن سلمه رحمه الله ئې هم تضعيف كړې وو. ابن جوزي رحمه الله هغه ته الضعفاء والمتروكون كښې ذكركړې دې. امام بيهقي رحمه الله ليكلى دى چه دې حديث ته غيرثابت وئيلو مدار په عبدالله بن سلمه باندې دې. (۲)

ددې په جواب كښې علامه عيني رحمه الله فرمائي چه امام ترمذي رحمه الله هم دا دعبدالله بن سلمه رحمه الله حديث ذكركولو سره هم دې حديث ته حديث حسن صحيح وئيلې دې. (۳) ابن حبان رحمه الله هم ددې تصحيح حكړې ده. امام حاكم رحمه الله عبدالله بن سلمه ته غيرمطعون وئيلې دې. (۴) امام عجلي رحمه الله ده ته تابعي ثقة وئيلې دې هم دغه شان ابن عدي رحمه الله وئيلى دى چه زما اميددې چه عبدالله بن سلمه لابأس به دې. (۵)

② «قال الترمذي وابن ماجه...... عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لا يقرأ الحائض ولا الجنب شيئاً من القرآن"». (۶)

يعني د ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دى چه حضورپاك صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دى: حائضه اوجنبي دې دقرآن پاك نه څه نه لولي. دې حديث ته د اسماعيل بن عياش د وجې نه ضعيف وئيلې شوې دې. (۷)

③ دحضرت جابر رضي الله عنه نه هم د ابن عمر رضي الله عنهما په شان نقل دى ليكن دې روايت ته د محمد بن الفضل د وجې نه ضعيف وئيلې شوې دې. (۱)

---

(۱) سنن أبي داؤد، كتاب الطهارة باب فى الجنب يقرأ القرآن رقم الحديث: ۲۲۹سنن الترمذي كتاب الطهارة باب ماجاء فى الرجل يقرأالقرآن على كل حال مالم يكن جنباً، رقم الحديث: ۱٤٦سنن النسائي، كتاب الطهارة باب حجب الجنب من قراءة القرآن رقم الحديث: ۲٦۷-۲٦٦ سنن ابن ماجه أبواب اللتيمم باب ماجاء فى قراءة القرآن على غيرطهارة رقم الحديث: ٥۹٤.

(۲) عمدة القاري: ۲۷٥/۳.

(۳) سنن الترمذي: كتاب الطهارة باب ماجاء فى الرجل يقرأالقرآن على كل حال مالم يكن جنباً رقم الحديث: ۱٤٦عمدة القاري: ۲۷٥/۳.

(۴) عمدة القاري: ۲۷٥/۳.

(۵) معرفة الثقات للعجلي: ۳۲/۲الكامل فى الضعفاء لابن عدي: ۱۷۰/٤رقم الترجمة: ۹۸۹تهذيب الكمال: ٥۲/۱٥عمدة القاري: ۲۷٥/۳.

(۶) سنن الترمذي كتاب الطهارة باب ماجاء فى الجنب والحائض أنهما لا يقرآن القرآن رقم الحديث: ۱۳۱سنن ابن ماجه أبواب التيمم باب ماجاء فى قرآءة القرآن على غيرطهارة رقم الحديث: ٥۹٦-٥۹٥.

(۷) عمدة القاري: ۲۷٥/۳.

ددي دوارو په جواب كښې علامه عينى رحمه الله فرمائى دې دوارو احاديثوته د حديث على رضي الله عنه نه تقويت ملاويږي.(٢)

چونکه دامام بخارى رحمه الله په نيز په دې باب كښې يوحديث د صحت درجې ته نه دې رسيدلې په دې وجه هغه د حائضه او جنبى دپاره د قراءت د جواز قول اختيار كړې او په دې باندې ئې دهغه احاديثو نه استدلال اوکړو چه د امام بخارى رحمه الله په نيز د صحت درجې ته رسيدلى دى.(٣)

ددويم اثر لاندې علامه رشيداحمد گنگوهى رحمه الله فرمائى چه د ابن عباس رضي الله عنهما د قول نه د احنافو حضراتو په مسلك باندې اعتراض كيږى ځكه چه ابن عباس رضي الله عنهما د جنبى دپاره د قرآن كريم قراءت ته جائز وائى. ليكن داعتراض جواب دادې چه كيدې شى د ابن عباس رضي الله عنهما د قراءت اجازت وركول د آيت نه كم سره مختص وى لكه چه حضرات حنفيه هم د امام طحاوى رحمه الله د قول موافق مادون الآية قراءت جائز گنړى.(٤)

شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى چه دا جواب د امام بخارى رحمه الله د ذكركړې شوى د الفاظو دحده پورې خو صحيح دې ليكن شراح چه دا اثر د ابن المنذر رحمه الله په حواله سره موصولاً ذكركړې دې د دغه اثر موصول په اعتبارسره دا جواب يا تاويل نه شى چليدلې ځكه چه په دغه اثر موصول كښې "ورد" الفاظ دى اوځوك هم د ورد يا وظيفه يقيناً د آيت نه كم نه وى الآيه چه ددې موصول اثر په جواب كښې اووئيلې شى چه د ورد نه مراد د قراءت نه علاوه نور اذكار دى.(٥) نور فرمائى چه ددې كلام مطابق دامام بخارى رحمه الله بيان كړې شوې اثر او د ابن المنذر رحمه الله ذكركړې شوې اثر دواړه به يو نه وى اوداسې د علامه رشيداحمد گنگوهى رحمه الله د امام بخارى رحمه الله په مذكوره اثركښې تاويل اوتوجيه صحيح كيږى.(٦)

**دمذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** دتعليق مذكوره ترجمة الباب سره هم هغه مناسبت دې كوم چه د تيرشوى تعليق ترجمة الباب سره مناسبت وو.

**قوله: ٢- وكان النبي صلى الله عليه وسلم يذكر الله على كل أحيانه:** نبى كريم صلى الله عليه وسلم به هروخت دالله تعالى ذكركولو.

**تخريج:** دا تعليق امام مسلم امام ابوداؤد او امام ترمذى رحمهم الله د «أبوكريب محمد بن العلاء عن يحيى بن أبي زائدة عن أبيه، عن خالد بن سلمة، عن البهي، عن عروة، عن عائشة» طريق سره موصولاً ذكركړې دې.(٧)

---

(١) سنن الدارقطني كتاب الجنائز باب تخفيف الصلاة رقم الحديث: ١٨٧٩حلية الأولياء:٤/٢٢عمدة القارى:٢٧٥/٣.

(٢) عمدة القارى: ٢٧٥/٣.

(٣) حواله بالا

(٤) لامع الدرارى ومع الكنز المتوارى:٢٦٢/٣.

(٥) الكنزالمتوارى: ٢٦٣/٣.

(٦) حواله بالا.

(٧) صحيح مسلم كتاب الطهارة باب ذكرالله تعالى فى حال الجنابة وغيرها رقم الحديث: ٨٢٦وسنن أبى داؤد كتاب الطهارة باب فى الرجل يذكرالله تعالى على غيرطهر رقم الحديث: ١٨وجامع الترمذى كتاب ا لدعوات باب ماجاء أن دعوة المسلم مستجابة رقم الحديث: ٣٣٨٤.

**دمذکوره تعلیق مقصد:** دامام بخاري رحمه الله مقصد دمذکوره تعلیق او دغه شان د دې باب لاندې ذکر کړې شوي نورو آثارونه د جنبي او حائضه دپاره د قراءت جواز په مسئله باندې استدلال کول دی. او د استدلال طریق دادې چه کله د حدیث نه ثابته ده چه حضورپاك به هروخت دالله تعالی ذکرکولو نوددې نه معلومه شوه چه د جنابت په حالت کښې هم د الله تعالی ذکر به ئې نه وی ترك کړې ځکه چه په جمیع احیان کښې د جنابت حالت هم داخل دې او بیا چونکه د جنبي او حائضه دواړو په احکامو کښې هم څه خاص فرق نشته دې. په دې وجه هم دغه حکم (د ذکرجواز) به د حائضه دپاره هم وی او ذکر دخپل عموم په وجه تلاوت وغیره دواړو ته شامل دې. [1] ددې جواب دادې چه د ذکر نه مرادغیر قرآن دې ځکه چه دحائضه دپاره اود جنبي دپاره د قراءت ممانعت د احادیث مرفوعه نه ثابت دې لهذا دعموم ذکر نه استدلال صحیح نه دې. [2]

**قوله: (۴ - وقالت أم عطیة: کنا نؤمر أن یخرج الحیض فیکبرن بتکبیرهم ویدعون):** ام عطیه رضي الله عنها اوفرمائیل مونږ ته به حکم کیدلو چه (مونږ) حائضه ښځې هم (داختر په ورځ) بهر اوخو، پس (حائضه ښځو به هم) سړو سره تکبیر ونیل اودعا به ئې کوله.

**أم عطیة:** دا صحابیه نسیبه بنت کعب انصاریه رضي الله عنها ده دا په خپل کنیت ام عطیه سره مشهوره ده. ددې حالات کتاب الوضوء باب التیمن في الوضوء والغسل لاندې تیرشوی دی.

**تخریج:** دا تعلیق امام بخاري رحمه الله کتاب العیدین باب التکبیر أیام منی وإذا غدا إلی عرفة لاندې د «عن عمر بن حفص عن أبیه عن عاصم عن حفصة بنت سیرین عن أم عطیة» په طریق باندې موصولاً ذکرکړې دې. [3]

**دمذکوره تعلیق مقصد:** امام بخاري رحمه الله مقصد ددې تعلیق نه هم هغه دې کوم چه شاته تیرشوې دې. یعنی د جوازد قراءت د حائض او جنبي دپاره، باندې استدلال کول اوطریق داستدلال هم هغه دې چه دامام بخاري رحمه الله په نیز تلاوت وغیره تلاوت کښې ذکرکیدوکښې هیڅ فرق نشته دې لهذا لکه څنګه چه دحائض اوجنبي دپاره غیرتلاوت یعنی ذکرونه وغیره جائزدی نوتلاوت هم جائزدې ځکه چه ذکرټولوته شامل دې. ددې جواب هم هغه دې چه دعموم ذکرنه استدلال کول صحیح نه دی باقي تکبیر اودعا د جمهور حضراتو په نیزهم د حائضه او جنبي دپاره ممنوع نه دی. [4]

**قوله: ویدعون:** اکثرروات دا صیغه داسې نقل کړې ده اود کشمیهني رحمه الله په روایت کښې ویدعین دې. [5]

**دمذکوره تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت:** دې تعلیق ته هم ترجمة الباب سره هم هغه مناسبت حاصل دې کوم چه دتیرو شوو دواړو تعلیقاتو ترجمة الباب سره دې.

---

[1] لامع الدراري: ۲۶۳/۳.
[2] أنوارالباري: ۴۱۶/۱۰.
[3] صحیح البخاري: کتاب العیدین باب التکبیر أیام منی وإذا غدا إلی عرفة رقم الحدیث: ۹۷۱.
[4] أنوارالباري: ۴۱۷/۱۰.
[5] فتح الباري: ۵۳۷/۱.

**وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: أَخْبَرَنِي أَبُوسُفْيَانَ: أَنَّ هِرَقْلَ: دَعَا بِكِتَابِ النَّبِيِّ ﷺ فَقَرَأَهُ فَإِذَا فِيهِ: (بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، وَ: ﴿يَا أَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا إِلٰى كَلِمَةٍ﴾ الْآيَة).[ر:۷].**

يعنى ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چه هغوى ته ابوسفيان بيان اوكړو چه هرقل د نبى كريم ﷺ نه مكتوب طلب كړو او هغه ئې اولوستلو، په هغې كښې ليكلي وو چه شروع كوم په نامه دالله تعالى چه ډير لوئى مهربان او ډير رحم والا دې، او اې اهل كتاب د يوداسې كلمې طرف ته راشئى چه زمونږ او ستاسو په مينځ كښې مشتركه ده.

**ابن عباس**: داحضرت عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف، د حضورپاك ﷺ د تره خوئې دې. د دوى مختصر حالات بدءالوحى دڅلورم حديث لاندې او تفصيلى حالات كتاب الايمان باب كفران العشيرووكفربعدكفر لاندې تيرشوى دى.[1]

**تخريج**: د ابن عباس رضي الله عنهما داحديث د ابوسفيان رضي الله عنه د هغه اوږدحديث ټكړه ده كوم چه ابوسفيان رضي الله عنه د بادشاه هرقل په قصه كښې روايت كړې دې. امام بخارى رحمه الله دغه ټكړه بدء الوحي نه علاوه كتاب الجهاد او كتاب التفسير كښې هم مختصر اوطويل دواړو اندازوكښې اوحصوكښې زهري عن عبيدالله عن ابن عباس په طريق سره موصولاً ذكركړې ده.[2]

**دمذكوره تعليق مقصد**: ددې تعليق نه د امام بخارى رحمه الله د خپل مقصد دپاره استدلال داسې دې چه نبى كريم ﷺ خپل مكتوب د روم د كافرانوطرف ته ليګلې وو او په هغه مكتوب كښې يو دوه د قرآن آياتونه هم وو اودا خبره معلومه هم ده چه كافران خو ټول په ټول پليت او جنبى وى اوبيا دغه مكتوب ته هغه لاس يوړو وئې نيولو او وئې لوستلوهم، لهذا دا ټول د جنبى دپاره د قراءت په جواز باندې دلالت كوى. ځكه چه د رسول الله ﷺ د هغه كافرانو طرف ته خپل خط روانول دهغوى د پاره دغه خط ته لاس لګول اولوستل جائزګرځول دى.[3]

ددې په جواب كښې جمهور حضرات فرمائى چه هغه مكتوب د دغه دوو قرآنى آياتونونه علاوه نور په ډيرو څيزونو باندې مشتمل وو لكه چه دا يوداسې مكتوب وو لكه فقه يا د تفسير كتاب كښې چه يو څو آياتونه اوليكلې شى اوداسې قسم هريوكتاب ته لاس لګول او هغه لوستل جمهور حضرات منع كړې دى. بل امام احمد رحمه الله په صراحت سره فرمائيلى دى چه د تبليغ د مصلحت په رنړاكښې د يو آيات دوو ليكلو ګنجائش شته او ډير شوافع حضرات هم دغه فرمائى.[4]

بعض حضراتو داجواب هم وركړې دې چه په دغه قصه دهرقل كښې د جنبى دپاره د قراءت په جواز باندې هيڅ دليل نشته دې. ځكه چه د جنبى دپاره ممانعت دقراءت هغه وخت دې كله چه ئې د تلاوت كولو قصد او اراده هم وى اوكوم مكتوب چه لوستلې شى دهغې نه دامعلوميږى هم چه واقعى هم

---

[1]) كشف البارى: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

[2]) صحيح البخارى كتاب بدءالوحى رقم الحديث:۷وكتاب الجهاد باب دعاء النبى صلى الله عليه وسلم إلى الإسلام والنبوع الخ رقم الحديث: ۲۹۴۱وكتاب التفسير باب: ﴿قُلْ يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا إِلٰى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ﴾ الآية رقم الحديث: ۴۵۵۳.

[3]) فتح البارى: ۵۳۷/۱عمدة القارى:۲۷۴/۳.

[4]) فتح البارى: ۵۳۷/۱الكنزالمتوارى: ۲۶۴/۳.

قرآن پاك لولي. باقي كه څه داسې خط وغيره لولي د كوم باره كښې چه هغه و علم نه وي چه داد قرآن پاك نه دې كه نه نو ددې نه د ممانعت حكم نشته اوهم دغه حال د كافر هم دې. [۱]

**د شيخ زكريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائي چه دا ټول تفصيل خوهغه وخت دې كوم وخت چه په دغه مكتوب كښې ليكلې آيت قرآن ثابت وي خكه چه اول د حديث هرقل نه لاتدې په دې امر كښې اختلاف تيرشوې دې چه مذكوره آيت د هرقل د مكتوب نه وړاندې نازل شوې كه روستو نازل شوې. درمختاركښې دي چه نصراني به قرآن ته د لاس لګولو نه منع كولې شي. البته امام محمد رحمه الله دغسل نه پس ددې اجازت وركړې دې اودهدايت په اميد باندې كافرته د قرآن مجيد اوفقه تعليم هم وركولې شي. [۲]

**د مذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** دې تعليق ته هم ترجمة الباب سره هم هغه مناسبت حاصل دې كوم چه دتيرو شوو دريوارو تعليقاتو ترجمة الباب سره دې.

**وَقَالَ عَطَاءٌ، عَنْ جَابِرٍ: حَاضَتْ عَائِشَةُ فَنَسَكَتِ الْمَنَاسِكَ، غَيْرَ الطَّوَافِ بِالْبَيْتِ، وَلاَ تُصَلِّي.** [ر: ۶۸۰۳]

يعني عطاء رحمه الله دجابر رضي الله عنه په حواله سره بيان كړې دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها ته (حج كښې) حيض راغلو نوهغې ټول مناسك پوره كړل بغيرد بيت الله دطواف نه او مونځ به ئې هم نه كولو.

## تراجم رجال

**عطاء:** دعطاء نه مراد عطاء بن ابى رباح رحمه الله دې. ددوى حالات **كتاب العلم باب عظة الإمام النساء** لاتدې تيرشوى دى. [۳]

**جابر:** دا جابربن عبدالله انصارى مشهور صحابى رضي الله عنه دې. د دوى احوال **كتاب الوضوء باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين من القبل والدبر** لاتدې تيرشوى دى.

**تخريج:** دا تعليق امام بخارى رحمه الله **كتاب التمني باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: لواستقبلت من أمري ما استدبرت** كښې **حسن بن عمر عن يزيد عن حبيب عن عطاء** په طريق سره موصولاً ذكركړى دى. [۴]

**دمذكوره تعليق مقصد:** شاته تيرشوى دى چه دامام بخارى رحمه الله مقصد دحديث الباب اومذكوره آثارو نه د حائضه اوجنبى دپاره د قراءت په جواز باندې استدلال كول دى. اود مذكوره تعليق نه د استدلال وجه د ترجمة الباب مقصد دعنوان لاتدې تير شوى دى.

**د مذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** دې تعليق ته هم ترجمة الباب سره هم هغه مناسبت حاصل دې كوم چه تيرو شوو څلورو وارو تعليقاتوته حاصل دې.

**وَقَالَ الْحَكَمُ: إِنِّي لَأَذْبَحُ وَأَنَا جُنُبٌ، وَقَالَ اللهُ: ﴿وَلاَ تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ﴾** /الانعام: ۱۲۱/.

يعني حكم رحمه الله فرمائي په كومه ذبيحه چه د الله تعالى نوم نه وي اخستې شوې هغه مه خورئ.

**الحكم:** داحكم ابن عتيبه دې. ددوى حالات كتاب العلم باب السمر بالعلم لاتدې تيرشوى دى. [۱]

---

[۱] فتح البارى: ۵۳۸/۱الكنز المتوارى: ۲۶۴/۳.

[۲] الكنز المتوارى: ۲۶۴/۳الدرالمختار كتاب الطهارة: ۳۲۱/۱دار علم الكتب.

[۳] كشف البارى: ۳۹/۴.

[۴] صحيح البخارى كتاب التيمنى باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: لواستقبلت من أمرى ما استدبرت رقم الحديث ۷۲۳۰.

**تخريج:** دا اثر امام بغوی رحمه الله الجعديات کښې علي بن الجعد عن شعبة عن الحکم په طريق سره موصولاً ذکرکړي دي. [۲]

**دمذکوره تعليق مطلب:** د حکم بن عتيبه رحمه الله د قول مطلب دادې چه که چرې هم ماته د جنابت په حالت کښې هم د څاروی د ذبح کولو نوبت راشي نو زه به ئې ضرور ذبح کوم ځکه چه دالله تعالی ارشاد دې دهغه ذبيحه نه مه خورئې په کوم چه دالله تعالی نوم نه وی اخستې شوی او جنبی د الله تعالی نوم اخستې شي. په دې وجه که د جنابت حالت کښې هم د ذبيحې کولو نوبت راشي نو زه به ئې ضرور ذبح کوم.

**د مذکوره تعليق مقصد:** ددې اثر نه هم دامام بخاری رحمه الله مقصد د جبی اوحائضه دپاره د قراءت په جواز باندې استدلال کول دی اوداستدلال طريقه داسې ده چه په اثرکښې ذکرکړې شوې ايت مبارك تقاضاده چه د فعل ذبح دپاره شرعاً دالله تعالی ذکر مستلزم دی اوحکم رحمه الله فرمائی چه کله د جنبی کيدو په حالت کښې د ذبح کولو موقع راغله نوبيابه هم زه ذبح کوم. ددې نه معلومه شوه چه د جنبی دپاره دالله تعالی ذکر جائزدې. هم ددې نه داهم معلومه شوه چه د جنبی دپاره تلاوت هم جائز دې ځکه چه ذکرعام دې تلاوت وغيره تلاوت دوارو ته شامل دې. [۳]

ددې نه هم د تلاوت په جواز باندې استدلال نه شي کيدې ځکه چه د ذبح په وخت د الله تعالی ذکرضروری دې دې د پاره چه د يوآيت تلاوت کول اود الله د ذکر اجازت دحائضه اوجنبی د پاره د جمهورو په نيز هم شته. بله دا خبره اول هم تيره شوې ده چه دلته زيات استدلال عموم ذکرسره کړې شوې دې اود عموم ذکر نه استدلال صحيح نه دې ځکه چه ذکراو اذکار اود قرآن مجيدتلاوت ددوارو په احکام کښې فرق دې. [۴]

واضحه دې وی چه دامام بخاری رحمه الله صرف دوه آثار (اثر ابراهيم نخعی) او (د ابن عباس رضي الله عنهما اثر) نې داسې پيش کړل چه د قرآن پاك دقراءت په جواز باندې څه دليل جوړيدې شي اود هغې جوابات هم بيان کړې شوی دی. په باقی آثارو کښې د قرآن پاك د قراءت د سر نه ذکر نشته په دې وجه دهغې نه په جواز قراءت باندې استدلال هم صحيح نه دې. ځکه چه د دې په خلاف صريح روايات د حائضه اوجنبی په حق کښې د قراءت د ممانعت موجود دی سره ددې چه که د امام بخاری په نيز صحت ته نه دی رسيدلی ليکن چونکه روايات زيات دی اود بعض نه بعض ته تقويت هم ملاويږی په دې وجه هغه قابل د حجت او استدلال هم دی.

په دې موقع باندې حضرت علامه انور شاه کشميری رحمه الله فرمائی چه پخپله امام بخاری په صلاة الليل کښې د حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه د مشهورې قصې يوه ټکړه ذکرکړې ده کومه چه په اشعارو مشتمل ده. [۵] اوکومه چه امام دارقطنی رحمه الله په تفصيل سره ذکرکړې ده. په دې کښې ددې خبرې دليل دې چه جنبی قرآن نه شي لوستلې هغه تفصيل دادې:

---

[۱] کشف الباری: ۴۱۶/۴.

[۲] فتح الباری: ۵۳۸/۱عمدة القاری: ۲۷۵/۳.

[۳] فتح الباری: ۵۳۸/۱عمدة القاری: ۲۷۵/۳.

[۴] أنوار الباری: ۴۱۹/۱۰.

[۵] رواه البخاری فی التهجد باب فضل من تعر من الليل رقم الحديث:۱۱۵۵.

(حدثنا محمد بن مخلد، حدثنا العباس بن محمد الدوري (ح) وحدثنا إبراهيم بن دبيس بن أحمد الحداد، حدثنا محمد بن سليمان الواسطي، قالا: حدثنا أبونعيم...... عن عكرمة قال: كان ابن رواحة مضطجعاً إلى جنب امرأته، فقام إلى جارية له في ناحية الحجرة، فرأته على جاريته، فرجعت إلى البيت، فأخذت الشفرة، ثم خرجت وفزع فقام، فلقيها تحمل الشفرة، فقال: مهيم؟ فقالت: لوأدركتك حيث رأيتك لوجأت بين كتفيك بهذه الشفرة، قال: وأين رأيتني؟ قالت: رأيتك على الجارية، فقال: ما رأيتني، قال: وقد نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم أن يقرأ أحدنا القرآن وهو جنب، قالت: فاقرء، فقال:

أتانا رسول الله يتلو كتابه كما لاح مشهور من الفجر ساطع

أتى بالهدي بعد العمى فقلوبنا به مؤقنات أن ما قال واقع

يبيت يجافي جنبه عن فراشه إذا استقلت بالمشركين المضاجع

فقالت: آمنت بالله وكذبت البصر، ثم غدا على رسول الله صلى الله عليه وسلم فأخبره فضحك حتى بدت نواجذه.)[1]

**ترجمه:** د حضرت عكرمه رحمه الله نه روايت دې چه ابن رواحه رضی الله عنه خپلې بى بى سره يوطرف ته پروت وو چه بيا هغه خپلې وينځې له لاړو چه د كمرې په يو كوټ كښې وه او هغې سره ئى جماع اوكړه. په دې كښې د هغوى بى بى رابيداره شوه نوهغې خپل خاوند په خپل ځائى باندې اونه ليدلو، هغه اوديدله اوبهرلاړه، نوهغې خپل خاوند وينځې سره په جماع كولو باندې اوليدلو، هغه كورته راغله او چاړه ئى راواخسته راغله، ابن رواحه رضی الله عنه اوويريدلو او اودريدو، نوهغوى خپله بى بى اوليدله چه چاړه په لاس ولاړه ده. هغوى خپلې بى بى ته اووئيل څه خبره ده؟ بى بى جواب ورکړو كه چرې ما ته اوس هم په هغه حالت كښې ليدلې وې نوځامخا به مې دا چاړه ستاد دواړو اوږو په مينځ كښې ورخښوله. ابن رواحه رضی الله عنه اووئيل تا زه كوم ځائې اوليدلم؟ بى بى جواب ورکړو ته مې وينځې سره په جماع كولو باندې اوليدلې، نو ابن رواحه رضی الله عنه اووئيل چه بيا تا زه اونه ليدلم، هغوى اوفرمائيل چه حضورپاك په حالت د جنابت كښې د قرآن لوستلو نه منع فرمائيلې ده. بى بى ورته اووئيل بيا لوستلو سره واوره وه، نوابن رواحه رضی الله عنه اووئيل راغلو مونږ له د الله رسول صلی الله علیه وسلم چه د الله تعالى د كتاب تلاوت هغه وخت كوى كله سحر راڅرګندیږي. حضورپاك مونږ د ګمراهئ نه اوويستلو او صحيح لار ئى راته اوخودله. په دې وجه زمونږ زړه پوره يقين لرى چه څه تاسو اوفرمائيل هغه به ضرور واقع كيږى. ته شپه د بسترې نه جدا تيره وې كوم وخت چه په مشركانو باندې خپلې بسترې درنيږى. په دې باندې بى بى اووئيل زه په الله تعالى باندې ايمان راوړم اود خپل بصارت تكذيب ئى اوكړو. بيا ابن رواحه رضی الله عنه د حضورپاك په خدمت كښې حاضر شو اوخپله واقعه ئى ورته بيان كړه. نو حضورپاك ددې په اوريدو سره دومره اوخندل چه د حضورپاك غاښونه مبارك ښكاره شو.

علامه انور شاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه ددې روايت نه معلومه شوه چه د صحابه كرامو په زمانه كښې ټول په دې خبر وو چه د جنبى دپاره د قرآن لوستل منع دى. چنانچه د عبدالله بن رواحه رضی الله عنه بى بى هم چه قرآن مجيدئى غير قرآن سره مميز اوجدا كولې نه شو په دې خبره باندې پوهيدله او هم په دې وجه نه يوازې د عبدالله بن رواحه رضی الله عنه په خبره باندې مطمئن شوه بلكه خپله ټوله غصه ئى ختمه كړه اوخپله دستركو ليدلې واقعه ئى هم دروغ كړه.[2]

---

[1]) رواه الدارقطني في كتاب الطهارة باب في النهي للجنب والحائض عن قراءة القرآن: ۲۱۷/۱-۲۱۶ رقم الحديث: ۴۳۲ ط: مؤسسة الرسالة.

[2]) فيض الباري: ۴۹۲/۱ أنوار الباري: ۴۱۴/۱۰.

**د مذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** د دې تعليق هم ترجمة الباب سره هم هغه مناسبت دې كوم چه د تيرو شوو پنځو واړو تعليقاتو ته دې.

## الحديث الأول

[٢٩٩]-حَدَّثَنَا أَبُونُعَيْمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُالعَزِيزِبْنُ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِالرَّحْمَنِ بْنِ القَاسِمِ، عَنِ القَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَنَذْكُرُ إِلَّا الحَجَّ، فَلَمَّا جِئْنَا سَرِفَ طَمِثْتُ، فَدَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبْكِي، فَقَالَ: «مَا يُبْكِيكِ؟» قُلْتُ: لَوَدِدْتُ وَاللَّهِ أَنِّي لَمْ أَحُجَّ العَامَ، قَالَ: «لَعَلَّكِ نُفِسْتِ؟» قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: «فَإِنَّ ذَلِكِ شَيْءٌ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ، فَافْعَلِي مَا يَفْعَلُ الحَاجُّ، غَيْرَ أَنْ لاَ تَطُوفِي بِالْبَيْتِ حَتَّى تَطْهُرِي»[١][ر ٢٩٠]

**ترجمه:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه مونږ رسول الله ﷺ سره اووتلو، زمونږ اراده بغيرد حج نه بل څه نه وه. كله چه مونږ مقام سرف ته راغلو نو په ما حيض راغلو. ماله رسول الله ﷺ راغلو نوما ژړل. حضورپاك تپوس اوكړو ولې ژاړې؟ ما اووئيل چه افسوس ما دې كال د حج اراده نه وه كړې، حضورپاك اوفرمائيل زما په خيال ستا حيض راغلې دې. ما اووئيل اوجی. حضورپاك اوفرمائيل دا څيز خو الله تعالى د آدم عليه السلام د لونړو دپاره ليكلې دې. په دې وجه ته چه تركومې پورې پاكه نه شې د بيت الله د طواف نه علاوه ټول اعمال د حاجيانو په شان پوره كړه.

## تراجم رجال:

**أبونعيم:** دا ابونعيم فضل بن دكين رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب فضل من استبرأ لدينه لاندې تيرشوى دى.[٢]

**عبدالعزيز بن أبي سلمة:** دا مشهور فقيه ومحدث عبدالعزيز بن عبدالله بن ابى سلمه الماجشون رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب العلم باب السؤال والفتيا عند رمى الجمار لاندې تيرشوى دى.[٣]

**عبدالرحمن بن قاسم:** داعبدالرحمن بن القاسم بن محمدبن ابى بكر الصديق رضي الله عنه دې. ددوى حالات كتاب الغسل باب هل يدخل الجنب يده فى الإناء قبل أن يغسلها الخ لاندې تيرشوى دى.

**قاسم بن محمد:** دا قاسم بن محمد بن ابى بكرالصديق رحمه الله دې. د دوى حالات كتاب الغسل باب من بدأ بالحلاب أوالطيب عند الغسل لاندې تيرشوى دى.

**عائشة:** دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابى بكر صديق رضي الله عنهما ده. ددوى حالات «بدء الوحى» ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوى دى.[١]

---

[١] قوله: "عائشة": الحديث مر تخريجه فى باب الأمر بالنفساء إذا نفسن، تحت رقم الحديث: ٢٩٤.

[٢] كشف البارى: ٦٦٩/٢.

[٣] كشف البارى: ٥١٨/٤.

**شرح حدیث:** ددې حدیث سره متعلق ټول ابحاث باب الأمر بالنفساء إذا نفسن لاندې تېرشوي دي.

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دحدیث ترجمة الباب سره هم هغه مناسبت دې کوم چه دتیرو تعلیقاتو دې.

# ۸-باب: الاستحاضة

**ماقبل سره ربط:** علامه عیني فرمائي چه باب الاستحاضة د باب سابق سره مناسبت دادې چه دواړه هم (دم حیض او دم استحاضه) د ښځو داحکامو نه دی.(۲) چنانچه ددې باب نه وړاندې امام بخاري رحمه الله د ښځودپاره دحیض مختلف احکام بیان کړل او اوس د ښځودپاره دم اسحاضه حکم بیانوي. یوبل مناسبت داهم بیانولې شي چه په دم حیض اودم استحاضه کښې فرق کول ډیر مشکل دی.(۳) او هم په دې وجه صحابیاتوته به هم شك پیدا کیدلو. په دې وجه امام بخاري رحمه الله باب الاستحاضه راوړلو سره دغه اشتباه لرې کول غواړي.(۴)

حضرت شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائي زما حضرت (یعني خلیل احمدسهارنپوري) نورالله مرقده فرمائیل ما څلویښت کاله بخاري شریف اوخودلو لیکن په دې باب باندې پوهه نه شوم. خیال مې وو چه د "بذل" لیکلو په وخت به په پوهه کښې راشي خو بیا هم تراوسه پورې پوهه نه شوم.(۵)

مطلب ددې خبرې دادې چه مستحاضه ښځې د چا ذکر چه ابواب استحاضه په مختلف روایاتو کښې راغي په هغې کښې دومره اختلاف دې چه څه تعیین نه شي کیدې چه مونږ د یو متعلق څه حکم دمعتاده یا متمیزه کیدو اولګوو چاچه ددې خلاف لیکلې وی دهغه تردید اوکړو. په دې باب باندې چه څومره قدرې په وضاحت او تفصیل سره کلام امام ابوداؤد رحمه الله کړې دې بل چا نه دې کړې. امام بخاري رحمه الله صرف هم یو باب ذکرکړې دې اومسئله ئې اوخودله چه د استحاضه حکم دادې چه کله د حیض موده ختمه شي نو یوخل دې غسل اوکړي بس هم دغه کافي دې. امام بخاري رحمه الله استحاضه په تفصیل سره نه ده بیان کړې دکوم وجه چه داده په دې باب کښې چه کوم احادیث دی په هغې کښې تعارض دې یابیا هغه احادیث او روایات احکامات نه دی علاجات دی اویا بیا چونکه هغه احادیث انواع مختلفه باندې محمول دی په دې وجه ئې تعرض اونه کړو.(۶)

## دترجمة الباب مقصد

**دعلامه رشیداحمدګنګوهي رحمه الله رائې:** حضرت مولانا رشیداحمد ګنګوهي رحمه الله فرمائي دامام بخاري رحمه الله مقصد په دې ترجمة الباب سره د استحاضه حکم بیانول دی.(۷)

---

۱) کشف الباري: ۲۹۱/۱.

۲) عمدة القاري: ۲۷۶/۳.

۳) فیض الباري: ۴۹۴/۱.

۴) أنوارالباري: ۴۲۲/۱۰.

۵) الکنزالمتواري: ۲۶۵/۳ تقریر بخاري: ۳۰۹/۲.

۶) الکنزالمتواري: ۲۶۵/۳ تقریر بخاري: ۳۰۹/۲.

۷) لامع الدراري: ۲۶۶/۳.

ددې تفصيل دادې چه د باب استحاضه په سلسله کښې په کثرت سره احاديث راغلي دی دکوم نه چه ډير زيات مختلف احکام ثابتيږی. دا احاديث امام ابوداؤد رحمه الله او امام طحاوی رحمه الله په تفصيل سره ذکرکړی دی. امام ابوداؤد رحمه الله خو دهريو حکم دپاره يو مستقل باب او ترجمه قائم کړې ده لکه چه الغسل لكل صلاة، الجمع بين الصلاتين، الغسل مرة عند انقضاء الحيض، الغسل كل يوم مرة، الغسل عند الطهر خاصة. وغيره وغيره. ددې مختلف احکامو نه هريو حکم يونه يو امام اختيارکړې دې او په دې سلسله کښې د جمهور فقهاؤ او ائمه اربعه مذهب دادې چه د حيض په ختميدو باندې يو ځل غسل کول واجب دی سره ددې چه د ائمه اربعه په انقضاء حيض او اختتام حيض مسئله کښې اختلاف دې چه آيا د انقضاء حيض د حکم مدار به په عادت باندې وی اوکه په تميزباندې. او امام بخاری رحمه الله چه په ترجمة الباب کښې کوم حديث ذکرکړې دې هغه هم د جمهورو د مذهب تائيدکوی د کوم نه چه معلوميږی په دې مسئله کښې امام بخاری رحمه الله جمهورو سره دې اودهغوی د مذهب تائيد کوی. (١)

**دترجمة الباب د مقصدسره متعلق يواشکال:** په دې باندې دا اشکال نه وی چه حديث الباب کښې خو د سره دغسل ذکرنشته؟

**د اشکال جواب:** ځکه چه ډير زر «باب إذا حاضت في شهر ثلاث حيض» لاندې بعينه هم ددې روايت ذکر دې او په هغې کښې د غسل تصريح ده. چنانچه د روايت په آخره کښې «ولكن دعي الصلاة قدر الأيام التي كنت تحيضين فيها ثم اغتسلي وصلي» اوداد امام بخاری رحمه الله د تراجم په حواله سره صنيع دې چه هغه کله دترجمه لاندې داسې احاديث ذکر کوی چه په ترجمة الباب باندې بالکل دلالت نه کوی مګر ددغه صنيع نه دامام بخاری رحمه الله مقصود په هغه روايت اوحديث سره نورو طرفوته اشاره کول وی کوم سره چه امام بخاری رحمه الله داحديث په خپل صحيح کښې په نورو مقاماتو کښې هم ذکرکړې وی. او هغه حديث د دغه نورو طرق په اعتبار سره صراحت سره ترجمة الباب باندې دلالت کوی. لهذا دا ترجمه د شيخ الهند رحمه الله ذکرکړې شوې اصول تراجم نه يولسم اصل سره متعلق ده. (٢)

**دترجمه مقصدسره متعلق دويم قول:** دويم قول داهم دې چه د امام بخاری رحمه الله مقصد د ترجمة الباب سره يو مشهورې اختلافی مسئلې طرف ته اشاره کول دی چه په خاص توګه حنفيه اومالکيه په مينځ کښې ډيره مختلف فيه ده اوهغه مسئله دا ده چه د انقضاء حيض مدار به په عادت باندې وی که تميز الوان باندې. احناف عادت معتبرګرځوی اومالکيه ددې برعکس صرف تميزالوان معتبرګرځوی. امام شافعی رحمه الله اوامام احمد رحمه الله ددواړو اعتبارکوی عادت د معتاده محضه په حق کښې او تمييز د مميزه محضه په حق کښې. که چرته دواړو کښې اشتباه وی نوامام شافعی رحمه الله تمييز الوان او امام احمد رحمه الله عادت ته ترجيح ورکوی. (٣)

امام بخاری رحمه الله په دې ترجمه سره هم دې اختلاف طرف ته اشاره فرمائيلې ده او د باب روايت سره ئې د فريقين د دلائل طرف ته هم اشاره کړې ده. ليکن څه فيصله ئې نه ده کړې. چنانچه «إذا أقبلت الحيضة» سره ئې تمييزالوان طرف ته اشاره کړې ځکه چه اقبال او ادبار د مالکيه وغيره په نيز دتمييزالوان

---

(١) لامع الدراری: ٣/٢٦٦.

(٢) الکنزالمتواری: ٣/٢٦٦.

(٣) حواله بالا.

دپاره مصطلح دی. او «ذهب قدرها» سره ئې عادت طرف ته اشاره اوکړه لکه چه دا الفاظ پخپله په عادت باندې صريح دلالت کوی.(۱)
بل ددې قول مطابق مذکوره ترجمه د شيخ الهند رحمه الله د اصول تراجم نه څلورم اصل سره متعلق ده.(۲)
**دحضرت مولانا شبيراحمدعثمانی رحمه الله رائې:** حضرت مولانا شبيراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه دحيض اواستحاضه احکام مختلف دی. استحاضه يو عذر دې په کوم کښې چه به مستحاضه مونځ هم کوی روژه به هم ساتی او په دې کښې د مباشرت هم ممانعت نشته دې.(۳)

## الحديث الأول

[۳۰۰]- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ: قَالَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ص:۶۹]: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي لاَ أَطْهُرُ أَفَأَدَعُ الصَّلاَةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّمَا ذَلِكِ عِرْقٌ وَلَيْسَ بِالحَيْضَةِ، فَإِذَا أَقْبَلَتِ الحَيْضَةُ فَاتْرُكِي الصَّلاَةَ، فَإِذَا ذَهَبَ قَدْرُهَا، فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ وَصَلِّي»(۴)-[ر ۲۲۶]

**ترجمه:** حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی حضرت فاطمه بنت جيش رضی الله عنها رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته اووئيل اې دالله رسوله! زه خو هډو پاکيږم نه، نو آيا زه بالکل مونځ پريږدم؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل دا د رګ وينه ده د حيض نه ده، په دې وجه کله چه د حيض ورځې (په کوم کښې چه اول په تاباندې دعادت مطابق حيض راتلو) راشی نومونځ پريږده اوکله چه (د اندازې مطابق) هغه ورځې تيرې شی نو وينه اووينځه اومونځ کوه.

## تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف:** دا مشهور امام اومحدث ابومحمدعبدالله بن يوسف تنيسی کلاعی دمشقی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات کتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب لاندې تيرشوی دی. (۵)
**مالك:** دا امام دارالهجره مالك بن انس بن مالك بن ابی عامربن عمرو الاصبحی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات کتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې تيرشوی دی.(۶)

---

(۱) الکنزالمتواری: ۲۶۷/۳.

(۲) الکنز المتواری:۲۶۷/۳. والأ الرابع أنه قد يترجم بمسئلة اختلفت فيها الأحاديث، فيأتی بتلك الأحاديث على اختلافها ليقرب إلى الفقيه من بعده أمرها، مثاله: (باب خروج النساء إلى البراز)جمع فيه حديثين مختلفين. انتهى. قلت: هذا أصل مطرد معروف عندالشراح، يعبرون عنه بأن الروايات التی لايترجح إحداهما على الأخرى عندالمصنف، لا يجزم بالحکم فی الترجمة.... الخ (الکنزالمتواری: ۳۵۳/۱).

(۳) فضل الباری: ۴۷۵/۲.

(۴) قوله: "عائشة : الحديث مرتخريجه فی کتاب الوضوء باب غسل الدم رقم الحديث: ۲۲۸.

(۵) کشف الباری: ۱۱۳/۴.

**هشام بن عروة**: داهشام بن عروة بن الزبير بن العوام قرشي رحمه الله دې. ددوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب أحب الدین إلی الله أدومه لاندې تیر شوی دی.(۲)

**عروة**: دا مشهور تابعی عروة بن الزبیر بن العوام بن خویلد بن اسد قرشي رحمه الله دې. د دوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب أحب الدین إلی الله أدومه لاندې تیرشوی دی.(۳)

**عائشة**: دا ام المؤمنین سیده عائشه بنت ابی بکر الصدیق رضي الله عنها ده. د دوی حالات بدء الوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی. (۴)

## شرح حدیث

**قولها: لاأطهر**: حضرت فاطمه بنت جیش رضي الله عنها پوهیدله چه حیض د مونځ او روژې نه مانع دې لکه چه دامام ابوداؤد رحمه الله وغیره د روایت نه معلومیږی. په دې روایت کښې دی: «إني امرأة أستحاض حيضة كثيرة شديدة، فماترى فيها قد منعتني الصلاة والصوم الخ» یعنی زه یوه داسې ښځه یم په چاچه شدت او زیاتوالی سره وینه راځی نو په داسې صورت کښې زما دپاره څه حکم دې؟ اودې وینې خو زه د مونځ اوروژې نه منع کړې یم.(۵)

لیکن د وینې د تسلسل د وجې نه په حضرت فاطمه بنت جیش رضي الله عنها باندې دا امر مشتبه شوې وو چه دحیض حکم ختم شو که هغه هم دوینې د دې تسلسل د وجې نه باقی دې؟ ځکه چه دهغې ګمان دا وو چه دحیض نه پاکی او طهارت د دم حیض په منقطع کیدوباندې حاصلیږی په دې وجه هغې د وینې یو شان راتلل عدم طهارت سره تعبیرکولو سره اوفرمائیل: «لاأطهر» او بیائې هم ددغه اشتباه د لرې کولودپاره پوښتنه اوکړه چه حضورپاك په داسې حالت کښې مونځ پریږدم؟(۶)

**قوله: عرق**: دا لفظ دعین کسره سره استعمالیږی اودلته ددې لفظ نه د هغه رګ طرف ته اشاره مقصود ده کوم ته چه عازل وائی.(۷)

**قوله: وليس بالحيضة**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا لفظ په حدیث کښې دواړو خایونوکښې د حاء فتحه سره دې. امام خطابی رحمه الله اکثر، بلکه ټولو محدثینو حضراتو هم دغه شان نقل کړې دې.(۸)

امام نووی رحمه الله فرمائی چه هم د حاء فتحه سره متعین دې ځکه چه داد رسول الله صلی الله علیه وسلم مراد سره ډیر نیزدې دې. په دې وجه مقصود اثبات استحاضه اونفی د حیض ده اودا مقصود هم دحاء فتحه سره

---

۱) كشف الباري: ۸۰/۲.
۲) كشف الباري: ۴۳۲/۲.
۳) كشف الباري: ۴۳۶/۲.
۴) كشف الباري: ۲۹۱/۱.
۵) فتح الباري: ۵۳۱/۱ إرشادالساري: ۵۴۸/۱ معارف السنن: ۴۷۷/۱.
۶) فتح الباري: ۵۳۱/۱ إرشادالساري: ۵۴۸/۱ معارف السنن: ۴۷۷/۱.
۷) شرح الكرماني: ۱۷۴/۳.
۸) فتح الباري: ۵۳۹/۱.

حاصلیږي. (۱)بل دا چه په کسره د حاء هم لوستلې شي که چرې مراد مقصود د حیض د حالت نفی وي.(۲) علامه کرماني رحمه الله فرمائي ددې نه معلومه شوه چه دمستحاضه حکم په ټولو احکاموکښې د پاکو ښځو په شان دې سوا دهغه احکامو چه د یودلیل لاندې مستثنی وي.(۳)

**قوله:: فاغسلي عنك الدم وصلي**: أي: بعدالاغتسال، مراد دادې چه کله چه د حیض ورځې تیرې شي نو وینه اووینځه اوبیا د غسل نه پس مونځ کوه. سره ددې چه په دې روایت کښې د اغتسال تصریح نشته لیکن وړاندې تلوسره «باب إذاحاضت في شهرثلاث حيض» کښې هم په دې حدیث کښې د اغتسال تصریح هم ده مګر په هغه روایت کښې د غسل دم تصریح نشته. چنانچه په هغه روایت کښې دي: «ثم اغتسلي وصلي». مذکوره روایت او راتلونکې روایت دواړه د اصحاب هشام نه نقل دی ځکه چه مالك بن انس رحمه الله اوابواسامه رحمه الله دواړه د هشام بن عروه رحمه الله شاګردان دی.(۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دامذکوره اختلاف (یعنی بعض روایاتوکښې د اغتسال ذکر او غسل دم عدم ذکر او بعض روایاتوکښې ددې برعکس کیدل) د هشام بن عروه رحمه الله د اصحاب په مینځ کښې شوی دی اوټول هم ثقه رواة دی او په صحیحین کښې ددوی روایات موجود دی. لهذا دا لفظی اختلاف به په دې باندې محمول کولې شی چه هر یو راوی په خپل خپل اعتبارسره غیرواضح امریه ذکر کولوباندې اکتفاکړې ده. چنانچه بعض رواة غسل دم ذکر کولو باندې اکتفا اوکړه اوبعض اغتسال ذکرکولو باندې اکتفااوکړه.(۵)

**حیض او استحاضه کښې فرق اودتمیز صورتونه اوپه هغې کښې د ائمه اختلاف**: داخبره اول تیره شوې ده چه حیض اواستحاضه کښې د فرق اوتمیز هم دوه صورتونه دی. الوان (رنګ) سره، یا ایام عادت سره. احناف حضرات ایام عادت او مالکیه حضرات الوان معتبرګرځوي او حنابله اوشوافع د دواړو اعتبارکوی اوکه چرې په دواړو کښې اشتباه وی نو امام شافعي رحمه الله تمییزالوان اوامام احمد رحمه الله د ایام عادت اعتبارکوی.

دلته په روایت کښې «إذاأقبلت الحيضة» الفاظ دی. د ائمه ثلاثه په نیز داقبال معنی ده کله چه توره وینه راتلل شروع شي اود ادبارمعنی ده کله چه توره وینه ختمه شي. نودا اقبال او ادبار د محدثینو حضراتو دوه اصطلاحات دی اوهم ددې نه ائمه ثلاثه استدلال کوی. احناف حضرات فرمائي داچه کوم د اقبال اوادبار معنی بیان کړې شوی دی داد حدیث نه ثابت نه دی بلکه د خپل ځان نه دی لهذا داپه مونږ باندې حجت نه دې. زمونږ په نیز د اقبال معنی وړاندې طرف ته راتلل اود ادبار معنی شاطرف ته تلل دی. لهذا د اقبال معنی د حیض عادت سره راتلل اود ادبار معنی دحیض تلل دعادت سره، شوه. هم په دې وجه زمونږ په نیز د تمییز الوان اعتبار نشته اوزمونږ دلیل هم دغه حدیث دې چه دلته د أقبلت معنی هم هغه ده کومه چه مونږ بیان کړه ځکه چه ددې مقابل أدبرت نه راځی بلکه إذاذهب

---

(۱) فتح الباري: ۵۳۹/۱ شرح الکرماني: ۱۷٤/۳.

(۲) فتح الباري: ۵۳۱/۱ دارالسلام.

(۳) شرح الکرماني: ۱۷٤/۳.

(٤) فتح الباري: ۵۳۱/۱.

(۵) حواله بالا.

قدرها دي. د کوم نه چه معلومه شوه د ادبار معنی ده دحیض وخت ختمیدل، لهذا په دې سره تمییز الوان باندې استدلال نه شی کیدې.[۱]

بهرحال قطع نظر ددې نه چه د حیض او استحاضه په مینځ کښې فرق به دالوان په ذریعه کیږی یا دعادت په ذریعه د ائمه اربعه رحمهم الله په دې باندې اتفاق دې چه دانقطاع حیض نه پس به صرف یو ځل غسل واجب وی. بیا که دحیض نه پس د استحاضه شکل وی نو داحنافو په نیز به دهرمونځ دپاره اودس کول ضروری وی اود دویم مونځ وخت راتلونه وړاندې وړاندې په وخت کښې د وخت د فرائض نه علاوه نور فرائض او نوافل هم ادا کولې شی اوکله چه د دویم مونځ وخت راخی نودهغې دپاره به جدا اودس کول وی اوهم دغه د امام احمد رحمه الله هم مذهب دې.[۲]

شوافع حضرات فرمائی دهرمونځ دپاره به اودس کوی او په یواودس سره به هم یو فرض اداکولې شی کوم سره چه تبعاً نوافل هم صحیح دی. لکه چه د شوافع په نیز د هر مونځ دپاره اودس ضروری دې اود احنافو اوحنابله په نیز د هر وخت د مونځ دپاره اودس ضروری دې.[۳]

مالکیه فرمائی چه دمستحاضه او معذور په حق کښې عذر هیڅ کله ناقض وضو نه وی. که د یومونځ دپاره ئی اودس اوکړو نودهغې نه پس د دویم مونځ د وخت په راتلو باندې نوې اودس ضروری نه دې صرف د استحباب په درجه کښې دې. الآیه چه د نقض وضو څه بل سبب پیښ شوې نه وی نو په داسې صورت کښې به نوې اودس کول وی.[۴]

په دې مقام باندې حافظ ابن حجر رحمه الله دامام شافعی رحمه الله مذهب ته د جمهورو مذهب وئیلې دې لیکن دا صحیح نه دی ځکه چه «المغنی فی فقه الإمام أحمد رحمه الله»[۵] د عبارت نه صفامعلومیږی چه د امام احمدبن حنبل رحمه الله مذهب د امام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب نه مختلف نه دې.[۶]

**فائده:** علامه عینی رحمه الله د فائده په عنوان سره دهغه ښځو نومونه ذکرکړی دی چاته چه په عهدنبوی کښې د استحاضه بیماری شوې وه. هغه نومونه دادی. ① ام حبیبه بنت جحش ② زینب ام المؤمنین ③ اسماء اخت میمونه ④ فاطمه بنت ابی جیش ⑤ حمه بنت جحش ⑥ سهله بنت سهیل ⑦ زینب بنت جحش ⑧ سوده بنت زمعه ⑨ زینب بنت ام سلمه ⑩ اسماء بنت مرشد الحارثیه ⑪ بادیه بنت غیلان.[۷]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ددې روایت نه معلومه شوه چه د ښځې دپاره په خپل ذات پخپله د ښځو متعلق مسائل د سړی نه تپوس کول جائزدی. دغه شان د ضرورت په موقع باندې د ښځې د آواز اوریدو جواز هم معلوم شو.[۸]

---

[۱]) الکنز المتواری: ۳/۲۶۷.

[۲]) فتح الباری: ۱/۵۳۱معارف السنن: ۱/۴۸۱فضل الباری:۲/۴۷۵إرشادالساری: ۱/۵۴۷.

[۳]) فتح الباری: ۱/۵۳۱معارف السنن: ۱/۴۸۱فضل الباری:۲/۴۷۵إرشاد الساری: ۱/۵۴۷.

[۴]) حواله بالا.

[۵]) المغنی لابن قدامة: ۱/۲۰۷.

[۶]) معارف السنن: ۱/۴۸۱.

[۷]) عمدة القاری: ۳/۲۷۷.

[۸]) فتح الباری: ۱/۵۳۲-۵۳۱.

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**: په مذكوره حديث اوترجمة الباب كښې مناسبت واضحه دې اوهغه داسې چه دا باب د استحاضه د حكم په بيان كښې دې او په حديث كښې هم ددې حكم بيان كړې شوې دې.(١)

# ۹-باب: غَسْلِ دَمِ الْحَيْضِ

**ماقبل سره ربط**: علامه عيني رحمه الله فرمائي چه داباب د دم حيض د وينځلوبيان كښې دې. اوددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه د دواړو تعلق د ښځو مسائلوسره دې.(٢) نور فرمائي چه بعض نسخوكښې ترجمة الباب **غسل دم الحيض** او بعض نسخوكښې **غسل دم الحائض** په الفاظوسره دې. او كتاب الوضوء كښې هم امام بخاري رحمه الله دې ترجمة الباب سره يو شان يوه ترجمه قائمه كړې ده يعنى **باب غسل الدم**. علامه عيني رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله په دې دواړوابواب كښې فرق داسې كړې دې چه دا ترجمة الباب خاص دې او كتاب الوضوء كښې عام دې. لكه چه دا د تخصيص بعدالتعميم دقبيل نه دې. (٣)

شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائي چه زما په نيزدا ترجمه شارحه ده. چونكه په حديث كښې د **نضح** لفظ دې د كوم معنى چه د شيندلو ده او د غسل نه مراد وينځل دى نو په ترجمة الباب كښې لفظ **غسل** راوړلوسره امام بخاري رحمه الله اوخودل چه د **نضح** نه مراد **غسل** دې.(٤)

**د حضرت مولانا رشيداحمد گنگوهي رحمه الله رائې**: حضرت مولانا رشيداحمد گنگوهي رحمه الله فرمائي امام بخاري رحمه الله اول **باب غسل الدم** راوړلې دې. په كوم كښې چه د هرې وينې د وينځلو حكم معلوميږي اودې سره ئې باب غسل المني راوړلې وو په كوم سره چه د غسل منى په حكم كښې څه نرمي اوآساني هم واضحه وه. اوس دلته د دم حيض د وينځلو جدا حكم په دې وجه ښائي چه كيدې شي څوك خيال اوكړي لكه څنگه چه غسل منى كښې عام اواكثري ابتلاء په سبب سره تخفيف شوې وو دغه شان د دم حيض په وينځلوكښې هم تخفيف كيدې شي. ددې خيال لرې كول ئې اوكړو او وئې خودل چه ددې حكم هم د نورو وينو په شان دې چه په پوره اهتمام سره د نورو نجاستونو په شان وينځل دى. لكه د غسل منى په حكم كښې خلاف قياس د شريعت نه ثابت شوى دى په كوم چه نور نجاستونه قياس كولې نه شي. (٥)

**دعلامه شبيراحمدعثماني رحمه الله رائې**: علامه شبيراحمد عثماني رحمه الله فرمائي چونكه دحيض وينه په كوم كښې چه ناپاكئي سره سره نوره خرابي هم ده په دې وجه ددې په وينځلوكښې د مبالغې ضرورت دې. لهذا امام بخاري رحمه الله په دې ترجمة الباب كښې هم ددغه مبالغه غسل كيفيت بيانول غواړي.

---

١) عمدة القاري: ۲۷۶/۳.

٢) عمدة القاري: ۲۷۷/۳.

٣) عمدة القاري: ۲۷۷/۳فتح الباري: ۵۳۲/۱إرشادالساري: ۵۴۸/۱.

٤) تقرير بخاري: ۹۸/۲.

٥) لامع الدراري: ۲۶۸/۳.

چنانچه غسل او دوينځلونه اول قرص يعنى ګوتو او يا نوکونووغيره سره د رژولوذکر دې په کوم کښې چه فائده داده چه د کپړو د تارونو پورې چه کومه وينه رسيدلې ده هغه په وينځلوسره اوخي (١)

**د شيخ الحديث زكريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى زما په نيزد ترجمة الباب نه دامام بخارى رحمه الله غرض د كپړو نه د حيض دوينې نجاست ختمولو بيان كول دى او د راتلونكى باب غسل المحيض لاندې د بدن نه د حيض د وينې د نجاست ختمولو بيان به كوى. وجه داده چه د مذكوره باب لاندې امام بخارى رحمه الله كوم دوه احاديث روايت كړى دى په هغې كښې د بدن نه د حيض د وينې د ختمولو بيان دې.

## الحديث الأول

[٣٠٧] - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ أَنَّهَا قَالَتْ: سَأَلَتِ امْرَأَةٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ إِحْدَانَا إِذَا أَصَابَ ثَوْبَهَا الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ كَيْفَ تَصْنَعُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا أَصَابَ ثَوْبَ إِحْدَاكُنَّ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ فَلْتَقْرُصْهُ، ثُمَّ لِتَنْضَحْهُ بِمَاءٍ، ثُمَّ لِتُصَلِّي فِيهِ» (٢) [ر ٢٢٥]

**ترجمه:** اسماء بنت ابوبكر صديق رضي الله عنهما فرمائى يوې ښځې د حضورپاك نه تپوس اوكړو چه يارسول الله صلى الله عليه وسلم! تاسو دداسې ښځې متعلق څه فرمايئى د كومې په كپړو چه د حيض وينه لګيدلې وى هغې له څه كول پكاردى؟ حضورپاك اوفرمائيل كه د يوې ښځې په كپړو باندې دحيض وينه اولګى نوهغه دې اوګره وى دهغې نه پس دې په اوبو سره اووينځى بياپه دغه كپړو كښې مونځ كولې شى.

### تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف:** دا مشهور امام اومحدث ابومحمد عبدالله بن يوسف تنيسى كلاعى دمشقى دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب د رومبى حديث لاندې تيرشوى دى. (٣)

**مالك:** دا امام دارالهجره عالم المدينه امام مالك بن انس بن مالك بن ابى عامر بن عمرو الاصجى المدنى رحمه الله دې. د دوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن د وړاندې حديث لاندې ذكر كولې شى. (٤)

**هشام:** داهشام بن عروة بن الزبير بن العوام قرشى رحمه الله دې. تفصيلى حالات كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوى دى. (٥)

---

(١) فضل الباري: ٤٧٦/٢.
(٢) قوله: "أسماء بنت أبي بكر" الحديث مر تخريجه في كتاب الوضوء باب غسل الدم رقم الحديث: ٢٢٧.
(٣) كشف الباري: ١١٣/٤.
(٤) كشف الباري: ٨٠/٢.
(٥) كشف الباري: ٤٣٢/٢.

**فاطمة بنت المنذر**: دا فاطمه بنت المنذر بن الزبير بن العوام قرشيه اسديه رحمها الله ده. ددې تفصيلی حالات كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس كښې د دريم حديث لاندې تيرشوى دى.[1]

**أسماء بنت أبي بكر الصديق**: داد خليفه اول حضرت ابوبكرصديق رضی الله عنه لور حضرت اسماء رضی الله عنها ده. د حضرت زبير بن العوام رضی الله عنه بى بى ده. ددې تفصيلى حالات كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس كښې د دريم حديث لاندې تيرشوى دى.[2]

## شرح حديث

امام بخارى رحمه الله د حضرت اسماء بنت ابى بكر رضی الله عنها دا روايت كتاب الوضوء باب غسل الدم لاندې د يحيى القطان عن هشام په طريق سره روايت كړې دې او هم په دغه مقام باندې جمله مباحث هم ذكر كړې شوى دى.[3]

علامه انورشاه كشميرى رحمه الله اوفرمائيل چه ددم حيض په نجاست باندې اجماع ده. بياهم په روايت كښې لفظ نضح راغلې دې. ددې نه معلومه شوه چه د نضح نه مراد په شريعت كښې غسل هم (وينځل) دى.[4]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**: په حديث اوترجمة الباب كښې مناسبت بالكل واضح دې ځكه چه په دواړو كښې د حيض وينه وينځلوحكم وركړې شوې دې.[5]

## الحديث الثاني

[۳۰۲]- حَدَّثَنَا أَصْبَغُ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الحَارِثِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ القَاسِمِ، حَدَّثَهُ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: «كَانَتْ إِحْدَانَا تَحِيضُ، ثُمَّ تَقْتَرِصُ الدَّمَ مِنْ ثَوْبِهَا عِنْدَ طُهْرِهَا، فَتَغْسِلُهُ وَتَنْضَحُ عَلَى سَائِرِهِ، ثُمَّ تُصَلِّي فِيهِ»[6]

**ترجمه**: حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائى چه كله به په مونږ كښې په چا حيض راغلو نود كپړو پاكولووخت كښې به هغې وينه رژوله اوهغه ځائى به ئى وينځلو بيابه ئى په ټولو كپړو باندې اوبه بهيولې او بيابه ئى په هغې كښې مونځ كولو.

---

[1] كشف البارى: ۴۸۶/۳.

[2] كشف البارى: ۴۸۷/۳.

[3] فتح البارى: ۵۳۲/۱ عمدة القارى: ۲۸۷/۳.

[4] فيض البارى: ۴۹۴/۱.

[5] عمدة القارى: ۱۲/۳ الكنزالمتوارى: ۲۶۸/۳.

[6] رواه أبوداؤد فى الطهارة باب فى الرجل يصيب منها مادون الجماع رقم الحديث: ۲۶۹ وباب المرأة تغسل ثوبها الخ رقم الحديث: ۳۵۷ وباب الإعادة من النجاسة تكون فى الثوب رقم الحديث: ۳۸۸ والنسائى فى الطهارة باب مضاجعة الحائض رقم الحديث: ۲۸۴.

## تراجم رجال

**أصبغ**: دا اصبغ بن الفرج بن سعيد بن نافع القرشي الاموی المصری رحمه الله دي. ددوی کنيت ابوعبدالله دي. ددوی احوال کتاب الوضوء باب المسح على الخفين لاندې تيرشوی دی.

**ابن وهب**: دا مشهور امام اومحدث ابومحمد عبدالله بن وهب بن مسلم قرشی فهری مصری رحمه الله دي. ددوی تفصيلی احوال کتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه في الدين لاندې تيرشوی دی.[1]

**عمرو بن الحارث**: داعمرو بن الحارث بن يعقوب بن عبدالله انصاری مصری رحمه الله دي. ددوی تفصيلی احوال کتاب الوضوء باب المسح على الخفين لاندې تيرشوی دی.

**عبدالرحمن بن القاسم**: دا مشهور امام او محدث عبدالرحمن بن القاسم بن محمد بن ابی بکر الصديق رضي الله عنه دي. ددوی تفصيلی احوال کتاب الغسل باب هل يدخل الجنب يده الخ لاندې تيرشوی دی.

**قاسم**: دا قاسم بن محمد ابن ابی بکرصديق رضي الله عنه دي. ددوی حالات «کتاب الغسل باب من بدأ بالحلاب أو الطيب عند الغسل» لاندې تفصيلاً تيرشوی دی.

**عائشة**: دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابی بکر صديق رضي الله عنهما ده. ددوی حالات «بدء الوحی» ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوی دی.[2]

## شرح حديث

**قولها: كانت إحدانا**: دې نه مراد ازواج نبی صلی الله علیه وسلم دی.[3]

مطلب داچه درسول اکرم صلی الله علیه وسلم په مبارك دورکښې چه کله د ازواج مطهرات رضی الله عنهن کپړو پورې د حيض وينه لګيدله نوهغوی به د دغه وينې نه داسې پاکی حاصلوله څنګه چه په روايت کښې ذکرشو اوداسې به دا حديث د حديث مرفوع په حکم کښې وی. د کوم تائيدچه دحضرت اسماء رضي الله عنها د حديث نه کيږی کوم چه د مذکوره روايت نه وړاندې تيرشوې دې څکه چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم پخپله هم دغه طريقه د وينې د ختمولو بيان فرمائيلې ده.[4]

**دابن بطال رحمه الله رائې**: ابن بطال رحمه الله فرمائی چه حديث عائشه رضي الله عنها د حديث اسماء رضي الله عنها د پاره تفسيردې اودا چه دحضرت اسماء رضي الله عنها په حديث کښې راغلې لفظ نضح نه مراد غسل دې لکه چه عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل او دحضرت عائشه رضي الله عنها قول «وتنضح على سائره» نه مراد رش يعنی د اوبو څڼرکاؤ دې. وينځل مراد نه دی. وجه دا ده چه په کپړو کښې به په کوم ځائی وينه لګيدلې وه نوهغه ځائی به نې وينځلو لکه چه په روايت کښې ددې صراحت دې او په باقی کپړو به چونکه وينه نه وه لګيدلې نوهلته د وسوسې د ختمولو دپاره به ئې د اوبوڅڼرکاؤ کولو. څکه چه داسې خو کيدې نه شو چه د وينې بعض ځائی اووينځلې شی اوبعض د وينې په ځائی باندې صرف د اوبو څڼرکاؤ وی.[5]

---

[1] کشف الباری: ۲۷۷/۳.

[2] کشف الباری: ۲۹۱/۱.

[3] فتح الباری: ۵۳۲/۱عمدة القاری: ۲۷۸/۳.

[4] فتح الباری: ۵۳۲/۱عمدة القاری: ۲۷۸/۳.

[5] شرح ابن بطال: ۴۳۵/۱فتح الباری: ۵۳۲/۱عمدة القاری: ۲۷۸/۳.

**قوله: تقترص الدم من ثوبها**: تقترص: بالقاف والصاد المهملة داد تفتعل په وزن باندې دې اوددې معنی ده د ګوتو د غاړو په ذريعه د وينو څاڅکي وينځل. ابن جوزي رحمه الله ددې لفظ معنی تقتطع سره کړې ده يعنی هغه به د وينې د ځائی نه هغه څاڅکې پرې کولو جدا کولو به نی. ليکن ددې دواړو معنو نه هم ړومبې معنی زياته مناسبت ده اود حضرت اسماء رضي الله عنها د حديث موافق ده. ځکه چه په حديث د اسماء رضي الله عنها فلتقرصه الفاظ دی. د کوم معنی چه د رږولو راځی نه چه د پرې کولو. بل دلته هم په يو روايت کښې تقترص په ځائی باندې ثم تقرص الدم من ثوبها الفاظ دی.(۱) شراح حضراتو ليکلی دی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د رږولوحکم ځکه ورکړو ځکه چه د وينو د دغه څاڅکود رږولونه پس وينځلوسره هغه داغونه وغيره په آسانئی سره ختميږی او کپړه پاکيږی.(۲)

**قوله: عند طهرها**: دغه شان په اکثرو رواياتوکښې ذکردی. خود حموی او مستملی په رواياتو کښې عند طهره الفاظ دی او ضميرد ثوب طرف ته راجع دې اومعنی داده چه کله به د دغه کپړې د پاکولو اراده کيدله نوبيابه ئی هغه داغ رږولو او وينځلوبه ئی. ددې نه معلومه شوه چه کله د کپړې د پاکولو زر حاجت نه وی نو نجاست پريخودلې شی بيا چه کله د پاکولو حاجت وی نو په دغه موقع دې پاکه کړی.(۳)

**قوله: ثم تصلي فيه**: پدې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه پليته کپړه کښې مونځ کول منع دی (۴)امام ابومحمدعبدالله بن ابی جمرة اندلسی رحمه الله په باب مذکورکښې دحضرت عائشه رضي الله عنها دحديث لاندې يوڅو نکات ذکرکړی دی: ① ړومبې نکته ئی دا ذکرکړې ده چه عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل «كانت إحدانا تحيض»چه کله به مونږ ازواج مطهرات نه چاته د حيض شکايت شو نو عائشه رضي الله عنها علی العموم د ټولو ازواج مطهرات خبر ورکړو صرف دخپل ذات متعلق ئی خبر ورنه کړو. نو په دې کښې نکته داده که چرې هغې صرف دخپل ذات متعلق خبرورکړې وې نو بيا به دا احتمال کيدو چه داحکم او عمل صرف حضرت عائشه رضي الله عنها سره خاص وو خوددې برعکس علی العموم دخبر ورکولو فائده داده چه عموم ددې خبرې مقتضی دې چه دا حکم مضبوطيا پوخوالی سره د ټولو ازواج سره دې.

② دويمه نکته دا چه ددې حديث نه معلومه شوه چه کله د يوڅيز متعلق خبر ورکول وی نوهغه خبر په واضحه او صفا انداز سره ورکول پکاردی. اوددې نه داهم مستنبط کيږی چه داحکامو د ثابتولو په غرض سره دهغه خبرو اظهار کيدې شی د کوم نه چه طبيعت کرکه کوی لکه چه دلته په حديث باب کښې حضرت عائشه رضي الله عنها د حيض تذکره اوکړه اود هغې نسبت ئی ټولو ازواج مطهرات طرف ته اوکړو. دغه شان د نجاست دم د رږولو او بيائی د وينځلو تذکره اوکړه.

③ دحديث شريف الفاظ: «ثم تقرص الدم من ثوبها عند طهرها فتغسله» نه معلومه شوه د نجاست لرې کول د عبادت د وجوب دمتوجه کيدو په وخت لازم او ضروری وی. لهذا که چرې د نجاست د زر لرې کولو حاجت نه وی نو نجاست پريخودې شی.

---

(۱) فتح الباری: ۵۳۲/۱عمدة القاری: ۲۷۸/۳.

(۲) عمدة القاری: ۲۷۸/۳بهجة النفوس: ۱۶۵/۱.

(۳) فتح الباری: ۵۳۳/۱بهجة النفوس: ۱۶۵/۱.

(۴) فتح الباری: ۵۳۳/۱بهجة النفوس: ۱۶۵/۱.

④ ثم تقترص الدم، دې نه معلومیږي چه رژول د نجاست په زوال کښې ممدومعاون دې په داسې معنی چه د رژولو نه پس دنجاست ختمول آسانیږي ځکه چه دایوه عامه شان خبره ده چه که نجاست دجرم وجسم والاوی اوبغیرد رژولو نه په هغې باندې اوبه واچولې شي نوهغه نجاست په کپړه کښې خوریږي.

⑤ پنځمه نکته داده چه د ازواج مطهرات د رژولو د عمل نه معلومیږي چه په کارونوکښې کم او آسان کار اختیارول پکاردی لکه چه دلته نقل دی چه اول به اوزاج مطهرات نجاست رژولو اوبیابه ئې وینځلو نومعلومه شوه چه ازواج مطهرات به د نجاست د ختمولودپاره آسان عمل اختیارولو ځکه چه ددې عمل نه پس به نجاست په آسانئ سره ختمیدو.

⑥ دحدیث شریف نه یو حکم دا هم مستنبط کیږي چه په کوم کوم ځائې باندې د نجاست لګیدل یقیني وی نوهغه به وینځلې شي او چرته چه شك او وسوسه وی په هغې باندې به اوبه چنرکاؤ کولې شي دې دپاره چه وسوسه ختمه شي.

⑦ ددې حدیث نه معلومه شوه چه د حائضه مونځ کول د حیض په ختمیدو او د طهر په شروع کیدو اودغه شان د وینې د نجاست په ختمولو او اوبو سره پاکي حاصلولو (که چرته اوبه وی) نه پس صحیح کیږي. دې نه وړاندې حائضه مونځ نه شي کولې. اودا حکم دحدیث باب نه داسې مستنبط کیږي چه حضرت عائشه رضي الله عنها اول ټول احوماال او اوصاف ذکر کړل اود هغې نه پس ئې د مونځ کولو ذکر اوکړو.

⑧ دحدیث عائشه رضي الله عنها نه دا هم معلومه شوه چه د حائضه ښځې بدن او خوله پاکه او طاهر ده. ځکه چه یوه ښځه دومره ورځې په حیض کښې تیره وی نود خولې راتلل خو لازمی خبره ده او بیا په حدیث کښې صرف دکپړې دهغه ځائې وینځلو حکم ورکړې شو چرته چه نجاست لیګلې وی اوباقی باندې د اوبو د چنرکاؤ ذکر دې. که چرې خوله پاکه نه وه نوبدن سره به د ټولو کپړو د وینځلو حکم وو نه صرف نضح اوچنرکاؤ به کافی نه وې.[1]

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حدیث اوترجمة الباب کښې مناسبت بالکل واضح دې ځکه چه په دواړو کښې د حیض وینې وینځلوتذکره ده.[2]

## ۱۰ - باب: الاعتکاف للمستحاضة

**اعتکاف:** عکوف نه ماخوذدې. دکوم معنی چه دبندیدلو او منع کیدلو راځی. چنانچه ارشاد باری تعالی دې ﴿وَالْهَدْيَ مَعْكُوفًا أَنْ يَبْلُغَ مَحِلَّهُ﴾ إي: ممنوعاً. هم ددې نه اعتکاف شرعی هم دې ځکه چه معتکف خپل ځان د الله تعالی د رضا اوخوشحالئ اود الله تعالی قربَ حاصلولو دپاره دالله تعالی په کورکښې بندوی اودشریعت په اصطلاح کښې د اعتکاف تعریف دادې: **الاعتکاف: هواللبث في المسجد بنية الاعتکاف** یعنی شرعاً اعتکاف، د اعتکاف په نیت سره په جمات کښې حصاریدو ته وائی.[3]

[1] بهجة النفوس: ۱/۱۶۶-۱۶۵.

[2] عمدة القاري: ۲۷۸/۳ الکنزالمتواری: ۲۶۸/۳.

[3] البحرالرائق: ۵۲۲/۲ البنایة شرح الهدایة: ۱۲۱/٤.

**ماقبل سره ربط:** باب غسل دم المحيض او په مذكوره باب كښې مناسبت ښكاره دې چه په دواړو كښې د ښځو متعلق احكام دى.(١)

## دترجمة الباب مقصد:

**د حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله دكلام نه معلوميږى چه دامام بخارى رحمه الله مقصد دمستحاضه دپاره په اعتكاف كښې د كيناستو د جواز بيان كول دى.(٢) هم دا خبره د څه وضاحت سره حضرت شيخ الحديث زكريا رحمه الله بيان كړې ده هغوى فرمائى چونكه اعتكاف په مساجدكښې كيږى او مساجد د مستقدرات اونجاسات يعنى د ګندګئى نه د پاك ساتلو حكم وركړې شوې دې او مستحاضه باندې وينه راځى كوم چه نجس او ګندګى ده. نو په دې سره په ظاهره وهم كيدلو چه هغه اعتكاف نه شى كولې نوامام بخارى رحمه الله تنبيه اوكړه چه ددې اعتكاف كول جائزدى.(٣)

**دعلامه رشيداحمدګنګوهى رحمه الله رائې:** حضرت مولانارشيداحمد ګنګوهى رحمه الله فرمائى د امام بخارى رحمه الله مقصد داخودل دى چه د حيض په وجه كوم امور منع وو د استحاضه د وجې نه د هغې ممانعت نشته البته دومره احتياط ضرور دې چه د مساجد تلويث نه وى. (٤)

## الحديث الأول

[٣٠٣]- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ، قَالَ: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَكَفَ مَعَهُ بَعْضُ نِسَائِهِ وَهِيَ مُسْتَحَاضَةٌ تَرَى الدَّمَ» ، فَرُبَّمَا وَضَعَتِ الطَّسْتَ تَحْتَهَا مِنَ الدَّمِ، وَزَعَمَ أَنَّ عَائِشَةَ رَأَتْ مَاءَ العُصْفُرِ، فَقَالَتْ: كَأَنَّ هَذَا شَيْءٌ كَانَتْ فُلاَنَةُ تَجِدُهُ(٥)- [٣٠٣]

**ترجمه:** دعائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ سره بعض ازواج مطهرات اعتكاف اوكړدو حالانكه هغوى مستحاضه وې په هغوى باندې به وينه راتلله، په دې وجه به نى د دغه وينې د وجې اكثر ركيبنى دخپل ځان لاندې كيخودله. اوعكرمه رحمه الله اووئيل عائشه رضي الله عنها د كسم اوبه اوليدلې نو ونى فرمائيل چه دا خو هم داسې معلوميږى لكه چه فلانكې صاحبه ته به د استحاضه وينه راتلله

---

(١) عمدة القارى: ٢٧٨/٣.

(٢) فتح البارى: ٥٣٣/١عمدة القارى: ٢٧٨/٣.

(٣) تقرير بخارى: ٩٩/٢-٩٨.

(٤) لامع الدرارى: ٢٦٩/٣.

(٥) قوله: عائشة: الحديث رواه البخارى فى نفس الباب أيضاً تحت رقم الحديث: ٣١١-٣١٠ وكذا فى كتاب الاعتكاف باب اعتكاف المستحاضة رقم الحديث: ٢٠٣٧ وأبوداؤد فى الصيام باب فى المستحاضة تعتكف رقم الحديث: ٢٤٧٦ وابن ماجه فى كتاب الصيام باب المستحاضة تعتكف رقم الحديث: ١٧٨٠.

## تراجم رجال

**اسحاق بن شاهين**: دا مشهور امام اومحدث اسحاق بن شاهين بن حارث واسطی رحمه الله دې. د دوی کنیت ابوبشر بن ابی عمران دې.[1]

هغوی د هشیم بن بشیر، خالد الطحان، ابن عیینه، بشر بن مبشر اوحکم بن ظهیر رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کوی. اوددوی نه امام بخاری، امام نسائی، ابوبکربن علی المروزی، ابن خزیمه، اسلم بن سهل الواسطی، ابوحنیفه محمدبن ماهان واسطی، محمدبن الحسیب الارغیانی او ابن صائد رحمهم الله وغیره د حدیث روایت کړې دې.[2]

امام نسائی رحمه الله فرمائی **لابأس به**.[3] بل حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام نسائی د خپلو شیوخو د نومونو په تذکره کښې فرمائیلی دی: «**کتبنا عنه بواسط صدوق**» یعنی مونږ داسحاق بن شاهین نه مقام واسط کښې د حدیث کتابت کړې او دائی هم فرمائیلی چه دې صدوق دې.[4] مسلمه الاندلسی رحمه الله فرمائی **صدوق**.[5] ابن حبان رحمه الله د دوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[6] ابن حبان رحمه الله فرمائی **مستقیم الحدیث**.[7]

امام بخاری رحمه الله د دوی نه ۱۶ احادیث نقل کړی دی. امام حاکم رحمه الله او ابوحاتم بن حبان رحمه الله هم په خپل صحیح کښې د دوی نه احادیث روایت کړی دی.[8] د دوی انتقال ۲۵۰ هجری نه پس شوې.[9] او هغوی د سلوکالونه زیات عمر تیرکړې دې.[10]

**خالد بن عبدالله**: داخالد بن عبدالله بن عبدالرحمن بن یزید الطحان الواسطی رحمه الله دې. ددوی کنیت ابوالهیثم دې او یوقول داهم دې چه د دوی کنیت ابومحمد دې.[11] هم دوی سره متعلق حکایت دې چه هغوی د خپل وزن برابر درې ځل چاندی صدقه کړې وه.[12] ددوی تفصیلی حالات **کتاب الوضوء باب من مضمض واستنشق من غرفة واحدة** لاندې تیرشوی دی.

---

[1]) تهذیب الکمال: ۴۳۴/۲ تهذیب التهذیب: ۲۳۶/۱.
[2]) تلامذه اومشائخ دتفصیل دپاره اوګورئی: تهذیب الکمال:۴۳۴/۱.
[3]) تهذیب الکمال: ۴۳۵/۲ تهذیب التهذیب: ۲۳۷/۱.
[4]) تهذیب التهذیب: ۲۳۷/۱.
[5]) تهذیب الکمال: ۴۳۵/۲ تهذیب التهذیب: ۲۳۷/۱.
[6]) ۱۱۷/۸.
[7]) حواله سابق.
[8]) إکمال تهذیب الکمال: ۹۶/۲.
[9]) کتاب الثقات لابن حبان: ۱۱۷/۸.
[10]) تهذیب الکمال: ۴۳۵/۲.
[11]) تهذیب الکمال: ۸/ ۱۰۰-۹۹.
[12]) عمدة القاری:۲۷۹/۳.

**خالد**: دا مشهورمحدث ابوالمُنازل خالد بن مهران الحَذاء البصری رحمه الله دي. ددوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب قول النبی صلی الله علیه وسلم «اللهم علمه الکتاب» لاندې تیرشوی دی.[۱]

**عکرمة**: دا مشهور امام حدیث و تفسیر ابوعبدالله عکرمه مولی عبدالله بن عباس مدنی رحمه الله دي. ددوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب قول النبی صلی الله علیه وسلم «اللهم علمه الکتاب» لاندې تیرشوی دی.[۲]

**عائشة**: دا ام المؤمنین حضرت سیده عائشه بنت ابی بکر صدیق رضي الله عنها ده. ددوی حالات «بدء الوحی» ددویم حدیث لاندې تفصیلاً تیرشوی دی.[۳]

## شرح حدیث

**قوله:: بعض نسائه**: دا په حالت رفعی کښې دې ځکه چه داد اعتکف فاعل دې.[۴]

**قوله:: وهي مستحاضة**: داجمله اسمیه ده چه حال واقع کیږی. اوس دلته دا سوال پیداکیږی چه دلته د مؤنث ضمیر ولې راوړلې شو ځکه چه ضمیرد لفظ **بعض** طرف ته راګرځی اوهغه مذکردې؟ جواب دادې چه دا ضمیر مؤنث په دې وجه راوړلې شوې دې چه مضاف «لفظ **بعض**» دمضاف الیه «نساء» نه تانیث کسب کړې دې. دویم جواب دادې چونکه دلته په دې مقام باندې لفظ **بعض** مصداق نساء دې په دې وجه د مؤنث ضمیر راوړلې دې. بل دا خبره ده چه سره ددې استحاضه ښځوسره خاص دې مګر ددې باوجود لفظ **مستحاضة** سره تاء د تانیث الحاق د وجې نه کړې شوې دې چه مراد بالفعل د استحاضه والاکیدل دی. یعنی هغوی حضورپاك صلی الله علیه وسلم سره په اعتکاف کښې کیناستې حال دادې چه په هغه وخت هم ورته د استحاضه بیماری وه.[۵]

**قوله:: ترى الدم**: دا جمله فعلیه ده کوم چه دلفظ **مستحاضة** دپاره صفت لازمه دې اودا جمله په دې باندې ښکاره دلیل دې چه مراد بالفعل د استحاضه والاکیدل دی. دا مراد نه دې چه دهغه ښځونه وې په چا باندې چه به د استحاضې وینه راتلله.[۶]

**قوله:: بعض نسائه**: ابن جوزی رحمه الله فرمانې چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ازواج مطهرات نه به په چاباندې هم استحاضه نه راتله اودلته په روایت دحضرت عائشه رضي الله عنها کښې چه کوم "بعض نسائه" راغلې دې نوددې نه مراد "بعض نساء امته" دې یعنی د امت هغه ښځې مراد دی د چاچه حضورپاك سره څه تعلق اورشته هم وه اودلته ام حبیبه بنت جحش رضي الله عنها مراد ده چه دام المؤمنین زینب بنت جحش رضي الله عنها خور ده.

---

[۱] کشف الباری: ۳۶۱/۳.

[۲] کشف الباری: ۳۶۳/۳.

[۳] کشف الباری: ۲۹۱/۱.

[۴] عمده القاری: ۲۷۹/۳.

[۵] عمدة القاری: ۲۷۹/۳.

[۶] عمدة القاری: ۲۷۹/۳.

حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله ددې په جواب کښې اوفرمائیل چه دابن جوزی رحمه الله ددې پیش کړې شوی تاویل پخپله ددې باب دویم او دریم حدیث تردیدکوی خکه چه په دویم روایت کښې "امرأة من أزواجه" اوپه دریم روایت کښې "بعض أمهات المؤمنين" تصریح ده. د کوم نه چه په واضحه توګه معلومیږی چه دلته هم د ازواج نبی ﷺ نه یوه مراد ده. بل د ابن جوزی رحمه الله د قول او تاویل د بطلان یو دلیل داهم دې چه د حضورپاك د شان اقدس نه ډیره لرې خبره ده چه دغیر ازواج نه یوه ښځه حضورپاك سره اعتکاف اوکړی که هرڅومره تعلق ولې نه وی.(۱)

**د بعض نساء مصداق**: اوس سوال دا پیداکیږی چه بیا د **بعض نسائه** مصداق د ازواج مطهرات رضی الله عنهن نه کومه یوه زوجه ده. نو په دې سلسله کښې علامه عینی رحمه الله درې اقوال ذکرکړی دی. یوقول دادې چه ام المؤمنین حضرت سوده بنت زمعه رضي الله عنها مراد ده. دویم قول دادې چه رمله ام حبیبه بنت ابی سفیان رضي الله عنها مراد ده او دریم قول دادې چه زینب بنت جحش رضي الله عنها مراد ده.(۲)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله هم درې اقوال ذکرکړی دی. یو سوده بنت زمعه رضي الله عنها، دویمه ام سلمه رضي الله عنها او دریمه ام حبیبه بنت ابی سفیان رضي الله عنها خکه چه دا درېواړه ازواج مطهرات مستحاضات وې او بیا ددې درېواړو اقوالونه د سنن سعید بن منصور په تائیدسره حضرت ام سلمه رضي الله عنها مراد کیدو ته ئې ترجیح ورکړې. دسنن سعیدبن منصور هغه روایت دادې:(**عن عكرمة أن أم سلمة كانت عاكفة وهي مستحاضة وربما جعلت الطست تحتها**)، یعنی د عکرمه رحمه الله نه روایت دې چه ام سلمه رضي الله عنها د استحاضه په حالت کښې اعتکاف کښې ناسته وه او د وجې د وجې نه به ئې د ځان لاندې رکیبئی کیخودله.(۳)

وړاندې حافظ ابن حجر رحمه الله دحدیث الفاظ فلانة د تفسیرلاندې فرمائی چه دلته هم هغه درېواړه احتمالات دی کوم چه اول بعض نسائه سره متعلق بیان شوی. اود علامه ابن جوزی رحمه الله په نیز چه د ازواج نبی ﷺ نه څوك مراد نه دی بلکه هغه مستحاضه ښځې مراد دی د کومو چه حضورپاك سره څه تعلق یا رشته وه. په دې وجه دهغوی بیان کړې شوی تاویل مطابق دلته ام حبیبه بنت جحش (اخت زینب بنت جحش زوجة رسول ﷺ) زینب بنت ام سلمه (ربيبة رسول ﷺ) اسماء بنت عمیس (اخت میمونه لامها) اوحمنه بنت جحش نه یوه ښځه هم مراد کیدې شی. خکه چه دا ټولې مستحاضات وې اوددوی حضورپاك سره تعلق او رشته داری هم وه.(۴)

حاصل دا شو چه دازواج مطهرات نه څوك مراد دی نودهغوی نه سوده بنت زمعه، ام سلمه او رمله ام حبیبه بنت ابی سفیان نه به یوه مراد وی. که چرته دابن جوزی رحمه الله په تاویل باندې عمل اوکړې شی نو رشته داری لرونکو ښځو نه ام حبیبه بنت جحش، حمنه بنت جحش (اختا زینب بنت جحش زوجة رسول ﷺ)، اسماء بنت عمیس او زینب بنت ام سلمه رضي الله عنها نه کومه یوه هم مراد کیدې شی. خکه چه د نیزدې رشته دارو نه هم دغه مستحاضه وې او دغه شان ټولې یو ځائی کولو سره ددې ابهام په تفسیرکښې اووه اقوال جوړیږی.

(۱) فتح الباري: ۵۳۳/۱ عمدة القاري: ۲۷۹/۳ إرشادالساري: ۵۳۹/۱.

(۲) عمدة القاري: ۲۷۹/۳.

(۳) فتح الباري: ۵۳٤/۱.

(٤) حواله بالا.

بل ابن عبدالبر رحمه الله ليکی چه زوجۀ رسول ﷺ حضرت زينب بنت جحش، زوجۀ طلحه حضرت حمنه بنت جحش او زوجۀ عبدالرحمن بن عوف حضرت ام حبيبه بنت جحش دريواړه خوئينيدې مستحاضه وې. البته په دوی کښې مشهوره حضرت ام حبيبه بنت جحش ده.(۱) په دې وجه امام ابوداؤد رحمه الله (۲) چه د سليمان بن کثير عن الزهري عن عروة په طريق سره دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت کړې دې چه «استحيضت زينب بنت جحش، فقال لها النبي صلى الله عليه وسلم: اغتسلي لکل صلاة» يعنی حضرت زينب بنت جحش ته د استحاضې بيماری اوشوه نو حضورپاك هغې ته اوفرمائيل چه دهرمونځ دپاره غسل کوه، د کوم ذکرچه موطاامام مالك کښې هم دې (۳)او په دې کښې تصريح ده چه «التی کانت تحت عبدالرحمن بن عوف» نوددې روايت لاندې ابن عبدالبر رحمه الله جزم سره فرمائی چه دا په خطاباندې مبنی دې خکه چه د بنات جحش نه مستحاضه (کيدو کښې مشهوره) هغه وې کومې چه دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه په عقدنکاح کښې وې اوهغه ام حبيبه بنت جحش ده.(۴)

امام بلقينی رحمه الله فرمائی چه په دواړو خبروکښې د تطبيق صورت دادې چه زينت بنت جحش رضي الله عنها وقتی استحاضه وه. خودهغې خور ام حبيبه دائمی استحاضه وه داسې به په دواړو خبروکښې تطبيق اوشی.(۵)

**قوله: الطست**: دد لفظ اصل "طس" (سين مشدد) دې د ثقل د وجې نه يو سين په تاء سره بدل کړې شو په دې وجه د جمع اوتصغيردپاره به د اصل طرف ته راګرځولې شی. لهذا د **طست** جمع **طساس** او تصغير **طُسيس** راځی.(۶)نور لفظ **طست** د سين په ځائی شين سره هم مستعمل دې يعنی **طشت** اوددې جمع **طشوت** راځی.(۷)

**قوله: من الدم**: کلمه د"من" تعليليه ده يعنی هغې به د وينې د وجې نه د خپل ځان لاندې طشت کيخودلو.(۸)

**قوله: زعم**: زعم فعل ماضی دې په دې کښې ضميرفاعل دې کوم چه دعکرمه رحمه الله طرف ته راګرځی او زعم دقال په معنی کښې دې.(۹)

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله د **قال** په ځائی د **زعم** لفظ کيدې شی چه ددې وجې نه راوړې وی چه دهغوی په نيزددې قول دحضرت عکرمه رحمه الله نه روايت کيدل په صراحت سره نقل نه دی

---

(۱) فتح الباري: ۵۳۳/۱عمدة القاري: ۲۷۹/۳.

(۲) سنن أبی داؤد کتاب الطهارة باب ماروی أن المستحاضة تغتسل لکل صلاة رقم الحديث:۲۹۲.

(۳) الموطا للإمام مالک کتاب الطهارة باب المستحاضة رقم الحديث : ۲۰۰مؤسسة زايد بن سلطان ال نهيان.

(۴) الاستذکار: ۳۸۷/۱فتح الباري: ۵۳۳/۱أوجز المسالک: ۶۲۹/۱

(۵) فتح الباري: ۵۳٤/۱.

(۶) شرح الکرمانی: ۱۷۶/۳عمدة القاري:۲۷۹/۳.

(۷) عمدةالقاري:٤١٤/٣.

(۸) فتح الباري: ۵۳٤/۱عمدة القاري: ۲۷۹/۳.

(۹) عمدة القاري: ۲۷۹/۳.

بلکه هغوی د قرائن د دلالت نه دا قول دعکرمه رحمه الله نه نقل کیدل گنړلی دی. په دې وجه د قال په ځائی زعم راوړلې اودا مقوله صراحت سره د حضرت عکرمه رحمه الله طرف ته نه ده منسوب کړې.(۱)

بیا یاخودا قول د امام بخاری دټولو تعلیقاتونه دې یابیادخالد الخداء دقول تتمه ده اودویم (دخالد الخداء د قول تتمه کیدو)په صورت کښې به داهم د سند په درجه کښې وی ځکه چه په دې صورت کښې ددې عطف عن عکرمة باندې په اعتبارد معنی وی یعنی قال خالد: قال عکرمة وزعم عکرمة. (۲)

حافظ ابن حجر ددې قول تعلیقات د امام بخاری رحمه الله نه کیدل بعید گرځولی دی.(۳) لیکن په دې کلام باندې رد کولوسره علامه عینی رحمه الله فرمائی په حقیقت کښې دا د علامه کرمانی رحمه الله قول ردکول دی خود دې رد څه وجه نه جوړیږی ځکه چه دواړه داحتمال په درجه کښې دی اودمعنې د عطف احتمال ددې قول تعلیقات د امام بخاری رحمه الله نه د کیدو احتمال نه رد کوی. خو پخپله عطف معنوی گرځول د ظاهر خلاف دی ځکه چه په عطف کښې اصل هم دغه دی چه هغه دې په ظاهر باندې وی. (۴)

**قوله: فلانة:** ددې ابهام مکمل توضیح «بعض نسائه» د تشریح لاندې تیرشوې دې.

**مذاهب الأئمة الأربعة في اعتكاف النسوة في المسجد:** ائمه ثلاثه (امام مالك، امام شافعی او امام احمد رحمهم الله) په نیزسرې اوښځه (چه هغه مستحاضه ولې نه وی ځکه چه مستحاضه هم حکماً د پاکو ښځو په شان ده) دواړو دپاره په جمات کښې اعتکاف کول صحیح دی. لکه چه د فقه کتابونو کښې په دې عبارت سره واضحه کیږی: ① «وأما الاعتكاف في مساجد البيوت، فلا يصح عند مالك لرجل ولا امرأة، خلاف قول أبي حنيفة في أن المرأة تعتكف في مسجد بيتها»(۵) یعنی د کورونو په جماتونو کښې اعتکاف کول دامام مالك رحمه الله په نیز نه د یوسړی دپاره جائز دې اونه د یوې ښځې د پاره په خلاف د امام ابوحنیفه ځکه چه دهغوی مذهب دادې چه ښځه به د خپل کور په جمات کښې اعتکاف کوی.

② «قلت لابن القاسم: ما قول مالك في المرأة، تعتكف في مسجد الجماعة؟ قال: نعم. (قلت) أتعتكف في قول مالك في مسجد بيتها؟ (فقال) لا يعجبني ذلك، وإنما الاعتكاف في المساجد التي توضع لله» (۶)

یعنی سحنون بن سعید التنوخی رحمه الله فرمائی چه ما د ابن القاسم رحمه الله نه تپوس اوکړو چه امام مالك رحمه الله د ښځې دپاره په مسجد جماعت کښې د اعتکاف کولومتعلق څه فرمائی؟ نوهغوی جواب راکړو چه اوجې، دامام مالك رحمه الله په نیز به ښځه په مسجد جماعت کښې اعتکاف کوی. سحنون بن سعید رحمه الله وائی چه بیا ما تپوس اوکړو چه آیا دامام مالك رحمه الله په نیزښځه د کور په جمات کښې اعتکاف کولې شی؟ نوهغوی اووئیل زما دا خبره خوښه نه ده اعتکاف خو صرف په مساجدکښې کیږی چه د الله تعالی د پاره وضع کړې شوی دی.

---

(۱) شرح الکرمانی: ۱۷۶/۳عمدة القاری: ۲۷۹/۳.
(۲) حواله بالا.
(۳) فتح الباری: ۵۳٤/۱.
(٤) عمدة القاری: ۲۷۹/۳.
(۵) البیان والتحصیل، فی فقه الإمام مالک رحمه الله کتاب الصیام والاعتکاف رقم المسألة: ۱۵. ۲۲۳/۲ دارالغرب الإسلامی.
(۶) المدونة الکبری کتاب الاعتکاف ، فی اعتکاف العبد والمکاتب والمرأة الخ: ۲۳۱/۱مطبعة السعادة.

③ ((لايصح الاعتكاف من الرجل والا من المرأة إلا في المسجد، ولا يصح في مسجد بيت المرأة ولا مسجد بيت الرجل، وهو المعتزل المهيأ للصلاة، هذا هو المذهب وبه قطع المصنف))([1])
يعنې دسړي او ښځې اعتكاف كول صرف په جمات كښې صحيح دي اود كور د جمات نه هغه خائى مراد دې كوم چه د مونځ كولو دپاره تيارولې شي. علامه نووى رحمه الله فرمائى چه د شوافع هم دغه مذهب دې اوهم په دې باندې مصنف جزم فرمائيلې دې.

④ ((وللمرأة أن تعتكف في كل مسجد ولا يشترط إقامة الجماعة، لأنها غير واجبة عليها، وبهذا قال الشافعي: وليس لها الاعتكاف في بيتها. وقال أبوحنيفة والثوري: لها الاعتكاف في مسجد بيتها..... الخ))([2])
يعنې ښځه په هريو جمات كښې اعتكاف كولې شي خاص مسجد جماعت شرط نه دې، ځكه چه په ښځه باندې په جمع سره مونځ كول واجب نه دى اوهم دغه د امام شافعي رحمه الله مذهب دې چه ښځه به په خپل كور كښې اعتكاف نه كوى. او امام ابوحنيفه رحمه الله او امام ثورى رحمه الله فرمائى چه ښځه به په خپل كوركښې اعتكاف كوى.
ابن بطال رحمه الله د امام شافعي رحمه الله قول نقل كړې دې چه ښځه غلام چرته چه غواړى اعتكاف كولې شي.([3])
خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام شافعي رحمه الله د ښځودپاره مسجد جماعت كښې اعتكاف كولوته د خيمو والاد روايت د وجې نه على الاطلاق مكروه وئيلى دى.
اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز سره ددې چه د ښځې دپاره په جمات كښې اعتكاف كول جائز دى مګر اولى افضل او مستحب د ښځې دپاره هم هغه دى چه هغه دې دخپل كور په جمات كښې اعتكاف اوكړى. د ښځې دپاره په جمات كښې اعتكاف كول مكروه تنزيهى دى.([4])
**دعلامه انور شاه كشميرى رحمه الله تحقيق:** علامه انورشان كشميرى رحمه الله فرمائى زما په نيز درمختار كښې دكراهت لفظ پدې مسئله كښې په كراهت تنزيهى باندې محمول دې ځكه چه په يوداسې امر باندې چه د حضورپاك په مواجهت كښې مخې ته راغلې د مكروه تحريمى حكم لګول صحيح نه دى.([5]) حضرات حنفيه دا حكم دهغه واقعه نه اخذكړې په كوم كښې چه دى يوځل رسول الله ﷺ په رمضان كښې د اعتكاف كولو اراده اوكړه نو حضرت عائشه رضي الله عنها اوحضرت حفصه رضي الله عنها هم اجازت اوغوښتلو او په جمات كښې خيمې اولګولې. دوى ته په كتو سره حضرت زينب رضي الله عنها هم يوه خيمه اولګوله.([6]) په دې باندې حفګان ښكاره كولوسره حضورپاك خپله خيمه اوچته كړه او ازواج مطهرات

---

[1] المجموع شرح المهذب: ۴۷۰/۶.
[2] المغنى لابن قدامة: ۶۷/۳ دارالفكر.
[3] فتح البارى: ۳۴۹/۴ دارالسلام.
[4] بدائع الصنائع: ۲۵/۳البحر الرائق: ۲۷/۲المبسوط للسرخسى: ۱۳۲/۳الدر المختار مع ردالمحتار: ۴۲۹/۳ دارعالم الكتاب.
[5] فيض البارى: ۴۹۵/۱.
[6] عن عائشة رضى الله عنهاقالت: كان النبى صلى الله عليه وسلم يعتكف فى العشر الأواخر من رمضان، فكننت أضرب له خباءً، فيصلى الصبح ثم ندخله، فاستأذنت حفصة عائشة أن تضرب خباء، فأذنت لها فضربت خباء. فلما رأته زينب بنت جحش ضربت خباء اخر. فلما أصبح النبى صلى الله عليه وسلم، رأى الأخبية، فقال: ما هذا؟ فأخبر،

هم خپلې خپلې خیمې اوچتې کړې د کوم نه پس چه حضورپاك د شوال په میاشت کښې اعتکاف اوکړو.(۱) رسول الله ﷺ د خپل خفګان او ناخوښئ اظهار په دې جمله سره اوکړو «آلبر یردن» یعنې ولې دوی دغه شان په جمات کښې اعتکاف کولو سره خیر ښیګړه لټوی؟

علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله لیکلی دی که چرې په داسې صورت کښې د اعتکاف کولو کښې څه حرج نه وې نو حضورپاك به دغه شان د اعتکاف د اردې کولو نه پس خپله خیمه نه اوچتوله او نه به ئې په ازواج باندې ترك کولو. ددې نه معلومه شوه چه د ښخودپاره په جمات کښې اعتکاف کول مکروه تنزیهي دی.(۲)

ففي الدرمختار: (أو لبث (امرأة في مسجد بيتها) ويكره في المسجد. په دې باندې علامه ابن عابدین شامی رحمه الله لیکی «ويكره في المسجد) أي: تنزيهاً، كما هو ظاهر النهاية، نهر، وصرح في البدائع بأنه خلاف الأفضل»(۳)

د علامه کاساني رحمه الله کلام دادې:

«وأما المرأة فذكر في الأصل أنها لا تعتكف إلا في مسجد بيتها، ولا تعتكف في مسجد جماعة، وروى الحسن عن أبي حنيفة أن للمرأة أن تعتكف في مسجد الجماعة وإن شاءت اعتكفت في مسجد بيتها ومسجد بيتها أفضل لها من مسجد حيها..... وهذا لا يوجب اختلاف الروايات، بل يجوز اعتكافها في مسجد الجماعة على الروايتين جميعاً بلا خلاف من أصحابنا، والمذكور في الأصل محمول على نفي الفضيلة، لا على نفي الجواز توفيقاً بين الروايتين، وهذا عندنا، وقال الشافعي: لا يجوز اعتكافها في مسجد بيتها»(۴)

یعنې ښځه به صرف د خپل کور په جمات کښې اعتکاف کوی د جمع والا په جمات کښې به اعتکاف نه کوی او حسن رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت کوی چه ښځه د جمع په جمات کښې هم اعتکاف کولې شی اوکه غواړی نود کور په جمات کښې هم اعتکاف کولې شی اود ښځې د پاره د کور په جمات کښې اعتکاف کول د محلې په جمات کښې د اعتکاف کولونه غوره دی..... علامه کاساني رحمه الله فرمائی چه په دې سره د روایاتو اختلاف نه راځی بلکه د ښځې د پاره د جمع په جمات کښې اعتکاف کول زمونږ د اصحابو په نیز د دواړو روایتونو مطابق جائز دی. اود اصل روایت د افضلیت په نفی باندې محمول دې نه چه د جواز په نفی باندې. دې دپاره چه په دواړو روایتونوکښې تطبیق اوشی اودا زمونږ داحنافو مذهب دې. امام شافعي رحمه الله فرمائی د ښځې د خپل کور په جمات کښې اعتکاف کول جائز نه دی.

---

فقال النبي صلى الله عليه وسلم: (البر ترون بهن؟) فترك الاعتكاف ذلك الشهر، ثم اعتكف عشرا من شوال. رواه الإمام البخاري في الاعتكاف، في باب اعتكاف النساء، رقم الحديث: ۲۰۳۳، وفيه: آلبر يردن؟ ورواه أبوداؤد في الصيام، باب الاعتكاف، رقم الحديث: ۲۴۶۴، والنسائي في المساجد، باب ضرب الخباء في المساجد رقم الحديث: ۷۱۰، وابن ماجاء في الصيام باب ماجاء في من يبتدئ الاعتكاف وقضاء الاعتكاف رقم الحديث: ۱۷۷۱.

(۱) فيض الباري: ۴۹۵/۱.

(۲) فتح الملهم: ۳۴۷/۵ دارالقلم.

(۳) الدرالمختارمع ردالمحتار: ۴۲۹/۳ دار عالم الكتب.

(۴) بدائع الصنائع: ۲۵/۳.

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** د حديث ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې چه په دوارو كښې د مستحاضه د اعتكاف بيان دې.[1]

## الحديث الثاني

[۳۰۵/۳۰۴]- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: «اعْتَكَفَتْ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةٌ مِنْ أَزْوَاجِهِ، فَكَانَتْ تَرَى الدَّمَ وَالصُّفْرَةَ وَالطَّسْتُ تَحْتَهَا وَهِيَ تُصَلِّي»[2]

**ترجمه:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه حضورپاك سره دهغوی د بیبیانونه یوې بی بی اعتكاف اوكړو هغې به وینه او زیړوالې لیدلو خو ركیبئی به د هغې نه لاندې وه اوهغې به مونځ هم اداكولو.

## تراجم رجال

**قتيبه:** دا شيخ الاسلام ابورجاء قتيبه بن سعيد بن جميل بن طريف ثقفى رحمه الله دې د دوی تفصيلی حالات كتاب الإيمان باب إفشاء السلام من الإسلام لاندې تيرشوی دی.[3]

**يزيد بن زريع:** دا مشهور محدث يزيد بن زريع رحمه الله دې. ددوی حالات كتاب الوضوء باب غسل المنی وفركه الخ لاندې تيرشوی دی.

**خالد:** دا مشهورمحدث ابوالمُنازل خالد بن مهران الخداء البصری رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات كتاب العلم باب قول النبی صلی الله عليه وسلم (اللهم علمه الكتاب) لاندې تيرشوی دی.[4]

**عكرمه:** دامشهور امام حديث و تفسير ابوعبدالله عكرمه مولی عبدالله بن عباس مدنی دې. ددوی تفصيلی حالات كتاب العلم باب قول النبی صلی الله عليه وسلم (اللهم علمه الكتاب) لاندې تيرشوی دی.[5]

**عائشة:** دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابی بكر صديق رضي الله عنهما ده. ددوی حالات «بدء الوحی» ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوی دی.[6]

## شرح حديث

**قولها: (ترى الدم والصفرة):** شراح حضراتو ليكلی دی چه دحضرت عائشه رضي الله عنها داسې فرمائيل داستحاضه نه كنايه ده يعنی هغه دا بيانول غواړی چه كومې بی بی حضورپاك سره اعتكاف اوكړو هغه مستحاضه وه (په حالت د حيض كښې وه).[7]

---

[1]) عمدة القاري: ۲۷۸/۳.

[2]) قوله: عائشة الحديث مرتخريجه تحت الحديث السابق.

[3]) كشف الباري: ۱۸۹/۲.

[4]) كشف الباري: ۳۶۱/۳.

[5]) كشف الباري: ۳۶۳/۳.

[6]) كشف الباري: ۲۹۱/۱.

[7]) عمدة القاري: ۲۸۰/۳ شرح الكرماني: ۱۷۷/۳.

**قوله: والطست تحتها**: داجمله حاليه ده. په يوه نسخه کښې داجمله بغير د واؤ نه ده او هغه هم جائز ده.[1]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**: په حديث اوترجمة الباب کښې مناسبت واضحه دې چه په دواړو کښې د مستحاضه ذکر دې.[2]

## الحديث الثالث

[۳۰۵] - حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، «أَنَّ بَعْضَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ اعْتَكَفَتْ وَهِيَ مُسْتَحَاضَةٌ»[3]

**ترجمه**: دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه بعض امهات المؤمنين (ازواج نه يوې) د استحاضه په حالت کښې اعتکاف اوکړو.

## تراجم رجال

**مسدد**: دا مسدد بن مسرهد بن مرعيل رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات **کتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه** لاندې تير شوی دی.[4] او تفصيلی حالات **کتاب العلم باب من خص بالعلم قوما دون قوم الخ** دريم حديث لاندې تيرشوی دی.[5]

**معتمر**: دا ابومحمد معتمربن سليمان بن طرخان تيمی بصری رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات تفصيلی حالات **کتاب العلم باب من خص بالعلم قوما دون قوم الخ** دريم حديث لاندې تيرشوی دی.[6]

**خالد**: دا مشهورمحدث ابوالمُنازل خالد بن مهران الخداء البصری رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات **کتاب العلم باب قول النبی صلی الله عليه وسلم (اللهم علمه الکتاب)** لاندې تيرشوی دی.[7]

**عکرمه**: دا مشهور امام حديث و تفسير ابوعبدالله عکرمه مولی عبدالله بن عباس مدنی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات **کتاب العلم باب قول النبی صلی الله عليه وسلم (اللهم علمه الکتاب)** لاندې تيرشوی دی.[8]

**عائشه**: دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابی بکر صديق رضي الله عنها ده. ددوی حالات **«بدء الوحی»** ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوی دی.[9]

---

[1] حواله بالا.
[2] عمدة القاری: ۲۸۰/۳.
[3] قوله: عائشة: الحديث مرتخريجه فی نفس هذا الباب تحت رقم الحديث: ۳۰۹.
[4] کشف الباری: ۲/۲.
[5] کشف الباری: ۵۸۸/٤.
[6] کشف الباری: ۵۹۰/٤.
[7] کشف الباری: ۳۶۱/۳.
[8] کشف الباری: ۳۶۳/۳.
[9] کشف الباری: ۲۹۱/۱.

## شرح حديث

ددې باب لاندې امام بخاري رحمه الله درې احاديث ذكر كړې دى او ددې احاديثونه د مستحاضه په جمات كښې د حصاريدو جواز ثابتيږى. دغه شان دا هم معلومه شوه چه د مستحاضه مونځ اود هغې اعتكاف دواړه صحيح دى ځكه چه هغه هم په حقيقت كښې د نورو پاكوښځو په حكم كښې ده.(١) نور كه د جمات د ملوث كيدو خطره نه وى نو د حدث هم اجازت دې لكه ځنګه چه دلته طشت او ركيبئى كيخودو سره جمات په وينه سره ګنده كيدو ته پرې نه خودو. او هم دغه حكم د نورو داسې خلقو دپاره هم دې د چا حدث اوعذر چه هروخت موجود وى يا يو شان د زخم نه وينه ځڅيږى.(٢)
علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د روايت اولى نه داهم معلومه شوه چه د استحاضه وينه تته او نرئى وى د حيض د وينې په شان نه وى.(٣)

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حديث اوترجمة الباب كښې مناسبت واضحه دې چه حديث باب او ترجمة الباب دواړو كښې د مستحاضه ذكر دې.(٤)

## ١١ -باب: هَلْ تُصَلِّي الْمَرْأَةُ فِي ثَوْبٍ حَاضَتْ فِيهِ.

**ماقبل سره ربط:** ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه په دواړو كښې د حيض د احكامو ذكر دې.(٥)

**د ترجمة الباب مقصد:** شاه ولى الله رحمه الله فرمائى چه دلته امام بخاري رحمه الله د ښځې دپاره هم په هغه كپړو كښې د مونځ كولو جواز ثابتوى په كوم كښې چه د حيض زمانه تيره كړې ده. ددې ضرورت په دې وجه پيښ شو چه د اسلام نه وړاندې به ښځو دحيض كپړې بدلولې اودا به ئې ډير ضرورى ګڼړلې. لهذا امام بخاري رحمه الله داخودل غواړى چه دايام حيض استعمال شوې كپړې كه چرې ګنده شوې وى نوهم هغه حصه دې اووينځلې شى اوكه چرې د ګنده كيدو نه بچ دى نوهغه پاكې دى او په هغې كښې مونځ كولې شى.(٦)

**دشيخ الحديث زكريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى چه د روايت نه صفا ظاهره ده چه كومه كپړه اغوستو سره خپله د حيض ورځې تيرې كړې وى نو د طهر په زمانه كښې هم دغه پاك كولوسره په هغې كښې مونځ كولې شى.(٧)

اوس سوال دا پيداكيږى چه كله روايت صفا او واضحه دې نو بيا امام بخاري رحمه الله لفظ هل ولې زيات كړو؟ نوددې وجه داده چه د امام بخاري رحمه الله د اصولِ موضوعه نه دى چه كه چرې په روايت كښې د هريو احتمال په بنياد باندې غور او فكراوكړې شى نوهغه د تشحيذ اذهان دپاره لفظ هل راوړلې دې

---

(١) فتح الباري: ٥٣٤/١شرح الكرماني: ١٧٧/٣عمدة القاري: ٢٨٠/٣.
(٢) حواله بالا.
(٣) عمدة القاري: ٢٨٠/٣.
(٤) عمدة القاري: ٢٨٠/٣.
(٥) عمدة القاري:٢٨٠/٣.
(٦) شراح تراجم أبواب البخاري: ١٩ فضل الباري: ٤٧٧/٢ الكنزالمتواري: ٢٧٠/٣.
(٧) تقرير بخاري: ٩٩/٢.

او دلته هم احتمال دې اوهغه احتمال دادې چه په روايت د باب كښې د مونځ تصريح نشته. اود ام سلمه رضي الله عنها «باب من سمي النفاس حيضاً» لاندې ذكركړې شوى روايت نه معلوميږى چه دهغې د حيض اوطهارت كپړې جدا جدا وې. اوس دلته په دې دوارو روايتونو كښې دا احتمال اوشو چه د مونځ دپاره څه بله كپړه وه يا هم يوه كپړه نې وه كومه چه پاكولوسره به مونځ كولو؟

امام ابوداؤد رحمه الله خپل سنن كښې ډير روايات ذكركړې دى دكوم نه چه معلوميږى چه هم په دغه كپړو كښې مونځ كول جائزدى. (١) چنانچه په يو روايت كښې دى چه دحضورپاك نه ښځو تپوس اوكړو چه آيا مونږ په دغه كپړوكښې مونځ كولې شو چه د حيض په ورځوكښې زمونږ په بدن وې؟ حضورپاك اوفرمائيل او كه چرې په هغې كښې د وينې اثر وغيره نه وى نو كولې شى. (٢) لهذا امام بخارى رحمه الله هم دلته د حيض والاكپړوكښې د مونځ جواز ثابتوى البته د تشحيذ اذهان دپاره نې هل زيات كړو.

## الحديث الأول

[٣٠٦]- حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ: «مَا كَانَ لِإِحْدَانَا إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ تَحِيضُ فِيهِ، فَإِذَا أَصَابَهُ شَيْءٌ مِنْ دَمٍ قَالَتْ بِرِيقِهَا، فَقَصَعَتْهُ بِظُفْرِهَا» (٣)

**ترجمه:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه مونږ سره به صرف يوه كپړه وه كومه چه به مونږ د حيض په وخت اغوستله. بيا چه به كله په هغې كښې څه وينه لګيدله نو په هغې باندې به توكانړې اچولې او بيابه هغه په نوكونو باندې مږله.

## تراجم رجال

**أبونعيم:** دا ابونعيم فضل بن دكين رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب فضل من استبرأ لدينه لاندې تيرشوى دى. (٤)

**إبراهيم بن نافع:** دا ابواسحاق ابراهيم بن نافع مخزومى مكى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الغسل باب من بدأ بشق رأسه الأيمن في الغسل لاندې تيرشوى دى.

**ابن أبي نجيح:** دا ابو يسار عبدالله بن ابى نجيح ثقفى مكى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب العلم باب الفهم في العلم لاندې تيرشوى دى. (٥)

---

(١) الكنزالمتوارى: ٣/٢٧٠ تقرير بخارى: ٢/٩٩.

(٢) هكذا فى روايات الإمام أبى داؤد رحمه الله، كتاب الطهارة باب المرأة تغسل ثوبهاالذى تلبسه فى حيضها، رقم الحديث: ٣٦٥-٣٥٨.

(٣) قوله: عائشة: الحديث، ورواه أبوداؤد فى الطهارة في باب المرأة تغسل ثوبها الذى تلبسه فى حيضها رقم الحديث: ٣٥٨.

(٤) كشف البارى: ٢/٦٦٩

(٥) كشف البارى: ٣/٣٠٢.

**مجاهد**: دا شيخ القراء والمفسرين ابوالحجاج مجاهدبن جبر رحمه الله دي. د دوی حالات كتاب العلم باب الفهم في العلم لاندې تيرشوی دی.[1]

**عائشة**: دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابی بكر صديق رضي الله عنها ده. ددوی حالات «بدء الوحی» ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوی دی.[2]

**ايا د حديث الباب په سندکښې انقطاع يا اضطراب دې؟**: د بعض حضراتو د طرف نه په حديث الباب کښې دوه قسمه کلام شوې دې. يودا چه د حديث الباب په سند کښې انقطاع ده ځکه چه ابوحاتم، ابن معين، يحيى بن سعيد قطان، شعبه او امام احمد رحمهم الله فرمائی چه د امام مجاهد رحمه الله د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه سماع ثابته نه ده. او دويم دا چه ددې حديث په سند کښې اضطراب هم دې ځکه چه هم دغه روايت امام ابوداؤد رحمه الله «محمد بن كثير عن ابراهيم بن نافع عن الحسن بن مسلم» په طريق سره نقل کړې دې. په کوم کښې چه ابراهيم بن نافع، د حسن بن مسلم نه روايت کوی او دلته د بخاری رحمه الله په روايت کښې ابراهيم بن نافع د ابن ابی نجيح رحمه الله نه روايت کوی.

د اول جواب دادې چه پخپله امام بخاری رحمه الله ددې سند نه علاوه نورو ډيرو احاديثوکښې د امام مجاهد د حضرت عائشه رضي الله عنها نه د سماع تصريح کړې ده. دغه شان دابن المدينی او ابن حبان رحمه الله په نيزهم د امام مجاهد رحمه الله سماع د حضرت عائشه رضي الله عنها نه ثابته ده. بيا چونکه اثبات په نفی باندې مقدم دې په دې وجه به هم اثبات ته ترجيح وی. او ددويم جواب دادې چه داکوم د شيوخ اختلاف د اضطراب علت جوړکړې شوې دې صحيح نه دې ځکه چه داسې اختلاف د اضطراب سبب نه وی بلکه داخو په دې خبره باندې محمول دې چه ابراهيم بن نافع رحمه الله به دا روايت د دوو شيوخونه روايت کړې وی. اوکه چرې دا احتمال قبول نه کړې شي نوبياهم ابونعيم رحمه الله څوك چه د امام بخاری رحمه الله شيخ دې. د امام ابوداؤد د شيخ محمد بن كثير رحمه الله نه احفظ دې. په دې وجه صرف د شيوخ داختلاف د وجې نه د باب روايت ته مضطرب نه شی وئيلې. بل خلاد بن يحيى، ابوحذيفه او نعمان بن عبدالسلام رحمهم الله نه دابونعيم رحمه الله متابعت هم ثابت دې کوم چه دتقويت سبب وی. لهذا هم دې د باب روايت به ترجيح وی اوقاعده ده چه مرجوح په راجح کښې اثرنه شی کولې. په دې وجه دامام ابوداؤد رحمه الله تخريج کړې شوی روايت سند د امام بخاری رحمه الله تخريج کړې شوې روايت په سند کښې اثرنه شی کولې.[3]

## د حديث شرح

**قوله:: ما كان لإحدانا إلا ثوب واحد**: شراح حضراتو ليکلی دی چه دا نفی عام ده يعنی ټولو بيبيانوته شامل ده. ځکه چه نکره د نفی لاندې واقع ده کوم چه د عموم فائده ورکوی ځکه چه که چرته يوې سره هم زياتی کپړه وې نو نفی به صادق نه راتله.[4] بله داخبره چه إحدانا مفرد مضاف دې کوم چه على الاصح د هغه صيغونه دې کومې چه د عموم فائده ورکوی.[5]

---

[1]) كشف البارى:۲/۳۰۷.
[2]) كشف البارى: ۱/۲۹۱.
[3]) فتح البارى: ۱/۵۳۵عمدة القارى: ۳/۲۸۰.
[4]) إرشادالسارى: ۱/۵۵۱.
[5]) شرح الكرمانى: ۳/۱۷۷عمدة القارى: ۳/۲۸۱تحفة البارى: ۱/۲۵۰.

**اشکال اودهغې جواب**: دلته اشکال پیداکیږي هغه چه د حدیث باب نه معلومیږي چه ازواج مطهرات سره زیاتی کپړه کومه چه په ایام حیض سره خاص وی نه وه. خود ام سلمه رضي الله عنها سابقه روایت «فی باب:من سمی نفاس حیضاً» نه معلومیږي چه هغې سره په ایام حیض کښې د اغوستلو دپاره جدا کپړه وه، لهذا په دواړو روایتونوکښې تعارض ښکاري.

ددې اشکال جواب دادې چه حدیث عائشه صدیقه رضي الله عنها د اسلام د شروع په دور باندې محمول دې ځکه چه په شروع کښې تنګی او سختی وه. خود ام سلمه رضي الله عنها حدیث د فتوحاتونه پس زمانه باندې محمول دې کله چه حالت آسان او معیشت ښه شوې وو نو بیا ازواج مطهرات رضی الله عنهن د ایام حیض د پاره دایام طهر نه دجدا کپړو انتظام کړې وی.[1]

ددې نه علاوه داحتمال هم دې چه د حضرت عائشه رضي الله عنها مراد ثوب واحد نه ثوب واحد مختص بالحیض وی، یعنی مونږ ازواج سره خاص په ایام حیض کښې د اغوستلو دپاره هم یوه کپړه وه، ځکه چه په روایت کښې څه داسې خبره نشته چه د ایام طهر دپاره څه بله کپړه موجود کیدو نفی کوی. داسې په دواړو روایتونوکښې به توافق اوشی.[2]

**قوله:: قـالت بريقهـا**: قالت بريقها:أي: وضعت أوصبت عليه ريقها. شراح حضراتو لیکلی دی چه حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها د قول په فعل باندې اطلاق کړې دې.[3] یا په نورو الفاظوکښې نې د فعل تفسیر قول سره کړې دې.[4] علامه عینی رحمه الله فرمائی چه لفظ قول د خپلې اصلي معنی نه علاوه د مقام په مناسبت سره په نورو معانوکښې هم استعمالیږي. لکه چه دلته "قالت بريقها" معنی «صبت عليه من ريقها» یا «وضعت عليه ريقها» سره کړې شوې ده. بل دا احتمال هم دې چه قالت: بلت «دلمدولو» معنی کښې وی لکه چه سنن ابی داؤد په روایت کښې قالت په ځائی بلت الفاظ نقل دی.[5]

**دمدعیان عمل بالحدیث داعتراض جواب**: علامه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه ددې نه معلومیږي چه په توکانړو سره هم د نجاست ازاله کیدې شی ځکه چه په توکانړوکښې د تیزابیت اثر وی په کوم سره چه د نجاست ازاله کیدې شی او داسې مدعیان عمل بالحدیث چه په فقه حنفی باندې اعتراض کوی او بغیرد اوبو نه په بل څه څیز سره د نجاست دختمولو قائل نه دی، اعتراض په دې نص صریح اوحدیث صحیح سره مردود کیږي.[6]

**د حافظ ابن حجر رحمه الله تحقیق**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په روایت کښې هم په هغه کپړو کښې د مونځ کولو ذکر نشته دې په دې وجه ددې روایت نه دهغه حضراتودپاره چه داوبونه علاوه په مائعات طاهرات سره هم د نجاست د ختمولو قائل دی دلیل اوحجت نه راوځی بلکه دتوکانړو په ذریعه د وینې دختمولوسره مقصود د هغې اثر ختمول وو تطهیرمقصودنه وو، البته چه کله به ئی دمونځ کولو

---

[1] فتح الباری: ۵۳۵/۱شرح الکرمانی: ۱۷۸/۳عمدة القاری: ۲۸۱/۳ تحفة الباری: ۲۵۰/۱.

[2] فتح الباری:۵۳۵/۱.

[3] فتح الباری: ۵۳۵/۱التوشیح: ۴۰۸/۱.

[4] تحفة الباری: ۲۵۰/۱.

[5] عمدة القاری: ۲۸۱/۳.

[6] فیض الباری: ۴۹۶/۱.

اراده کیدله نودغه کپړه دوینځلونه پس به نی په هغې کښې مونځ کولولکه چه «باب غسل دم المحيض» کښې هم دعائشه رضی الله عنها په روایت کښې صراحت دې چه مونږ بیبیانو به او دغه د وینې ځاځکی رژول بیاچه کله به د مونځ کولواراده کیدله نوهغه به مو وینځلې اوبیابه مو مونځ کولو.[1]
په دې وجه حضرات شراح فرمائی چه دلته دې دا اشکال نه وی چه په روایت مذکوره کښې خود غسل ثوب یعنی د کپړو وینځلو ذکرنشته او د باب غسل الدم المحيض په روایت کښې د غسل ثوب ذکر موجود دې لهذا په دواړو احادیثو کښې تعارض پیداشو ځکه سره د دې چه دا روایت مطلق دې مګر سابقه روایت په مقیده باندې محمول دې.[2]
نورعلامه بیهقی رحمه الله فرمائی چه کیدې شی وینه په ډیر لږ مقدارکښې وی د کوم وینځل چه واجب نه وی. او هم په دې وجه حضرت عائشه رضی الله عنها په دې روایت کښې غسل ثوب ذکرنه وی کړې ځکه چه دوینې د زیات مقدار کیدو په صورت کښې کپړې وینځل صحیح او ثابت دی.[3]
**دعلامه عینی رحمه الله تحقیق:** په دې باندې علامه عینی رحمه الله فرمائی چه حضرات صحابه اوصحابیات رضی الله عنهم وعنهن به دا سوچ نه کولو چه دا نجاست په لږ مقدارکښې دې نومعاف دې بلکه دهغوی په نیزچه به نجاست لږ وو او که زیات دمعافئی قابل نه وو. دا تاویل خو صرف هم د امام ابوحنیفه رحمه الله په مذهب باندې صحیح کیدې شی ځکه چه احناف «كثرالله سوادهم» په نیز باندې کم مقدار معاف دې په دې شرط چه د یو درهم نه کم وی. اودا روایت په هغه حضراتو باندې حجت دې چه بغیرد اوبو په بل څه بهیدونکی څیز سره نجاست ختمول صحیح نه منی ځکه چه په دې روایت کښې د توکانړو په ذریعه د نجاست د ختمولو صراحت دې. بل ددې روایت نه داهم معلومیږی چه دنجاست په ختمولوکښې د عدد اعتبارنشته بلکه مقصد صفائی او پاکوالې دې که هغه په یوځل باندې حاصل شی او که په لس ځل.[4]
**قوله:: فقصعته بظفرها:** قصعة په قاف سره ددې معنی د نوکونو په ذریعه مږل راځی خو په یوه نسخه کښې قصعته په ځائی باندې مصعته نقل دې.[5] اوددې معنی د رژولو راځی. دامام ابوداؤد رحمه الله صرف قصعته په قاف سره نقل دې.[6] بهرحال دلته مراد په مږلو یا رژولوکښې مبالغه کول دی.[7]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام ابوداؤد رحمه الله د حضرت عائشه رضی الله عنها هغه حدیث هم روایت کړې دې په کوم کښې چه دی: «لم ترى فيه قطرة فتقصعه بظفرها» یعنی بیا چه به نی په (کپړه) باندې د (وینې) ځاځکې لیدلو نوهغه به نی په نوکونو سره رژولو اوددې روایت په رڼاکښې حدیث الباب کښې ددې خبرې احتمال دې چه د دم نه مراد دم یسیروی کوم چه معاف کیږی لیکن هم رومبې احتمال قوی دې

---

[1]) فتح الباري: ۵۳۵/۱.
[2]) إرشادالساري: ۵۵۱/۱شرح ابن بطال: ۴۳۷/۱شرح الکرماني: ۱۷۸/۳عمدة القاري: ۲۸۱/۳.
[3]) عمدة القاري: ۲۸۱/۳إرشادالساري:۵۵۷/۱.
[4]) عمدة القاري:۲۸۱/۳.
[5]) تحفة الباري: ۲۵۰/۱.
[6]) عمدة القاري: ۲۸۱/۳شرح الکرماني: ۱۷۸/۳تحفة الباري: ۲۵۰/۱.
[7]) شرح الکرماني: ۱۷۸/۳جامع الأصول في أحاديث الرسول: ۹۵/۷.

يعني چه کله به د مونځ اراده کیدله نوهغه وخت به ئې کپړه وینځله.(۱)

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث اوترجمة الباب دواړو کښې مناسبت دادې چه امام بخاري رحمه الله په دواړو کښې يوې مسئلې طرف ته اشاره کړې ده اوهغه مسئله داده چه کومې ښځې سره صرف هم يوه کپړه وي په کوم کښې چه هغه د حيض ورځې هم تيره وي نود داسې ښځې دپاره د مونځ کولو حکم دې چه هغه دې مونځ هم په هغه کپړه کښې اوکړي مګر دهغه کپړې پاکولونه پس. هم ددې مسئلې طرف ته امام بخاري رحمه الله حديث اوترجمة الباب دواړو کښې اشاره کړې ده.(۲)

## ۱۲-باب: اَلطِّيبِ لِلْمَرْأَةِ عِنْدَ غُسْلِهَا مِنَ الْمَحِيضِ.

**ماقبل سره ربط:** امام بخاري رحمه الله په دې ابواب کښې د حيض نه د پاکنې حاصلولو مختلف مرحلې بيانوي. چنانچه تيرشوي باب کښې ئې د کپړې نه د نجاست د حيض ختمول بيان کړل کوم ته چه تنظيف او انقاء وائي اودا د شروع مرحله او په دې باب کښې د انقطاع دم حيض نه پس دغسل کولوپه وخت د خوشبو لګولو حکم بيانوي چه د حيض د وينې دختمولو نه پس مرحله ده او په دې وجه دا مرحله انظف يعني په نسبت د ړومبې مرحلې نه زيات د تنظيف وئيلې کيږي.(۳)

**دترجمة الباب مقصد:** شراح حضراتو ليکلې دي چه دامام بخاري رحمه الله مقصد انقطاع دم حيض نه پس د خراب بوئې د لرې کولودپاره د خوشبوئې استعمالولو د حکم تاکيدکول دي اوددې حکم تاکيد ددې امر نه ظاهرشو چه کله د ماتم کونکې ښځې دپاره هم د عدت دوران کښې د انقطاع دم حيض نه پس دغسل کولوپه وخت د خوشبوئې د استعمالولو اجازت ورکړې شوې دې حالانکه هغې ته د عدت په ورځو کښې د خوشبوئې وغيره استعمالولواجازت نشته دې.نوبيا د غيرمتعده دپاره خوددې استعمال زيات مؤکد کيږي.(۴)

**د شيخ الحديث زکريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث زکريا رحمه الله فرمائي چه زما په نيز دا ترجمه شارحه ده ځکه چه د مسک لفظ راغلې وو په دې وجه ئې د هغې شرح اوفرمائيله چه ددې نه خوشبوئې مراد ده د څه خاص مسک تعيين نشته.(۵) البته د بعض شوافع نه نقل کړې شوې دي چه هم مسک لګول متعين دي اوددې وجه داده چه دا په استقرار حمل کښې معين دې. ممکن ده چه دامام بخاري رحمه الله مقصود د شوافع په دې قول باندې رد کول وي.(۶)

### الحديث الأول

[۳۰۷]-حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ حَفْصَةَ، قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: أَوْهِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ حَفْصَةَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

---

(۱) فتح الباري: ۵۳۵/۱.
(۲) شرح ابن بطال: ۴۳۷/۱ شرح الکرماني: ۱۷۸/۳ فتح الباري: ۵۳۵/۱ عمدة القاري: ۲۸۰/۳ الکنز المتواري: ۲۷۱/۳.
(۳) عمدة القاري: ۲۸۱/۳.
(۴) فتح الباري: ۵۳۶/۱ عمدة القاري: ۲۸۱/۳ الکنز المتواري: ۲۷۱/۳.
(۵) الکنز المتواري: ۲۷۱/۳ تقرير بخاري: ۲/ ۱۰۰-۹۹.
(۶) تقرير بخاري: ۲/ ۱۰۰-۹۹.

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ: «كُنَّا نُنْهَى أَنْ نُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ، إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا، وَلَا نَكْتَحِلَ وَلَا نَتَطَيَّبَ وَلَا نَلْبَسَ ثَوْبًا مَصْبُوغًا، إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ، وَقَدْ رُخِّصَ لَنَا عِنْدَ الطُّهْرِ إِذَا اغْتَسَلَتْ إِحْدَانَا مِنْ مَحِيضِهَا فِي نُبْذَةٍ مِنْ كُسْتِ أَظْفَارٍ، وَكُنَّا نُنْهَى عَنِ اتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ»، قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: رَوَاهُ هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ حَفْصَةَ [ص:٧٠]، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (۱) [۱۲۷۹،۱۲۲۰،۵۰۳۶-۵۰۳۸]

**ترجمه**: حضرت ام عطیه رضي الله عنها فرمائي چه مونږ به په یو مړي باندې د دریو ورځونه زیات ماتم کولونه منع کولې شو لیکن د خاوند په مړه کیدو باندې څلور میاشتې او لس ورځې دماتم کولوحکم وو. په دغه ورځو کښې به ئې نه رانجه استعمالول نه خوشبوئي او عصب (د یمن جوړشوې یو څادر چه رنګین به هم وو، هغه کپړه چه کومې تار چه د اول نه رنګ کړې شوې وی) نه علاوه هیڅ رنګین کپړه مونږه نه استعمالوله او مونږ ته د (عدت په ورځوکښې) د حیض د غسل نه پس څه د اظفار کست (دعود خوشبوئي) استعمالولو اجازت وو او مونږ له جنازې پسې شاته د تلو اجازت هم نه وو.

## تراجم رجال

**عبدالله بن عبدالوهاب**: دا ابومحمدبن عبدالوهاب حجبی رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب العلم باب لیبلغ العلم الشاهد الغائب لاندې تیرشوی دی. (۲)

**حمادبن زید**: داحماد بن زیدبن درهم بصری رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب الایمان باب وان طائفتان من المؤمنین اقتتلوافاصلحوابینهما لاندې تیرشوی دی. (۳)

**أیوب**: دا ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی بصری رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب الایمان باب حلاوة الایمان لاندې تیرشوی دی. (۴)

**هشام بن حسان**: دا هشام بن حسان ازدی قردوسی بصری رحمه الله دې. ددوی کنیت ابوعبدالله دې. (۵) هشام بن حسان رحمه الله فرمائي «کنانی محمدبن سیرین اباعبدالله ولم یولدلی» یعنې محمدبن سیرین رحمه الله زما کنیت ابوعبدالله کیخودې وو اوزما هیڅ اولاد نه وو. (۱) هشام بن حسان رحمه الله ته به فردوسی دهغوی د حسن او ښائست د وجې نه وئیلې کیدو. (۲)

---

(۱) قوله: ام عطية: الحديث، رواه البخاري في الجنائز أيضاً في باب اتباع النساء الجنازة رقم الحديث: ۱۲۷۸ وفي باب إحداد المرأة على غير زوجها رقم الحديث: ۱۲۷۹ وفي الطلاق في باب القسط للحادة عندالطهر رقم الحديث: ۵۳٤۱ وفي تلبس الحادة ثياب العصب رقم الحديث، ۵۳٤۳-۵۳٤۲ وكذا رواه مسلم في الطلاق في باب وجوب الإحداد رقم الحديث: ۳۷٤۰ وكذا رواه أبوداؤد في الطلاق في باب فيما تجتنبه المعتدة في عدتها رقم الحديث: ۲۳۰۳-۲۳۰۲ وكذا رواه النسائي في الطلاق في باب ماتجتنب الحادة من الثياب المصبغة رقم الحديث: ۳۵٦٤ وفي باب الخضاب للحادة رقم الحديث: ۳۵٦٦.

(۲) كشف الباري: ۱۳۸/٤.

(۳) كشف الباري: ۲/۲۱۹.

(٤) كشف الباري: ۲٦/۲.

(۵) تهذيب الكمال: ۱۸۱/۳۰ سير أعلام النبلاء: ۳۵۵/٦.

هغوی د حمید بن هلال، حسن بصری، محمدبن سیرین، حفصه بنت سیرین، انس بن سیرین، عکرمه، ابومعشرزیاد بن کلیب، واصل مولی ابی عیینه، ایوب بن موسی، یحیی بن ابی کثیر، عبدالعزیز بن صهیب، قیس بن سعدمکی، هشام بن عروة، محمدبن واسع، سهیل بن ابی صالح رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کړې دې.

اود هغوی نه عکرمه بن عمار، سعیدبن ابی عروبه، شعبه، زائده، حفص بن غیاث، عبدالله بن ادریس، ابراهیم بن طهمان، ابن جریج، ابن علیه، جریر بن عبدالحمید، حماد بن زید، حماد بن اسامه، حماد بن سلمه، عبدالله بن المبارك، یحیی القطان، معتمر بن سلیمان، یزیدبن زریع، نضر بن شمیل، یزیدبن هارون، عثمان بن الهیثم، ابن ابی عدی او خالد بالحارث رحمهم الله وغیره د حدیث روایت کړې دې.([3])

محمدبن سیرین رحمه الله به فرمائیل «هشام منا أهل البیت». ایوب بن موسی قرشی رحمه الله به فرمائیل «سل لی هشاما عن حدیث کذا» یعنی د هشام بن حسان نه د فلانکی حدیث باره کښې تپوس اوکړه راشه.([4])

سعیدبن عروبه رحمه الله فرمائی «ما رأیت أو ما کان أحد أحفظ عن محمد بن سیرین من هشام» ([5])مخلدبن الحسین رحمه الله فرمائی هشام بن حسان، محمدبن سیرین رحمه الله به داشې حدیث روایت کولو لکه چه هم دهغوی نه اوریدلو که چرې محمدبن سیرین به ارسال کولونو هشام بن حسان به هم ارسال کولو. ([6])

حمادبن زید رحمه الله فرمائی «أنما أیوب، وهشام، وحسبك هشام» یعنی مونږ د ایوب اوهشام رحمه الله دواړو نه روایت اخستې دې مګر هم هشام کافی دې ځکه چه هغوی سره دبل چاد ذکرځه ضرورت نشته دې. ([7])

هشام بن حسان رحمه الله فرمائی ماد حسن بصری رحمه الله او محمدبن سیرین رحمه الله نه هیڅ یو حدیث سواد «حدیث الأعماق» نه نه دې لیکلې. چونکه «حدیث الأعماق» طویل وو په دې وجه مې هغه اولیکلو بیاچه مې کله هغه یادکړو نو هغه مې وران کړو.([8]) په دې وجه چه کله هشام بن حسان رحمه الله ته اوونیلې شوچه خپل کتابونه اوښایه نوهغوی جواب ورکړو ماسره کتابونه نشته دې.([9])

یحیی بن سعید رحمه الله فرمائی «هشام بن حسان فی ابن سیرین أحب إلی من عاصم الأحول»([10])

علی ابن مدینی رحمه الله فرمائي یحیی بن سعید او نور اکابر محدثین هشام بن حسان رحمه الله ثقه راوی ګرځوی البته یحیی بن سعید رحمه الله به هشام بن حسان عن عطاء سندته ضعیف وئیلې اودغه شان د محدثینودا هم ګمان وو چه هغوی د حسن بصری روایات د حوشب په واسطه سره نقل کړې دی.([1])

---

[1]) تهذيب الكمال: ۱۸٤/۳۰سیر أعلام النبلاء: ۳۵٦/٦.

[2]) حواله بالا.

[3]) تلامذه او مشائخ دَ تفصیل دَپاره اوګورئی: تهذيب الكمال: ۱۸۲/۳۰.

[4]) تهذيب الكمال: ۱۸٤/۳۰سیر أعلام النبلاء: ۳۵٦/٦.

[5]) تهذيب الكمال: ۱۸٤/۳۰سیر أعلام النبلاء: ۳۵٦/٦.

[6]) تهذيب الكمال: ۱۸۵/۳۰سیر أعلام النبلاء: ۳۵۷/٦.

[7]) تهذيب الكمال: ۱۸۵/۳۰سیر أعلام النبلاء: ۳۵٦/٦تهذیب التهذیب: ۳۵/۱۱.

[8]) حواله بالا.

[9]) حواله بالا.

[10]) تهذيب الكمال: ۱۸٦/۳۰ سیر أعلام النبلاء: ۳۵۸/٦.

چنانچه په يوه بله موقع باندې علي بن المديني رحمه الله فرمائي چه د هشام بن حسان رحمه الله هغه احاديث کوم چه هغوی د محمدبن سيرين نه روايت کړی دی هغه ټول صحيح دی. او کوم حديث چه به هغوی د حسن بصری رحمه الله نه روايت کولو نو دهغه احاديثو دراومدارد حوشب په واسطه سره دې. ([2])
څکه چه علي بن المديني رحمه الله د عرعره بن البرند نه نقل کوی چه کله هغوی د عباد بن منصورنه د هشام بن حسان رحمه الله متعلق تپوس اوکړو چه آيا هغه به د حسن بصری رحمه الله په خدمت کښې د حديث دپاره راتللو؟ نوهغوی په جواب کښې اوفرمائيل چه ما هشام بن حسان رحمه الله حسن بصری رحمه الله سره کله هم نه دې ليدلې. ([3])
عرعره بن البريد رحمه الله فرمائي چه دعباد بن منصور رحمه الله د انتقال نه پس ما د دې خبرې خبر جرير بن حازم رحمه الله ته ورکړو نوهغوی هم دغه اوفرمائيل چه زه اووه کاله حسن بصری رحمه الله سره د حديث د روايت کولودپاره ناست يم خوما کله هم هشام بن حسان رحمه الله حضرت حسن بصری رحمه الله سره نه دې ليدلې. عرعره بن البريد رحمه الله نور فرمائي چه ما جرير بن حازم رحمه الله ته اووئيل چه هغه خو مونږ ته (نيغ په نيغه) هم دحسن بصری رحمه الله روايات بيانوی. نو بيا ستاسو په خيال کښې به هغه دچا په واسطه سره روايات بيانوی؟ نوهغوی جواب اوکړو چه زما په خيال هغه د حوشب په واسطه سره بيانوی. ([4])
مگرسعيدبن عامر رحمه الله وائي چه ما هشام بن حسان رحمه الله په داسې وينا کولو سره اوريدلې دې چه هغه حسن بصری رحمه الله سره لس کاله پاتې شوې دې. ([5])
علي بن المديني رحمه الله فرمائي ((وهشام أثبت من خالد الحذاء في ابن سيرين، وهشام مثبت)) ([6]) امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي ((صالح، وهشام أحب إلي من أشعث)). نور امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي ((عندي لابأس به، وماتكاد تنكر عليه شيئا إلا وجدت غيره قد رواه إما أيوب، وإما عوف)) يعني زما په نيز هغه قابل قبول دې اوچه تاسو ته دهغه کوم يوحديث هم اجنبي معلوم شي نودهغه متابعت به د ايوب رحمه الله يا عوف رحمه الله نه ضرور ملاويږی. ([7]) يحيی بن معين رحمه الله فرمائي ((لابأس به)) ([8])
نور چه د يحيی بن معين رحمه الله نه د هشام رحمه الله او جرير بن حازم رحمه الله متعلق پوښتنه اوکړې شوه نوهغوی اوفرمائيل ((هشام بن حسان أحب إلي)) بيا د ابن سيرين رحمه الله نه په روايت کولوکښې د هشام رحمه الله او يزيدبن ابراهيم رحمه الله باره کښې تپوس اوکړې شو نو په جواب کښې اوفرمائيل ((كل هما ثقة)). ([9])
امام عجلي رحمه الله فرمائي ((بصري، ثقة، حسن الحديث)) ([10]) ابن حبان رحمه الله هغوی په کتاب الثقات کښې

---

[1]) تهذيب الكمال: ۱۸۷/۳۰.
[2]) تهذيب الكمال: ۱۸۷/۳۰ سير أعلام النبلاء: ۳۵۸/۶.
[3]) حواله بالا.
[4]) حواله بالا.
[5]) تهذيب الكمال: ۱۸۵/۳۰ سير أعلام النبلاء: ۳۵۷/۶.
[6]) تهذيب الكمال: ۱۸۷/۳۰ سير أعلام النبلاء: ۳۵۸/۶.
[7]) تهذيب الكمال: ۱۹۰/۳۰ سير أعلام النبلاء: ۳۶۰/۶.
[8]) تهذيب التهذيب: ۳۶/۱۱.
[9]) تهذيب الكمال: ۱۹۱/۳۰.
[10]) حواله بالا.

ذکرکړی دی.([1]) حجاج بن منهال رحمه الله فرمائی «کان حماد بن سلمة لا یختار علی هشام فی حدیث ابن سیرین أحداً»([2]) ابن سعد رحمه الله فرمائی «کان ثقة، إن شاء الله تعالیٰ، کثیر الحدیث».([3])
امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی څلور محدثین دی چه د هشام عن الحسن د سند اعتبارنه کوی: ① یحیی بن سعید. ② اسماعیل بن علیه. ③ یزید بن زریع. ④ وهیب رحمهم الله. ([4])
دغه شان دامام شعبه رحمه الله باره کښې راځي چه «کان یتقی حدیث هشام بن حسان عن عطاء ومحمد والحسن»
یعنی امام شعبه رحمه الله به د دې دریو محدثین حضراتو عظام نه نقل کړې شوی روایاتونه احتراز کولو.([5])
نعیم بن حماد رحمه الله وائی چه ما سفیان بن عیینه رحمه الله نه داسې ویناکول اوریدلی دی «لقد أتی هشام أمراً عظیماً بروایته عن الحسن» یعنی هشام رحمه الله د حسن بصری رحمه الله نه روایت کولوسره یوه لویه خبره اوکړه.
کله چه د نعیم بن حماد رحمه الله نه پوښتنه اوکړې شوه داسې ولې؟ نوهغوی ځواب ورکړو «لأنه کان صغیراً» یعنی هغه هغه وخت وړوکې وو. ([6])
په دې باندې علامه ذهبی رحمه الله اوفرمائیل چه په دې قول باندې نظردې بلکه هشام بن حسان لوئی وو. ځکه چه هم پخپله د سفیان بن عیینه رحمه الله نه نقل دی «کان هشام أعلم الناس بحدیث الحسن». علامه ذهبی رحمه الله فرمائی «هذا أصح» یعنی صحیح هم دغه دی چه هغه د حسن بصری رحمه الله احادیث د ټولو نه زیات پیژندونکې وو. ([7])
علامه ذهبی رحمه الله فرمائی «ثقة، إمام، کبیر الشأن»([8]) بل علامه ذهبی رحمه الله قول فصیل ذکرکولو سره فرمائیلی «هشام قد قفز القنطرة واستقر توثیقه، واحتج به أصحاب الصحاح، وله أوهام مغمورة فی بحر ما روی» یعنی بیشکه د هشام بن حسان رحمه الله ثقاهت پوخ شوې دې او اصحاب کتب صحاح دهغوی نه دلیل اوحجت هم نیولې دې. البته دهغوی نه چه د احادیثو یو عظیم اوضخیم ذخیره نقل ده په هغې کښې یو څو اجنبی روایات هم دی. ([9])
ابن عدی رحمه الله فرمائی «أحادیثه مستقیمة ولم أر فی أحادیثه منکراً إذا حدث عنه ثقة وهو صدوق لا بأس به» یعنی ماد هغوی په احادیثوکښې هیڅ منکر اواجنبی حدیث نه دې لیدلې په دې شرط چه دهغوی نه چرته یو ثقه راوی حدیث روایت کړې وی. هشام بن حسان رحمه الله صدوق او قابل قبول راوی دې.([10])

---

[1]) ۵۶۶/۷.
[2]) سیر أعلام النبلاء: ۳۵۸/۶.
[3]) تهذیب التهذیب: ۳۷/۱۱.
[4]) تعلیقات علی تهذیب الکمال للشیخ شعی الأرنؤوط: ۱۹۳/۳۰.
[5]) تهذیب الکمال: ۱۸۹/۳۰.
[6]) تهذیب الکمال: ۱۸۵/۳۰ سیر أعلام النبلاء: ۳۵۶/۶.
[7]) سیر أعلام النبلاء: ۳۵۷/۶.
[8]) میزان الاعتدال: ۲۹۵/٤ مطبعة عیسی ألبابی الحلبیه وشرکاه.
[9]) سیر أعلام النبلاء: ۳۶۲/۶.
[10]) الکامل لابن عدی: ۱۱٤/۷.

حافظ ابن حجر رحمه الله د هشام بن حسان رحمه الله سره متعلق د ائمه حديث داقوالوذكركولونه پس فرمائي: ائمه حديث دهغوى نه حجت او دليل نيسي البته دهغوى د عن عطاء د سند نه د هيڅ يو حديث تخريج نشته دې او كوم احاديث چه هشام رحمه الله د عكرمه رحمه الله نه روايت كړي دي نودهغې نه يوڅو امام بخاري رحمه الله هم تخريج كړي دي په كوم كښې چه د بعض متابعت هم موجود دې. اوكوم چه هغوى د حسن بصري رحمه الله نه روايت كړي دي نوهغه په كتب سته كښې موجود دي.[1]

ابوحاتم رحمه الله فرمائي ((كان صدوقاً وكان يتثبت في رفع الأحاديث عن محمد بن سيرين))[2]

ابن عون رحمه الله فرمائي ((كان محمد لا يرفع من حديث أبي هريرة إلا ثلاثة أحاديث: ① صلى إحدى صلاتي العشي ② وجاء أهل اليمن ③ ولم يذكر الثالث)) يعنى محمدبن سيرين رحمه الله د ابوهريره رضي الله عنه نه صرف درې احاديث مرفوعاً روايت كړي دي.[3]

په دې باندې علامه ذهبي رحمه الله اوفرمائيل چه دا قول صحيح نه دې ځكه چه حضرات شخين ،امام بخاري رحمه الله اوامام مسلم رحمه الله د ((محمد عن أبي هريرة)) په سندسره متعدد احاديث روايت كړي دي. ددې نه علاوه هم په دې سندسره د يو څو رواياتوپه ذكركولوكښې امام بخاري رحمه الله اود څه رواياتو په ذكركولوكښې امام مسلم رحمه الله متفرد هم دي.[4]

بهرحال هشام بن حسان رحمه الله ثقه راوى دې او اصحاب صحاح دهغوى نه داحاديثو تخريج كړې دې. دهغوى د تقوى دا حال وو چه كله به هم د حضورپاك صلى الله عليه وسلم د جنت او جهنم تذكره كيدله نوهغوى به دومره ژړل چه دهغوى اننگى به په اوښكو باندې لمديدل.[5]

د هغوى تاريخ وفات سره متعلق درې اقوال دي: ① ابو نعيم رحمه الله ابن معين رحمه الله او ابوبكر ابن ابى شيبه رحمه الله فرمائي دهغوى انتقال ۱۴۶هجرى كښې شوې. ② يحيى القطان رحمه الله او ابن بكير رحمه الله فرمائي ۱۴۷هجرى كښې انتقال شوې. ③ مكي بن ابراهيم رحمه الله اوابوعيسى ترمذى رحمه الله فرمائي چه دهغوى انتقال اول صفر ۱۴۸هجرى كښې شوې.[6]

**حفصة بنت سيرين**: دا ام هزيل حفصه بنت سيرين انصاريه رحمهما الله ده. ددوى حالات كتاب الوضوء باب التيمن في الوضوء والغسل لاندې تيرشوى دي.

**أم عطية**: دا مشهوره صحابيه نسيبه بنت كعب انصاريه رضي الله عنها ده. ام عطيه دهغوى كنيت دې. ددوى شمير په اهل فضل صحابياتوكښې كيږي. ددوى باره كښې راځي چه دې به د مريضانو په خيال ساتلوكښې د زخميانو مرهم پټئي او مړو ته د غسل وركولو كاروته سر ته رسول.[7] ددې حالات هم كتاب الوضوء باب التيمن في الوضوء والغسل لاندې تيرشوى دي.

---

[1] عدى السارى: ۶۳۱.

[2] الجرح والتعديل: ۷۱/۹.

[3] تهذيب الكمال: ۱۹۰/۳۰ سير أعلام النبلاء: ۳۵۹/۶.

[4] سير أعلام النبلاء: ۳۵۹/۶-۳۶۰.

[5] تهذيب الكمال: ۱۹۳/۳۰ سير أعلام النبلاء: ۳۶۲/۶.

[6] حواله بالا.

[7] عمدة القارى: ۲۸۱/۳.

**نوټ**: دمستملی رحمه الله اوکریمه رحمها الله په روایت ددې حدیث سند داسې دې: «**حدثنا حماد بن زید عن أیوب قال أبو عبدالله: أو هشام بن حسان عن حفصة**».

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دابوعبدالله نه مراد پخپله امام بخاری رحمه الله دې اولکه چه امام بخاری رحمه الله ته په دې کښې شك دې چه د حماد بن زید شیخ أیوب دې یا هشام بن حسان دې. او د شك دا کیفیت اوصورت صرف هم په دې مقام باندې دې ځکه چه هم پخپله امام بخاری رحمه الله داحدیث «**کتاب الطلاق**» **باب القُسط للحادة عند الطهر**» کښې هم په دې سند سره ذکرکړې دې لیکن هلته د شك اظهارکولونه بغیر «**حماد بن زید عن أیوب عن حفصة**» په طریق سره دا حدیث روایت کړې دې. بل د شك دا صورت صرف د امام بخاری رحمه الله په نیز راغلې دې خود نورو محدثینوحضراتو په نیز شك نه دې واقع شوې.[1]

## شرح حدیث

**قوله:: کنا ننهی**: نون اولی ضمه سره.[2]

واضحه دې وی چه دا نهی د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرف نه وه لکه چه ددې حدیث په دویم سند ، سند هشام بن حسان رحمه الله په دې باندې دلالت کوی د کوم طرف ته چه امام بخاری رحمه الله «**قال ابوعبدالله**» سره اشاره کړې ځکه چه په دې سند کښې ام عطیه رضی الله عنها ددې حدیث اسناد د حضورپاك طرف ته په صراحت سره کړې دی.[3]

**قوله:: نُحِدَّ**: د نون ضمه اوحاء کسره سره او په یوه نسخه کښې نحد په خائی تحد دې.[4]

دا صیغه **الإحداد** د باب افعال نه ده. د کومې معنی چه ده «**الامتناع من الزینة**» یعنی د زینت ترك کول.[5]

او د شریعت په اصطلاح کښې احداد هغه زینت پریخودو ته وائی کوم چه **معتده طلاق** «د طلاق عدت تیرونکې» او**معتده متوفی عنها زوجها** «دخاوند د وفات عدت تیرونکې» اختیاره وی. دویم لغت په دې لفظ کښې دادې چه دا حداد دمصدرنه دې کوم چه د نصر اوضرب دواړو نه راځی البته معنی د تولو هم ترك زینت ده.

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ددې مادې اصل **المنع** «منع کول» دی هم په دې وجه بواب ته هم حداد وئیلې شی ځکه چه هغه د تګ راتګ نه منع کول کوی.[6]

**قوله:: إلا علی زوج: کذا للأکثر**. البته د مستملی رحمه الله او حموی رحمه الله په روایت کښې «**إلا علی زوجها**» دې. لیکن دنحد موافق د اکثر روایت دې. اود مستملی او حموی د روایت توجیه داده چه په

---

[1]) فتح الباری: ۵۳۶/۱عمدة القاری: ۲۸۱/۳.
[2]) فتح الباری: ۵۳۶/۱عمدة القاری: ۲۸۲/۳.
[3]) فتح الباری: ۵۳۶/۱عمدة القاری: ۲۸۲/۳.
[4]) تحفة الباری: ۶۳٤/۱.
[5]) فتح الباری: ۵۳۶/۱عمدة القاری: ۲۸۲/۳.
[6]) عمدة القاری: ۲۸۲/۳.

زوجها كښې ضمير ماقبل «كنا ننهىٰ» كښې ذكرشوې ښځونه د يوې طرف ته راجع دې ځكه چه د «كنا ننهىٰ» معنى ده «كل واحدة منهن تنهىٰ أن تحد فوق ثلاث إلا على زوجها». دويمه توجيه داده چونكه په يوه نسخه كښې د نحد په ځائې ثحد د غائب صيغې سره دې نو «إلا على زوجها» والا روايت به هم دې نسخې موافق وى.[۱]

**قوله: أربعه أشهر وعشراً:** د عشر اعطف «أربعة أشهر» باندې دې چه د ظرفيت په وجه باندې منصوب دې او ددې عامل نحد فعل دې.[۲]

شارحين حضرات ليكلى دى چه عشراً نه مراد عشر ليال دې ځكه چه چرې ايام مراد وې نو عشرة به ئى ذكركولو يعنى عدد به ئى مؤنث ذكركولو. ځكه چه قاعده ده چه د يونه واخله ترلسو پورې عدد تميزكه چرې مذكروى نو دغه اعداد مؤنث راوړلې شى اوكه چرې د دغه اعداد تميز مؤنث وى نو هغه اعداد مذكر راوړلې شى. نوچونكه د ايام برخلاف ليالى مؤنث دى ځكه چه داد ليلة جمع ده په دې وجه ئى عدد مذكرذكركړو.

سره ددې چه د عشراً نه مراد عشرليال دې مګر ايام هم په دې كښې داخل دى البته د ليالى اعتبار په دې وجه سره دې چه د اصل ابتداء د مياشتو يا ورځو هم د شپونه كيږى. چنانچه علامه زمخشرى رحمه الله آيت ﴿أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا﴾ په تفسيركښې ليكى كه چرې څوك د عشراً په ځائى عشرة اووائى نو اوګنړئى چه هغه د كلام عرب نه اووتلو ځكه چه د عربو په كلام كښې داسې نه كيږى چه د تذكر (ايام) اعتباركولوسره اعداد مؤنث ذكركړې شوې وى.[۳]

دغه شان علامه بيضاوى رحمه الله هم ددې آيت په تفسيركښې فرمائى چه عشراً ليالى (مؤنث) په اعتبارسره دې اود ليالى اعتبار په دې وجه دې ځكه چه هم د ليالى نه شهور (مياشتو) او ورځو شروع كيږى اودعربو په كلام كښې داسې نه كيږى چه دايام اعتباركولوسره عدد مؤنث راوړلې شى. تردې چه اهل عرب خود روژو متعلق هم داسې وائى «صمت عشرا» سره ددې چه روژه هم په ورځ كښې وى بياچونكه ليالى اصل دې په دې وجه به ايام هم پخپله مراد وى.[۴] بعض حضرات فرمائى چه ددې اعداد مذكر او مؤنث راوړلو فرق هغه وخت دې كله چه تميز مذكور وى اوكله چه تميز مذكور نه وى لكه چه دلته مذكورنه دې نودا اعدادمذكراومؤنث دواړه شان ذكركيدې شى.[۵]

**څلورمياشتې اود لسو ورځو تعيين:** شارحينو حضراتو ليكلى دى چه ددې مودې تعيين په دې وجه كړې شوې دې چه د حمل اوجنين حركت اكثر هم دومره موده كښې ښكاره كيږى.[۶] علامه قسطلانى رحمه الله نور وضاحت كولوسره فرمائى چه كه چرې حمل هلك وى نو دهغه حركت په دريو مياشتوكښې ښكاره كيږى او كه چرې جيننى وى نو په څلور مياشتو كښې ئى حركت ښكاره كيږى.

---

[۱] فتح البارى: ۵۳۶/۱عمدة القارى: ۲۸۳/۳.
[۲] عمدة القارى: ۲۸۳/۳.
[۳] عمدة القارى: ۲۸۳/۳تحفة البارى: ۶۳۴/۱إرشادالسارى: ۵۵۲/۱شرح الكرمانى:۱۷۹/۳-۱۷۸.
[۴] إرشادالسارى: ۵۵۲/۱.
[۵] شرح الكرمانى: ۱۷۹/۳عمدة القارى: ۲۸۳/۳.
[۶] التوضيح: ۷۲/۵تحفة البارى: ۳۵۱/۱عمدة القارى:۲۸۳/۳.

البته ځلورمیاشت اولس ورځو نوره اضافه په دې وجه کړې شوې ده ځکه چه بعض وخت داسې هم کیږي چه په شروع کښې د جنین حرکت ډیر معمولي وي د کوم چه ښځې ته احساس نه کیږي نو په نورو لسو ورځوکښې به د هغې اظهارهم اوشي. بیا چونکه ځلور میاشتې اولس ورځې اکثرموده ده په دې وجه ددې تعیین اوکړې شو.(١)

علامه ملقن رحمه الله فرمائي چه د مذکوره حدیث الفاظ «فوق ثلاث إلا علىٰ زوجها» نه مستفاد کیږي که چرې د ښځې په نیزدې خپلوانو مثلاً رور، خور، مور پلار وغیره نه څوك انتقال شی نو په دې باندې ښځه په یوشان درې ورځې د ترك زینت عمل اختیارولې شي البته ددې نه زیات شرعاً اجازت نشته دې اوددې دریو ورځو شروع به د راتلونکې شپې نه کیږي. که چرې انتقال د ورځې په وخت کښې اوشو یا د شپې د څه حصې په وخت کښې اوشو نود هغه ورځې او دهغه شپې اعتباربه نه شی کولې بلکه د راتلونکې شپې نه به شروع کیږي.(٢)

**قوله:: ولا نكتحل:** که چرې دا په نحد باندې معطوف اومنلې شی نودا به په حالت نصبی کښې وی اوکه چرې په ننه یت باندې معطوف اومنلې شی نو په حالت رفعي کښې به وی. علامه بدر دمیاطی رحمه الله فرمائي چه دافعل په منصوب لوستلوکښې په معنی کښې لازمی خرابی راځي اوهغه خرابی داده چه دمنصوب لوستلو په صورت کښې ددې عطف به په نحد باندې وي اوتقدیري عبارت به نې شی چه «كنا ننهىٰ أن لا نكتحل» په کوم سره چه دمعنی فساد لازمی راځي ځکه چه معنی به داسې شی چه مونږ به د رانجو نه لګولونه منع کولې شو اودلته دا معنی مقصود نه ده. البته په نحد باندې دعطف د جواز صورت دادې چه په لا نكتحل کښې لا زائده د پاره د تاکید اومنلې شی نو په داسې صورت کښې به د لا نكتحل عطف هم په نحد باندې شي او لا زائده کیدود وجې نه به په معنی کښې خرابی هم نه لازمیږي. لیکن په دې باندې اشکال کیږي چه لا زائده د پاره د تاکید ضرور دې چه ددې نه وړاندې د نفي معنی تیره شوې وی خودلته داسې نه دی، نوددې اشکال جواب دادې چه ماقبل کښې دنفي معنی موجود ده کومه چه د نهي په صورت کښې ده لهذا اوس هیڅ اشکال باقي پاتې نه شو.(٣)

**قوله:: إلا ثوب عصب:** عصب دیویمنی کپړې نوم دې کومه چه به دعربوښځو په عامو حالاتوکښې استعمالوله. دا به د یومعمولي درجې کپړه وه، پتیداره یعنی څه ځانی کښې سپینه او څه ځائی کښې رنګینه.(٤)دا داسې اوګنړئی لکه زمونږ کلاده چه د پومنبدې دتارونو ګیدئی چه ځایی په ځائی اوتړلې شی او د رنګ په اوبو کښې اچوی. دغه تارونه چه چرته تړلې شوې وی هلته رنګ نه رسی اودغه شان دغه تارونه چرته سپین اوچرته رنګین شی. دداسې تارونونه چه کومه کپړه جوړولې شی په هغې کښې څه خړوالې شان پیداکیږي چه په هغې نه څه زینت وی اونه څه ښائشته والې اونه د زینت په موقع باندې دغه استعمالولې شی(٥)اوداهم اوریدلی شوی دی چه ثوب عصب د پیکه رنګ توري کپړې ته

---

(١) إرشادالساري: ٥٥٢/١.
(٢) التوضیح: ٧٢/٥.
(٣) إرشادالساري: ٥٥٢/١تحفة الباري: ٢٥١/١عمدة القاري: ٢٨٣/٣.
(٤) التوضیح: ٧٤/٥شرح الكرماني: ١٧٩/٣عمدة القاري: ٤١٨/٣.
(٥) فیض الباري: ٤٩٦/١.

وائي.([1])

**قوله:: نبذة**: د نوو ضمه اوفتحه سره ددې لفظ اطلاق په هغه ځيزباندې كيږي چه په كم مقدار كښې وي اودلته ددې نه مراد وړه شان ټكړه ده. دنبذة جمع أنباذ راځي.([2])

**قوله:: من كست أظفار**:

**دعلامه رشيداحمد ګنګوهي رحمه الله رائې**: علامه ګنګوهي رحمه الله فرمائي چه دلته بهترين توجيه د عطف د حرف حذف دې كوم چه دعربو په محاوراتو كښې عام دې. يعنې د كست او أظفارنه چه كوم يو هم وي يا ددې په شان د نورو خوشبوداره ځيزونونه لوګې اخستې شي.([3])

**دمولانامحمدحسن مكي رحمه الله رائې**: مولانامحمدحسن مكي رحمه الله فرمائي چه دا په اصل كښې «من كست أظفار» دې اوددې دواړو نه هريو يوخاص قسم خوشبوئي ده. البته دلته د كست د أظفار طرف ته نسبت كړې شوې دې او دا اضافت اونسبت په قلت يعنى كمى كښې د تشبيه په غرض سره دى. يعنى تقديرى عبارت به داسې شى «من كست مثل أظفار» چه دا حائضه ښځې د حيض د غسل نه د فراغت نه پس د كست خوشبوئى استعمال كړى چه د اظفارخوشبوئى په شان كمياب ده.([4])

**د ابن التين رحمه الله رائې**: ابن التين رحمه الله فرمائي چه صحيح د كسف ظفار الفاظ دى يعنى دهمزه نه بغير او ظفارد يوښار نوم دې چه د سمندر په غاړه واقع دې. په داسې صورت كښې به مطلب داشى چه دا ښځې دې د كست خوشبوئى استعمال اوكړى كوم چه د ظفار په ښار كښې ملاويږى.([5])

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ابن التين رحمه الله كومه خبره كړې ده ما په رواياتو كښې دهغې ذكر نه دې ليدلې. البته صاحب مشارق هم دغه شان حكايت كړې دې مګر هغوى ظفارپه سواحل يمن باندې واقع يو ښار ګرځولې دې.([6])

د ابن التين رحمه الله د قول تائيد د صحيح بخارى **باب القسط للحادة** نه هم كيږى ځكه چه هلته په متن كښې هم د**كست ظفار** الفاظ دى، سره ددې چه په حاشيه كښې د **كست أظفار**نسخه هم ده خو **باب تلبس الحادة ثياب العصب** روايت كښې **قسط وأظفار** الفاظ درج دى. په كوم سره چه دحضرت ګنګوهي رحمه الله د قول تائيد كيږى. دغه شان د علامه ګنګوهي رحمه الله د قول تائيد دحافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله د اقوالو نه هم كيږى ځكه چه حافظ ابن حجر رحمه الله د امام مسلم رحمه الله په حواله سره وئيلى دى چه د هغوى په روايت كښې **من قسط أوأظفار** الفاظ دى.([7]) يعنى د واؤ عاطفه سره او واؤ عاطفه هم د أو په معنى كښې دې. ددې دواړو حضراتو د كلام نه هم دعلامه ګنګوهي رحمه الله د كلام تائيد كيږى چه دلته

---

[1]) إيضاح البخاري:۱۰۷/۱۱.

[2]) عمدة القاري:۴۱۸/۳.

[3]) لامع الدراري: ۲۵۹/۲-۲۵۷.

[4]) الكنز المتواري:۲۷۱/۳.

[5]) عمدة القاري: ۴۱۸/۳التوضيح: ۷۵/۵فتح الباري: ۴۱۴/۱.

[6]) فتح الباري: ۴۱۴/۱.

[7]) فتح الباري: ۴۱۴/۱صحيح مسلم كتاب الطلاق باب وجوب الإحداد فى عدة الوفاة الخ رقم الحديث ۳۷۴۰.

حرف عطف محذوف دي.([1])

بهرحال مطلب دادې چه د حیض پاکیدو نه پس دغسل په وخت د دغه خوشبویانونه یوه خوشبوئی استعمال کړی دي دپاره چه د څرمن زیریدل او راغونډیدل کوم چه د حیض د وینې په وجه پیدا شوی دی د هغې فی الجمله ازاله اوشی او راتلونکی وخت کښې د مونځ وغیره په وخت ددې څیزونو خیال د طبیعت د خرابیدو موجب جوړنه شی.

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه علامه عینی رحمه الله د صحیح مسلم د روایت په حواله سره ((من قسط وأظفار)) نقل کړی دی مګر دواړه صحیح دی خکه چه واؤ او أو دواړو روایت دامام مسلم رحمه الله نه صحیح دي.([2])

علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه دلته په روایت کښې کست په ضمه دکاف اوسکون د سین راغلې دې خو په دویم او دریم لغت په دې لفظ کښې دادې چه دا قسط اوکسط هم لوستلې شی اودا په کلی والو کښې استعمالیدونکې یو خوشبوئی نوم دې.([3])

دغه شان دکست یو نوم قسط هندیؒ هم دې دا معرب دې "کُٹ" په اردوکښې دې ته "کٹ" هم وئیلی شی.([4]) بل که لفظ أظفار چرته الف سره وی نود بعض په نیز داد ظفر جمع ده دا دیوقسم بوټی خوشبوئی ده کوم چه د نوکونو په شکل کښې وی. دا بخورکښې شاملولوسره په کپړو وغیره باندې مرلې شی ددې پوره نوم أظفار الطیب دې او هم په دې نوم سره عطرونو والوسره ملاویږی.([5]) د بعض شارحینو حضراتو رائې داده چه دا لفظ أظفارنه دی بلکه ظفاردې بغیرد همزه نه دې اود قسطام په وزن باندې مبنی علی الکسر دې. په داسې صورت کښې د یمن په ملك کښې واقع د یوخائی نوم دې چرته چه دا قسط هندی راوړلې اوخرڅولې شوهم په دې مناسبت سره د دې نوم کست ظفار شو اود کست اضافت د ظفار طرف ته اوکړې شو.([6])

**د احداد لغوی او شرعی معنی:** په حدیث مذکورکښې لفظ نحد راغلې دې د کوم په اشتقاق کښې چه دوه لغتونه دی. اولنې لغت دادې چه دا لفظ د احداد مصدر نه مشتق دې اودویم لغت دادې چه دا لفظ د حداد نه مشتق دې. اول ثلاثی مزید فیه دې اودویم ثلاثی مجرد. البته د دواړو معنی یوه ده یعنی د زینت پریخودل. امام اصمعی رحمه الله فرمائی چه دا لفظ صرف اوصرف احداد یعنی د ثلاثی مزید فیه نه مشتق دې او حداد یعنی د ثلاثی مجرد نه ئې د دې دمشتق کیدو نفی فرمائیلې ده.([7]) د شریعت په اصطلاح کښې د احداد معنی داده: ((ترك الزينة ونحوها من معتدة بطلاق بائن أوموت))([8]) بیا

---

[1]) أنوارالباري: ۴۴۱/۱۰.

[2]) الکنزالمتواری: ۲۷۲/۳.

[3]) إرشادالساری: ۵۵۳/۱.

[4]) إیضاح البخاری: ۱۰۸/۱۱.

[5]) إرشادالساری: ۵۵۳/۱عمدة القاری: ۴۱۹/۳-۴۱۸فتح الباری: ۴۱۴/۱.

[6]) إرشادالساری: ۵۵۳/۱عمدة القاری: ۴۱۹/۳-۴۱۸فتح الباری: ۴۱۴/۱.

[7]) حاشیه ابن عابدین: ۲۱۶/۵دار عالم الکتب البحرالرای: ۲۵۲/۴فتح الباری: ۴۱۴/۱.

[8]) حاشیه ابن عابدین: ۲۱۷/۵ البحرالرای: ۲۵۲/۴.

يو دې احداد او بل دې اعتداد. د اعتداد معنى ده ((تربص المرأة مدة محدودة شرعاً لفراق زوجها بوفاة أو طلاق أو فسخ)) يعنى شرعاً د ښځې د يومحدود وخت پورې د خاوند په انتقال باندې يا د طلاق د وجې نه يا د نكاح د فسخ كيدو د وجې نه يعنى د خلع په وجه انتظاركول (عدت تيرول). د احداد او اعتداد په مينځ كښې علاقه اومناسبت دادې چه داعتداد او احداددپاره ظرف دې ځكه چه د احداد عمل ښځه هم دغه د عدت په ورځو كښې اختياروى.

د امت دعلماؤ په دې خبره باندې اجماع ده چه احداد (ماتم كول) معتدة متوفى عنها زوجها (د خاوند د وفات عدت تيرونكې) باندې واجب دى كه هغه مدخول بها وى اوكه غيرمدخول بها وى. (١) په دې باندې دليل هم د دې باب هم دغه حديث دې ځكه چه په دې حديث كښې رسول الله ﷺ على الاطلاق د خاوند د انتقال عدت تيرونكې ښځه باندې احداد لازم ګرځولې دې كه هغه مدخول بها وى اوكه غيرمدخول بها.

بيا لكه څنګه چه په دې باندې اجماع ده چه ماتم كول دمعتدة متوفى عنها زوجها باندې واجب دى. هم دغه شان په دې باندې هم اجماع ده چه معتدة طلاق رجعيه (د طلاق رجعى عدت تيرونكې ښځه) باندې احداد نشته دې بلكه د مطلقه رجعيه نه خودا مطلوب دى چه هغه دې د خپل خاونددپاره په عدت كښې ښكلې او ښائسته وى. اميد دې چه الله تعالى د دوارو په مينځ كښې څه لار راؤباسى. (٢)

**قوله: معتدة طلاق بائنه**: د معتده طلاق بائنه باره كښې د فقهاؤ اختلاف دې. احناف رحمهم الله فرمائى چه معتده طلاق بائنه باندې هم احداد لازم دې ځكه چه ددغه ښځې نه د نكاح په شان عظيم نعمت ختم شوې دې او داسې په دغه حيثيت سره دمعتده طلاق بائنه مشابهت معتدة متوفي عنها زوجها سره كيږى. لهذا د نكاح په شان عظيم نعمت زائل او فوت كيدو د وجې نه په معتده طلاق بائنه باندې هم احداد لازم كيږى. (٣) هم دغه د امام شافعى رحمه الله قول قديم (٤) اود امام احمد رحمه الله نه يو بل روايت دې. (٥) خودامام شافعى رحمه الله جديد قول دادې چه په مطلقه ثلاثه او مطلقه بائنه باندې احداد او ماتم كول واجب او لازم نه دى. (٦)

مالكيه حضرات فرمائى چه په معتده طلاق بائنه باندې احداد نشته دې ځكه چه پريخودونكې خاوند دې نه چه ښځه. په دې وجه هغه سړې اوس ددې خبرې مستحق نه دې چه دغه ښځه دې دهغه دپاره ماتم اوكړى. (٧) هم دغه د امام شافعى رحمه الله قول جديد دې. (١) اود امام احمدنه يو بل روايت هم

---

(١) حاشيه ابن عابدين: ٢١٧/٥عمدة القارى: ٣/ ٤٢٠-٤١٩دارالكتب العلمية، المغنى لابن قدامة: ٩/ ١٦٧ المجموع شرح المهذب: ٢٠/ ٣٤.

(٢) تبيين الحقائق مع هامشه كتاب الطلاق باب العدة فصل فى الحداد: ٢١٨/٣حاشية ابن عابدين: ٥/ ٢٢٠بدائع الصنائع: ٤/ ٤٦٣عمدة القارى: ٣/ ٤٢٠ المغنى لابن قدامة: ٩/ ١٦٧ المجموع شرح المهذب: ٢٠/ ٣٥.

(٣) تبيين الحقائق كتاب الطلاق باب العدة فصل فى الحداد: ٣/ ٢٦٧-٢٦٦حاشية ابن عابدين: ٥/ ٢١٧النافع الكبير شرح الجامع الصغير: ١/ ٢٣٠بدائع الصنائع: ٤/ ٤٦٢.

(٤) المجموع شرح المهذب: ٢٠/ ٣١.

(٥) المغنى لابن قدامة: ٩/ ١٧٩.

(٦) المجموع شرح المهذب: ٢٠/ ٣١.

(٧) الاستذكار: ٥/ ٢٤٠المغنى لابن قدامة: ٩/ ١٧٩ عمدة القارى: ٣/ ٤٢٠.

دي. (۲)هم دا مذهب ډيرو تابعينو حضراتو لکه سعيدبن المسيب رحمه الله ابوثور رحمه الله (۳) عطاء ربيعه او ابن المنذر رحمهم الله وغيره اختيارکړې دې. (۴)البته د امام شافعي رحمه الله نه يوقول جديد داهم نقل دې چه په معتده طلاق بائنه باندې اداد واجب خونه دې مگر مستحب دې.(۵)
دغه شان يوه داسې ښځه د کومې خاوند چه وفات شي خودهغوی د نکاح بنياد په نکاح فاسد باندې وی نود جمهورو په نيز په دې باندې هم احداد لازم نه دې خکه چه دا ښځه حقيقي بی بی نه ده. اوبيا چه کله داسې نکاح باقي ساتل د نحوست سبب دې نود دې ختميدل د رحمت سبب دې نو په داسې ښځه باندې احداد هم نشته دې، خکه چه دلته د احداد څه محل نشته دې.(۶) البته په حنابله کښې قاضي ابويعلی رحمه الله فرمائي چونکه په داسې ښځه باندې عدت لازم دې نوددغه عدت اعتبار کولو سره به په دې باندې احداد هم لازم وی.(۷)

**دغيرزوج دپاره د احداد حکم:** د زوج يعنې خاوند نه علاوه د يونيزدې خپلوان په وفات باندې ښځو ته صرف د دريو ورځو ماتم کولو اجازت دې دې نه زيات شرعاً جائز اوحلال نه دې. ددې دليل د ابوسلمه رضي الله عنه دا روايت دې: «**لما أتي أم حبيبة نعي أبي سفيان، دعت في اليوم الثالث بصفرة فمسحت به ذراعيها وعارضيها وقالت: كنت عن هذا غنية، سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقول: لا يحل لامرأة تؤمن بالله واليوم الآخر، أن تحد فوق ثلاث، إلا على زوج، فإنها تحد عليه أربعة أشهر وعشراً**» يعنې (چه) کله ام حبيبه رضي الله عنها ته (د خپل پلار) ابوسفيان د انتقال خبر اورسيدو نودهغې په دريمه ورځ هغې رضي الله عنها سفره راؤغوښتله او هغه ئې په خپلو متو او اننگو باندې اومږل او وئې فرمائيل چه زه ددې داستعمال نه مستغني ووم (مگر) ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلی دی چه د يوې مؤمنې ښځې دپاره حلال نه دی چه هغه بغيرد خاوند نه په بل چا باندې د دريو ورځونه زيات ماتم اوکړی البته دخاوند په انتقال باندې څلور مياشتې او لس ورځې ماتم کولو حکم دې.
بل خاوند ته ددې خبرې حق هم حاصل دې چه هغه دې دخپل نيزدې خپلوانو په وفات باندې ښځه د ماتم کولونه منع کړی.(۸)

**د زوج مفقود دپاره د احدادحکم:** دغه شان هغه ښځه د چاد خاوند چه د اوږدې مودې راسې څه اته پته نه وی چه هغه مړ دې که ژوندې نود امت د علماؤ اجماع ده چه کله عدالت د داسې مفقود (ورک شوی) سړی باندې د مړکيدو حکم اولگوی نوددغه حکم د لگيدو نه پس به هغه ښځه دخاوند د وفات عدت شروع کوی. ليکن آيا په دغه ښځه باندې په عدت کښې احداد هم واجب وی که نه؟ نود جمهور علماؤ مسلك دادې چه په دغه ښځه باندې دمعتده وفات کيدو په اعتبارسره احداد هم واجب دې

---

(۱) الاستذكار: ۲٤٠/٥ المغنی لابن قدامة: ۱۷۹/۹ عمدة القاری:۴۲۰/۳.
(۲) المغنی لابن قدامة: ۱۷۹/۹.
(۳) الاستذكار: ۲٤٠/٥.
(۴) الاستذكار: ۲٤٠/٥ المغنی لابن قدامة: ۱۷۹/۹ عمدة القاری:۴۲۰/۳.
(۵) الاستذكار: ۲٤٠/٥.
(۶) بدائع الصنائع: ٤٦۳/٤ تبيين الحقائق: ۲٦۸/۳ الدرمختار: ۲۲۰/٥ المغنی لابن قدامة: ۱۷۹/۹ المجموع شرح المهذب: ۳٥/۲۰.
(۷) الموسوعة الفقهية:۱۰٥/۲.
(۸) حاشيه ابن عابدين:۲۲۱/٥-۲۲۰ البحرالرائق: ۲٥۳/٤.

البته په مالکیه کښې ابن ماشون رحمه الله فرمائي چه سره ددې په داسې ښځه باندې عدت واجب دې مګر احداد واجب نه دې.

**د کتابیه دپاره د احداد حکم:** داسې ښځه چه په خپله خود اهل کتاب نه ده لیکن دهغې خاوند مسلمان دې نو آیا دمسلمان خاوند کتابیه ښځه باندې د خاوند دانتقال نه پس دعدت دوران کښې احداد وی که نه؟ نود شوافع حنابله او ابن قاسم رحمه الله د روایت مطابق دامام مالک رحمه الله مذهب دادې چه زوجه کتابیه متوفی عنها زوجها المسلم باندې احداد لازم دې ځکه چه احداد د عدت تابع دې نوچه کله عدت واجب دې نو احداد به هم وی.

حضرات حنفیه او امام الشهب رحمه الله د روایت مطابق د امام مالک رحمه الله مذهب دادې چه په کتابیه باندې احداد لازم نه دې په دې وجه چه د رسول الله ﷺ د پاک ارشاد: «لایؤمن لامرأة تؤمن بالله والیوم الآخر.... الخ» نه هم دغه معلومیږی چه احدادهم د مسلمانانو ښځونه مطلوب اومقصود دې.(۱)

**د زوجهٔ صغیره دپاره داحدادحکم:** د صغیره ښځې باره کښې اختلاف دې. د جمهور فقهاؤ مذهب دادې چه په صغیره باندې هم احداد لازم دې ځکه چه احداد دعدت تابع دې اود هغې د ولی په ذمه دې چه هغه دې دغه صغیره د احداد د منافی کارونونه منع کړی. دغه شان د ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې چه یوه ښځه د حضورپاک په خدمت کښې حاضره شوه اووئې وئیل اې دالله تعالی رسول ﷺ! زما د لورد خاوند انتقال شوې دې اودهغې په سترګه کښې د درد شکایت دې نوآیا هغه رانجه استعمالولې شي؟ نو حضورپاک هغه منع کړه. په دې واقعه کښې حضورپاک دهغه جینئی دعمر باره کښې معلومات اوه کړل اودا اصول دی چه کله په مقام د سوال کښې تفصیل طلب نه کړې شی نوهغه دعموم دلیل وی لهذا دلته به هم حکم عام وی اوصغیره اوکبیره دواړو ته به شامل وی. (۲)

د حضرات حنفیه رحمهم الله مذهب دادې چه په صغیره باندې احداد نشته دې دهغوی استدلال ددې روایت نه دې: «رفع القلم عن ثلاث: عن النائم حتی یستیقظ، وعن المبتلی حتی یبرأ وعن الصبی حتی یکبر» یعنی درې کسان مرفوع القلم دی یعنی د احکامو مکلف نه دی. یوپه هغوی کښې نائم دې تردې چه هغه د خوب نه بیدار شی. دویم مجنون دې ترکومې چه دهغه د جنون نه افاقه اونه شی او دریم ماشوم دې ترکومې چه هغه بالغ نه شی. نور احناف رحمهم الله فرمائی که چرې صغیره د عدت دوران کښې بالغه شی نود عدت په باقی ورځو کښې به احداد واجب وی.(۳) علامه ابن ملقن رحمه الله فرمائی چه دحدیث د ظاهر نه دا معلومیږی چه احداد په هره واده کړې ښځه باندې واجب دې که هغه مدخول بها وی اویا غیرمدخول بها، که بالغه وی اوکه نابالغه وی، یا که آزاده وي اوکه وینځه وی. البته د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دادې چه په صغیره او وینځه باندې احداد نشته.(۴)

هم دغه شان داهم فرمائی چه د حدیث د ظاهرنه دا هم معلومیږی چه زوجهٔ کتابیه د کومې خاوند چه مسلمان مړشی باندې احداد واجب نه دې. (۵)

---

(۱) المجموع شرح المهذب: ۳۶/۲۰ التوضیح: ۷۱/۵ الاستذکار: ۵/ ۲۴۰-۲۳۹ عمدة القاری: ۴۲۰/۳.

(۲) المجموع شرح المهذب: ۳۶/۲۰.

(۳) بدائع الصنائع: ۴۶۳/۴-۴۶۲ حاشیة ابن عابدین: ۲۱۹/۵.

(۴) التوضیح: ۷۱/۵ عمدة القاری: ۴۲۰/۳-۴۱۹.

(۵) التوضیح: ۷۱/۵ عمدة القاری: ۴۲۰/۳.

**ماتم کونکې ښځه به دکومو کارونونه ځان ساتي؟** په دې خبره باندې ټول ائمه مجتهدين او فقهاء متفق دي چه د ماتم والاښځه به د هغه ټولو کارونونه بالکليه اجتناب کوی چه په شريعت کښې يا په عرف کښې زينت ګڼړلې شي. که د دغه امورو تعلق د بدن سره وی يا کپړو سره وی يا که داسې امور وی د کوم طرف ته چه خلق په غلط نظر سره ګوری لکه د کور نه وتل يا د نکاح پيغام ورکول وغيره.[1]
البته بعض څيزونه داسې دی دکوم په منع کيدو يا نه منع کيدوکښې چه د ائمه فقهاء په مينځ کښې اختلاف وی. ليکن په تحقيق سره داخبره ثابتيږی چه د دغه فقهاؤ دا اختلاف په حقيقت کښې دعرف په اختلاف باندې مبنی دې. لهذا په کوم عرف کښې چه کوم څيز زينت شميرلې کيږی هغه فقهاؤ منع کړو اوکوم چه زينت نه شميرلې کيدو نوهغه فقهاؤ په ممنوعاتوکښې هم شميرنه کړل. مګر دې سره سره داخبره هم وه چه هم يو څيزد بعض په نيز يا د بعض په عرف کښې زينت ګڼړلې شی اود بعض په نيز ددې عکس وی. بل چه څومره ممنوعات او محظورات دی هغه ټول خود بدن سره متعلق دی يا کپړو سره يا کالو سره يا پيغام د نکاح سره يا بيا د شپې تيرولوسره متعلق دی.

① **محظورات بدنيه:** په ماتم کونکې ښځه باندې ددې څيزونو استعمالول حرام دی د کومې تعلق چه د بدن د زينت سره وی لکه خوشبوئي، تيل، رانجه، وسمه اود ګمنز استعمال، ځکه چه د حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ معتده د نکريزو لګولونه منع کړې ده. اوعلت ئې دا بيان کړې دې چه نکريزې خوشبوئی ده ددې نه معلومه شوه چه د خوشبوئی نه اجتناب کول محده (ماتم کونکې ښځه) باندې واجب دی. ددې نه علاوه داخبره هم واضحه ده چه خوشبوئی په زينت کيدوکښې د نکريزو نه زياته ده. لهذا سره ددې چه حضورپاک صراحةً د نکريزو نه منع فرمائيلې ليکن دلالةً د خوشبوئی نه ممانعت هم ثابتيږی. دغه شان تيل اورانجه دی چه تيل د ويښتو دپاره زينت او ښائست دې اورانجه دسترګو دپاره. په دې وجه په محده باندې ددې استعمال هم حرام دې.
داخبره دې واضحه وی چه داحکم دعامو حالاتودپاره دې د ضرورت په موقع باندې دغه محده ددې څيزونو استعمال کولې شی لکه چه په سترګوکښې درد دې اود علاج په توګه رانجه استعمالول ضروری دی نو رانجه استعمالولې شی يا په سرکښې تکليف دې نوبغيرد خوشبوئی والا ګمنزه استعمالولې شی. يا هغې سره بغيرد رنګدارو کپړونه بل څه کپړې نشته نو په داسې موقع باندې هغه هم دغه رنګدارې کپړې استعمالولې شی خو په دې کښې دا ضروری دی چه د زينت اوځان ښائسته کولو قصد اواراده شامل حال نه وی.[2]

② **محظورات لباس:** دکومو کپړو متعلق چه د ممانعاتونصوص راغلی دی لکه دعصفر اوزعفران سره رنګ کړې شوې کپړې ځکه چه دې نه خوشبوئی خوريږی نوداسې کپړو سره به دهغه کپړو استعمال هم منع وی کوم چه په عرف کښې زينت ګڼړلې شی لکه ريښمنې کپړې رنګدارې اوګلدارې کپړې. بلکه په عدت کښې داسې کپړې اچول هم ناجائز دی چه د معتده د ښائست سبب وی سره ددې چه هغه د تور رنګ يا پيکه رنګ والا ولې نه وی. البته فقهاؤ ليکلی دی چه دا احکام هغه وخت دی کله چه داکپړې نوې وی اود زينت سبب وی. خوکه ښم دغه رنګدار ګلدارې کپړې دومره زړې او مخلې وی چه دغه وخت د هغې نه د زينت کار نه شی اخستلې نوبيا دهغې په اغوستلوکښې څه حرج

---

[1] حاشية ابن عابدين: ۲۱۷/۵المجموع شرح المهذب: ۳۷/۲۰.
[2] المجموع شرح المهذب: ۳۸/۲۰حاشية ابن عابدين: ۲۱۹/۵-۲۱۷المغنى لابن قدامة: ۱۶۸/۹-۱۶۷.

نشته دي. (۱)

③ **د کالو ممانعت:** په محده باندې دعدت په ورځوکښې کالی اچول هم حرام دی که هغه کالی د سرو زرو نه جوړ وی اوکه د سپينو زرو نه يا بيا د نورو هيرو اومرغلرو نه جوړشوې وی. ځکه چه کالی هم د زينت د پاره استعمالولې شي. لهذا د خاوند د مرګ خبر په اوريدو باندې په ښځه باندې کالی پټری کوزول لازم او ضروری دی. (۲)

④ **د نکاح د پيغام نه ممانعت** په عدت کښې د نکاح ليګلو سره متعلق حکم دادې که چرې معتده متوفى عنها زوجها ده نوهغې ته په صراحت سره پيغام د نکاح ليګل حرام دی. البته د نکاح صراحت کولونه بغير کنايةً د نکاح پيغام ورليګلې شی. لکه چه په دې جملوکښې د نکاح تصريح نشته زما نه خوښه ئې، زه ستاد شخصيت نه متاثره يم. ته ډيره ښائسته ئې. زه غوارم چه مونږ يو شو وغيره وغيره. اوکه هغه معتده طلاق ده سره د دې که هغه مطلقه بائنه وی يا مطلقه رجعيه وی نودهغې طرف ته د نکاح پيغام ليګل نه صراحةً جائز دی اونه اشارةً اوکنايةً. (۳)

⑤ **د کورنه د وتلو ممانعت:** فقهاء کرامو ليکلی دی چه معتده د طلاق دپاره نه د ورځې وختونوکښې د کور نه د وتلو اجازت دې اونه د شپې په وختونوکښې. البته د معتده د وفات د پاره اصلاح معاش دپاره دورځې په وختونوکښې د وتلو اجازت دې ځکه چه دهغې نان نفقه اوس پخپله هم دهغې ذمه وارى ده اود معتده طلاق نفقه د خاوند ذمه وارى ده. دغه شان محده باندې لازم دی چه هغه دې شپه هم د خاوند په کورکښې تيره کړی بل چرته د شپې تيرولو اجازت نشته. ځکه چه په غزوه احد کښې د څه اصحاب رسول ﷺ شهادت اوشو نودهغوی کونډې بيبيانې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرې شوې اوعرض ئې اوکړو اې دالله تعالى رسول ﷺ ! مونږ د شپې ويريږو نو آيا مونږ داسې کولې شوچه شپه يوې بلې سره د تيرولونه پس سحر وختى خپلو خپلو کورونوته واپس شو؟ حضورپاک اوفرمائيل چه تاسو خپل مينځ کښې خبرې کولې شئ خوچه کله د خوب اراده وی نو هره يوه دې خپل کور ته واپس شی. (۴) بل په معتده باندې لازم دی چه هغه دې خپل عدت په هغه کورکښې تيرکړی چرته چه به هغه خپل خاوند سره اوسيدله. البته د ضرورت موقع ددې حکم نه مستثنى ده. لکه چه د کور د ورانيدو خطره وی، يا کور د کرايه وی اود معتده وفات د کرايه ورکولو طاقت نه وی نو په داسې مواقع باندې چرته بل ځائی خپله ټکانه جوړولې شی. (۵)

**مباح امور:** د محده دپاره دخپل بدن نه اوګېږو نه خيرى وغيره لرې کولوکښې څه حرج نشته دې لکه د نوکونو پرې کول، د ترخونو وينبته لرې کول، بغيرد خوشبوئى والاصابن سره لامبل او سر وغيره وينځل. (۶)

---

(۱) المجموع شرح المهذب: ۳۹/۲۰حاشية ابن عابدين: ۲۱۹-۵/۲۱۸.

(۲) المجموع شرح المهذب: ۳۹/۲۰حاشية ابن عابدين: ۲۱۷/۵المغنى لابن قدامة: ۱۶۸/۹.

(۳) حاشية ابن عابدين: ۲۲۲/۵-۲۲۱.

(۴) حاشية ابن عابدين: ۲۲۵/۵-۲۲۳.

(۵) المغنى لابن قدامة: ۱۶۸/۹.

(۶) المغنى لابن قدامة: ۱۶۸/۹.

**قوله:: قال: رواه هشام بن حسان عن حفصة عن أم عطية عن النبي ﷺ**: شراح حدیث فرمائی چه د ابوزر رحمه الله په نسخه کښې الفاظ هم داسې دی خود نورو حضراتو په نسخو کښې "ورواه" الفاظ دی.[1]

دامام بخاری رحمه الله مقصد داخودل دی چه داحدیث دهشام بن حسان رحمه الله په طریق سره موصول دې اوامام بخاری رحمه الله کتاب الطلاق باب تلبس الحادة ثیاب العصب کښې داحدیث د هشام بن حسان رحمه الله په طریق سره موصولاً هم روایت کړې دې.[2]

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دا د امام بخاری رحمه الله د طرف نه پیش کړې شوې یوتعلیق دې اویا بیا د حماد رحمه الله مقوله ده. که چرې داد حماد رحمه الله مقوله اوګرځولې شی نوبیابه دا هم مسند وی.[3] مګر شراح حدیث د علامه کرمانی رحمه الله په دې کلام باندې نقد کړې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی د علامه کرمانی رحمه الله داد حماد رحمه الله مقوله ګرځول بعید دی.[4] دغه شان علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا تعلیق ګرځول خو واضحه دی مګر دا د حماد رحمه الله مقوله ګرځولو څه وجه نه معلومیږی.[5]

حاصل دکلام دادې چه د امام بخاری رحمه الله مقصد ددې خبرې نه داخودل دی چه دا حدیث د هشام بن حسان رحمه الله په طریق سره موصول دې مګر په دې باندې دا اشکال نه وی چه د ایوب رحمه الله روایت موقوف دې څکه چه امام بخاری رحمه الله دهغوی په طریق کښې «عن أم عطية عن النبي» نه دې وئیلې څکه چه د كنا يا كانوا په شان د الفاظو مطلب دا وی چه داسې د رسول الله ﷺ په زمانه کښې واقع شوی دی اورسول الله ﷺ دا ثابت ساتلی دی ددې نه ئې منع نه ده فرمائیلې لهذا دا هم مرفوع روایت دې.[6]

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: ترجمة الباب د حدیث د دې ټکړې نه ثابتیږی «**وقد رخص لنا عند الطهر إذا اغتسلت إحدانا من محيضها في نبذة من كست أظفار**» څکه چه په ترجمة الباب اوحدیث دواړو کښې دغسل حیض د فراغت نه پس د خوشبوئی لګولو ذکر دې.[7]

## ۱۳ - باب: دَلْكِ الْمَرْأَةِ نَفْسَهَا إِذَا تَطَهَّرَتْ مِنَ الْمَحِيضِ، وَكَيْفَ تَغْتَسِلُ وَتَأْخُذُ فِرْصَةً مُمَسَّكَةً، فَتَتَّبِعُ أَثَرَ الدَّمِ.

**اعراب**: "**وكيف تغتسل**" د دې عطف په «**دلك المرأة نفسها**» باندې دې اود "**تأخذ**" عطف په "**تغتسل**" باندې دې. ددې توضیح نه پس د ترجمة الباب مفهوم دا شو چه امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دا لاندینی امور بیان کړی دی:

---

[1] فتح الباري:۱/٤١٣ عمدة القاري: ۳/٤٢۱.
[2] فتح الباري:۱/٤١٣ عمدة القاري: ۳/٤٢۱.
[3] شرح الكرماني: ۳/۱۷۹.
[4] فتح الباري:۱/٤١٣.
[5] عمدة القاري:۳/٤٢۱.
[6] شرح الكرماني: ۳/۱۷۹.
[7] عمدة القاري:۳/۲۸۱.

① د ښځې دپاره مستحب دی چه هغه دې دحیض د پاکوالی نه پس غسل کولوخت کښې اندامونه مړلو سره اووینځی. ② ښځه به د حیض غسل څنګه کوی. ③ وړنی مالوچ یا د څرمن ټکړه دې واخلی. ④ اوبیا دې ددې په امداد سره د وینې اثرات لرې کړی.(۱)

**ماقبل سره ربط**: سابقه باب سره ئې ربط دادې چه په سابقه باب کښې هم د خوشبوئی استعمالول ذکر وو او په دې باب کښې هم د خوشبوئی د استعمال ذکر دې.(۲)

**قوله:: فرصة**: دا لفظ دریواړه شان لوستلې شی البته په کسره سره زیات مشهور دې اوددې معنی وړنی یا دمالوچو ټکړه راځی.(۳)ابوعبید رحمه الله فرصة د مالوچو یا وړنی سره نه دې مختص کړې بلکه دهغوی په نیز د فرصة اطلاق د هرڅه په ټکړه کیدې شی که هغه د وړنی یا د مالوچو ټکړه وی اوکه د بل څه څیز ټکړه وی. خو ابن عدلیس رحمه الله فرمائی فرصة د مشك ټکړې ته وائی.(۴)

ابن قتیبه رحمه الله ددې لفظ په فاء سره د کیدو نه انکار کړې دې او وئیلی دی چه دا لفظ قرضة (قاف او ضاد) سره دې.دکوم معنی چه د ټکړې ده او بعض خودا لفظ قرصة (قاف او صاد) سره لوستلې دې. ابن المنذر رحمه الله فرمائی چه د قرضة معنی ده ((الشیء الیسیر)) یعنی لږ شان څیز.(۵)

**قوله:: ممسکة**: په دې لفظ کښې دوه احتماله دی. یوخودادې چه دا لفظ مُمَسَّکَة بضم المیم الأول یَا وفتح الثانیة وتشدید السین المعجمة اولوستلې شی په داسې صورت کښې به معنی دا وی چه هغه ښځه دې د وړنی مالوچو یا د بل څه څیز ټکړه واخلی چه په مشك کښې ملاؤ شوې وی یعنی مطیبة بمسك. دویم احتمال دادې چه دا لفظ مُمْسِکَة اولوستلې شی یعنی بضم المیم الأول یَا وسکون الثانیة وفتح السین المعجمة وکسرها. نو په داسې صورت کښې به مطلب داشی چه هغه ښځه دې د وړنی یا مالوچو خپره استعمال کړی چه ډیره جذب کونکې وی.(۶) علامه زمخشری رحمه الله فرمائی چه مراد دادې چه د وړنی یا مالوچو زړه خپره دې استعمال کړی ځکه چه ددې کارد پاره د نوې په نسبت زړه ډیره موزون ده.(۷)

علامه نووی رحمه الله ابن ملقن رحمه الله علامه قسطلانی رحمه الله او شیخ الاسلام زکریا انصاری رحمه الله وغیره اول احتمال اختیارکړې دې.(۸) شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی په دې ټولواقوالوکښې اوجه هم دغه دی چه فرصة ممسکة نه مراد دمشك ټکړه ده (یا په مشك کښې ملاؤ شوې دهریوڅیز ټکړه مراد ده) په کوم سره چه خرابه بدبوئی ختمه کړې شی.(۹)هم شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه بعض حضراتو د

(۱) عمدة القاری: ۲۸۴/۳.
(۲) عمدة القاری: ۲۸۴/۳.
(۳) التوضیح لابن ملقن: ۸۱/۵عمدة القاری: ۲۸۴/۳.
(۴) عمدة القاری: ۲۸۵/۳.
(۵) فتح الباری: ۵۴۷/۱.
(۶) التوضیح: ۸۲/۵عمدة القاری:۲۸۶/۳،۲۸۴.
(۷) التوضیح: ۸۲/۵عمدة القاری:۲۸۶/۳،۲۸۴.
(۸) التوضیح: ۸۲/۵أرشادالساری: ۵۵۳/۱تحفة الباری: ۲۵۱/۱.
(۹) الکنزالمتواری:۲۷۳/۳.

مُمسكة معنى په لاس كښې نيولې شوې خودلې ده ليكن دا بالكل غلط دى ځكه چه دا كپړا خو هم په لاس كښې نيولې كيږى.(١)

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې «دلك المرأة نفسها» الفاظ ذكركړى دى. د نفس دوه معنې كيدې شى يو وينه او بل بدن.(٢)

ددوارو معانو په لحاظ سره به د ترجمه مقصد جدا جدا شى. د رومبې معنى په اعتبارسره به مقصود داخودل شى چه ښځه دې د حيض په غسل كښې د وينو چاپونه ښه اومږى اود دويمې معنې په لحاظ سره به مقصود دا شى چه دحيض په غسل كښې دې ښځه خپل بدن ښه اومږى.(٣)

باقى دومره خبره به په دوارو ترجمو كښې مشترك پاتې شى چه آيا د حيض د غسل كيفيت دعام غسل په شان دې چه اوبه ئى اوبهيولې اوفارغ شو يا ددې څه خاص كيفيت دې. چنانچه په حديث شريف كښې ددې غسل يوخاص كيفيت بيان كړې شوې دې چه بدن مړلو سره وينځل پكاردى اود بدن په مخصوص حصه چرته چرته چه د وينو چاپونه دى هغه دې اولتوى او په هغې باندې مشك يا بل څه خوشبودار څيز استعمالول پكاردى. د مشك دا خاصه ده چه د څرمن مرژواندې حالت ختموى او تازګى بحال كوى او چونكه دحيض په وينه كښې سميت يعنى راغوندول وى دكوم په نتيجه كښې چه مخصوص حصه د بدن څرمن راغونډيږى په دې وجه د مشك داستعمال تاكيد كړې شوې دې.(٤)

دويم مصلحت دادې چه كه د مشك داستعمال نه پس دوينې چاپ باقى هم پاتې شى نودا به ګنړلې شى چه دا وينه نه ده بلكه مشك دى. لكه چه دا د تعلل نفس يوښه صورت دې د كوم چه زوجين ته ضرورت هم وى. ځكه چه كه څاپ پاتې شى اود خاوند نظر پرې اولګى نو په هغه باندې به د انقباض كيفيت شروع شى چه زياتيدوسره به د اختلاف اوكركې طرف ته اورسى.

دريم مصلحت دادې چه ارباب تجارت ليكلى دى چه د حيض د فراغت نه پس دبدن په دغه حصه باندې د خوشبوئى استعمال دعلوق نطفه دپاره معاون دى. ښځه خو په دغه ورخوكښې هسې هم د نقطه دقبلولوصلاحيت لرى دخوشبوئى استعمال به په دغه مقصد كښې نور هم ممداومعاون شى.(٥)

## الحديث الأول

[٣٠٨]-حَدَّثَنَا يَحْيَى، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ صَفِيَّةَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ غُسْلِهَا مِنَ المَحِيضِ، فَأَمَرَهَا كَيْفَ تَغْتَسِلُ، قَالَ: «خُذِي فِرْصَةً مِنْ مَسْكٍ، فَتَطَهَّرِي بِهَا» قَالَتْ: كَيْفَ أَتَطَهَّرُ؟ قَالَ: «تَطَهَّرِي بِهَا»، قَالَتْ: كَيْفَ؟، قَالَ: «سُبْحَانَ اللَّهِ، تَطَهَّرِي» فَاجْتَبَذْتُهَا إِلَيَّ، فَقُلْتُ: تَتَبَّعِي بِهَا أَثَرَ الدَّمِ.[٣٠٩، ٧٣٥٧]

---

(١) سراج القارى:٢/٢٧٦.
(٢) إيضاح البخارى:١١/١٠٩.
(٣) فضل البارى: ٢/٤٧٩.
(٤) إيضاح البخارى:١١/١٠٩.
(٥) إيضاح البخارى:١١/١٠٩.

**ترجمه**: د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه یوې ښځې د نبی کریم ﷺ نه د خپل حیض د غسل باره کښې تپوس اوکړو نوحضورپاك دې ښځې ته د غسل کیفیت خودلو سره اوفرمائیل چه د مشك ملاؤ شوې د وړنی وغیره ختړه واخله اوبیا په دې سره پاکی حاصله کړه. دې ښځې تپوس اوکړو چه څنګه پاکی حاصله کړم؟ حضورپاك بیا جواب ورکړو چه په دغه (خټړه) سره پاکی حاصله کړه. دغه ښځې بیا تپوس اوکړو (مګر) څنګه؟ نو حضورپاك اوفرمائیل سبحان الله پاکی حاصله کړه (حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه) بیا ما هغه خپل طرف ته راښکله او ورته مې اوونیل دا (د مشك ملاؤشوې خټړه) واخله د وینو چاپونه اولټوه او صفائی کړه.

## تراجم رجال

**یحیی**: د یحیی رحمه الله د حالات پیژندلو نه وړاندې ددې خبرې تعیین کول ضروری دی چه دلته دحدیث په دې سند کښې د یحیی نه مراد څوك دې؟ آیا یحیی بن موسی بلخی رحمه الله دې یا یحیی بن جعفر رحمه الله یا یحیی بن معاویه بن اعین رحمه الله مراد دې؟ نو اکثر شراح لکه علامه ابن ملقن رحمه الله علامه کرمانی رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عینی رحمه الله وغیره یحیی بن موسی بلخی رحمه الله خودلې دې. [2] هم په دې باندې ابن السکن رحمه الله هم جزم فرمائیلې دې خو علامه بیهقی رحمه الله فرمائی چه یحیی بن جعفر رحمه الله مراددې. [3]

غسانی رحمه الله په تقیید المهمل کښې د ابن السکن رحمه الله په حواله سره تحریرفرمائیلې دې چه باب الحیض کښې مذکور د یحیی عن ابن عیینه نه یحیی بن موسی رحمه الله مراد دې. په یوبل مقام باندې هم د ابن السکن رحمه الله په حواله په توکه د قاعده کلیه فرمائی چه امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې چرته چه یحیی بغیرد نسب نه ذکرکړې دې هلته دیحیی نه مراد یحیی ابن موسی بلخی رحمه الله کوم چه "خت" (بفتح الخاء المنقطة وشدة المثناة) په لقب سره هم مشهوردې. دغه شان "ختي" او "ابن خت" په لقب سره هم مشهور وو. دهغوی شمیر په اصحاب خیرکښې کیدلو اودهغوی انتقال ۲۴۰هجری کښې شوې. [4]

ابونصر کلاباذی رحمه الله فرمائی چه د یحیی نه مراد یحیی بن جعفر بیکندی رحمه الله دې چه دابن عیینه رحمه الله نه هم روایت کوی. [5] په دې باندې علامه کرمانی رحمه الله فرمائی مونږ سره موجود نسخوکښې هم یحیی بن جعفر بیکندی عن ابن عیینه په طریق سره سند موجود دې. [6] ابن ملقن رحمه الله فرمائی بعض شراح لیکلی دی چه یحیی بن معاویه بن اعین رحمه الله مراد دې خومونږ ددې نوم یو راوی په صحیح

---

[1]) قوله: عائشة: الحديث، رواه البخاري في باب غسل المحيض أيضاً المذكور عقيب هذا الباب، رقم الحديث: ۳۱۵ وفي كتاب الاعتصام، في باب الأحكام التي تعرف بالدلائل رقم الحديث: ۷۳۵۷ورواه مسلم في الحيض، في باب استحباب استعمال المغتسلة من الحيض الخ رقم الحديث: ۷٤۸وأبوداؤد في الطهارة في باب الاغتسال من الحيض رقم الحديث: ۳۱٤، ۳۱۶ والنسائي في الطهارة في باب ذكر العمل في الغسل من الحيض رقم الحديث: ۲۵۲.

[2]) التوضيح: ۷۸/۵شرح الكرماني: ۱۸۰/۳فتح الباري: ۵٤۶/۱عمدة القاري: ۲۸۵/۳.

[3]) فتح الباري: ۵٤۶/۱عمدة القاري: ۲۸۵/۳شرح الكرماني: ۱۸۰/۳التوضيح: ۷۸/۵.

[4]) عمدة القاري: ۲۸۵/۳شرح الكرماني: ۱۸۰/۳.

[5]) عمدة القاري: ۲۸۵/۳شرح الكرماني: ۱۸۰/۳.

[6]) شرح الكرماني: ۱۸۰/۳.

بخاری کښې نه دې ليدلې.[1] بهرحال ددې امر د وضاحت نه پس داکثر شراح په نيز د يحيى نه مراد يحيى بن موسى بلخي رحمه الله دې اوس دهغوی تفصيلی حالات اوګورئ.

**يحيى بن موسى**: دا يحي بن موسى بن عبدربه بن سالم حدانی بلخي سختيانى رحمه الله دې ددوی کنيت ابوزکريا دې. دې اصلاً کوفی دې او په "خت" سره پيژندلې شو.[2]

هغوی د ابن عيينه، ابومعاويه الضرير، وليد بن مسلم، ابوبکر حنفی، محمدبن عبيد طنافسی، شبابه بن سوار، عبدالله بن نمير، يزيدبن هارون، ابوداؤد طيالسی، يحيى بن يمان، عبدالرزاق او سعيد بن منصور رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت کړې دې.ددوی نه امام بخاری، امام ابوداؤد، امام ترمذی، امام نسائی، عبدالله بن عبدالرحمن دارمی، موسى بن هارون، جعفر بن فريابی، محمدبن اسحاق ثقفی اوحسن بن سفيان رحمهم الله وغيره روايت دحديث کړې دې.[3]

امام ابوزرعه رحمه الله اوامام نسائی رحمه الله فرمائی **ثقة**.[4] محمدبن اسحاق ثقفی رحمه الله فرمائی **ثقة مأمون**. ددې نه علاوه په يوبل مقام باندې فرمائی: «کان من ثقات الناس».[5] موسى بن هارون رحمه الله فرمائی «**کان من خيار المسلمين**».[6] دارقطنی رحمه الله فرمائی «**کان من الثقات**».[7] ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې.[8] مسلمه رحمه الله فرمائی **ثقة**.[9]

دهغوی په تاريخ وفات کښې اختلاف دې. امام بخاری رحمه الله فرمائی ددوی انتقال په ۲۴۰هجری کښې شوې. موسى بن هارون رحمه الله فرمائی چه دهغوی انتقال ۲۴۰ **يا** ۲۴۱هجری کښې شوې. خود دوی نه علاوه نور حضرات فرمائي دهغوی انتقال په ۲۳۹هجری کښې درمضان په مياشت کښې شوې.[10] حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا آخری ذکرشوې قول نقل کولونه پس فرمائی چه هم دا قول قراب، شيرازی اوکلاباذی رحمهم الله وغيره هم ذکرکړې دې.[11]

**ابن عيينة**: دامشهور محدث سفيان بن عيينه بن ابی عمران هلالی کوفی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات کتاب العلم باب م رفع صوته بالعلم لاندې تيرشوی دی.[12]

**صفية**: دا صفيه بنت شيبه بن عثمان بن ابی طلحه العبدريه رضي الله عنها ده. ددې حالات **کتاب الغسل باب من بدأ بشق رأسه الأيمن فی الغسل** لاندې تيرشوی دی.

---

[1]) التوضيح: ۷۹/۵.
[2]) تهذيب الكمال: ۳۲/۷-۶الجرح والتعديل: ۹/۲۳۱الأنساب: ۳۲۵/۲.
[3]) دتلامذه او مشائخ د تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال: ۳۲/۷تهذيب التهذيب: ۲۸۹/۱۱.
[4]) تهذيب الكمال: ۳۲/۹تهذيب التهذيب: ۲۹۰/۱۱.
[5]) تهذيب الكمال: ۳۲/۹تهذيب التهذيب: ۲۹۰/۱۱.
[6]) تهذيب الكمال: ۳۲/۹تهذيب التهذيب: ۲۹۰/۱۱.
[7]) تهذيب الكمال: ۳۲/۹تهذيب التهذيب: ۲۹۰/۱۱.
[8]) ۲۶۷/۹.
[9]) تهذيب التهذيب: ۲۹۰/۱۱.
[10]) تهذيب الكمال: ۳۲/۹تهذيب التهذيب: ۲۹۰/۱۱التوضيح: ۷۹/۵.
[11]) تهذيب التهذيب: ۲۹۰/۱۱.
[12]) کشف الباری: ۱۰۲/۳.

**عائشة**:دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابى بكر صديق رضي الله عنهما ده. ددوى حالات «بدء الوحى» ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوى دى.[1]

## شرح حديث

په دې حديث كښې د دې خبرې ذكر دې چه يوې ښځې د رسول الله ﷺ نه د حيض دغسل باره كښې سوال اوكړو. اوس چونكه دغسل معروف طريقه خو ټولوته معلومه شوه په دې وجه حضورپاك هغه بيان نه كړه بلكه چه په غسل حيض كښې كوم خاص فرق وو هغه ئې ذكر كړو چه د وړنى يا كپړې يوه ټكړه واخلئه او بيا په هغې باندې مشك لګولوسره طهارت حاصل كړه. د هغه ښځې په پوهه كښې دغه خبره رانغله نوهغې تپوس اوكړو **كيف اطهر**؟يعنى مشك خو څه سيال څيز نه دې بيا به په هغې سره د غسل څه كيفيت وى.حضورپاك دوباره هم هغه اوفرمائيل چه پاكى حاصله كړه. كله چه هغه په دې باندې هم پوهه نه شوه نوحضورپاك دحيا دوجې نه خپل مخ مبارك واړولو[2]اوونى فرمائيل سبحان الله دومره هم نه پوهيږې حالانكه ښځې په خپلو معاملاتو باندې پوهيږى. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه زه درسول الله ﷺ په مقصد باندې پوهه شوې ووم په دې وجه دغه ښځه ما خپل طرف ته رابنكله او هغه مې پوهه كړه چه د وينې چاپونه اولټوه او ددغه په مشك ملاؤشوې كپړه باندې هغه مړل پكاردى.

**قوله:: مسك**:

**لفظ مسك اودمحدثينو اختلاف**: دا لفظ مسك دميم په كسره سره لوستلې شى دكوم معنى چه مشك يعنى خوشبوئى راځى اوپه ترجمة الباب كښې هم ممسَكة اول ميم ضمه دويم فتحه او سين مشدد سره مذكوردې. په دې لحاظ سره به معنى هم هغه شى كومه چه وړاندې تيره شوه. يعنى مشك (يا دمشك سره ملاؤ شوې مالوچ يا وړنى وغيره) ټكړه دې واخلى. بعض حضرات فرمائى چه دا لفظ مسك دميم كسره سره نه دې بلكه مسك دميم فتحه سره دې د كوم معنى چه څرمن راځى. يعنى داسې څرمن په كوم باندې چه څه ويښته هم وى. قاضى عياض رحمه الله داقول داكثر روايت ګرځولې دې. په دې لحاظ سره مطلب دا جوړيږى چه هغه ښځه دې د څرمن ټكړه واخلى او په دې سره دې مخصوص حصه د بدن اومږى.[3]

اودا قول دغه حضراتو ځكه اختياركړې دې چه مشك خو يو قيمتى څيزدې دومره مشك به دچرته نه راوړى كوم چه هره مياشت هره ښځه استعمال كړې شى په دې وجه دا مسك نه بلكه مسك دې.[4]

ليكن د دغه حضراتو دا قياس ټيك نه دې ځكه چه اول خو مشك دعربو په نيزڅه دومره نه ملاويدونكې څيزنه وو چه نه پيداكيدو. بل دا چه ددې استعمال دهرې يوې ښځې د استعمالول ضرورى نه ګرځولې شوى، بلكه د چا دپاره چه ددې حاصلول ممكن وى هغه دې استعمال كړى ګنى ددې په ځائې نورې خوشبوئى هم استعمالولې شى ځكه چه مقصد خو په څرمن باندې ترو تازګى راوستل دى اوبدبوئى لرې كول دى.[5]

---

[1] كشف البارى: ۲۹۱/۱.
[2] كذا فى الرواية الاتية.
[3] التوضيح: ۸۲/۵شرح الكرمانى: ۱۸۱/۳فتح البارى: ۵۴۷/۱عمدة القارى: ۲۸۵/۳.
[4] التوضيح: ۸۲/۵ فتح البارى: ۵۴۷/۱عمدة القارى: ۲۸۵/۳.
[5] فتح البارى: ۵۴۷/۱.

ابن قتیبه رحمه الله هم دا لفظ مسك لوستلې دې خودا نی د ځرمن په معنی کښې نه دې اخستې ځکه چه دهغوی په قول په ځرمن کښې هغه صلاحیت نشته دې چه هغه یوځیز جدا او لرې کړې شی. دهغوی په نیزحدیث ددې ټکړې مطلب دادې چه ښځه دې د حیض د غسل نه فارغیدو نه پس د وړنی یا مالوچو وغیره ټکړه واخلی په کومې چه مشك لګیدلې وی بیا دې په هغې باندې پاکی حاصله کړی.(۱)

ابن قتیبه رحمه الله خو یوطرف ته دا لفظ مسك په کسره دمیم نه ګرځوی او بل طرف ته هم پخپله وائی چه مراد ترې دمشك ملاؤشوې وړنی یا مالوچ وغیره ټکړه ده. کیدې شی هم په دې وجه امام خطابی رحمه الله د ابن قتیبه رحمه الله قول "مشك هریو ته چرته ملاویږی؟" خو اشبه ګرځولې مګر دهغوی د قول دویمه حصه چه مراد دمشك سره ملاؤ شوې مالوچ یا وړنی وغیره ټکړه ده، بعید ګرځولې دې.(۲)

امام نووی رحمه الله مسك په کسره دمیم لوستل راجح ګرځولو نه پس ددې دترجیح وجه ذکرکولوسره فرمائی چه هغه روایات کوم کښې چه "فرصة ممسكة" الفاظ دی هغه ددې لفظ دمیم دکسره سره کیدو باندې دلالت کوی.(۳)

امام خطابی رحمه الله د امام نووی رحمه الله د قول تردیدکولوسره فرمائی چه دا احتمال هم شته چه دا لفظ مُمَسَّكَة «بضم الميم الأولى وسكون الثانية وفتح السين» ذکوم مطلب چه به داشی «خذي قطعة مأخوذة» یعنی په لاس کښې نیولې شوې کپړه واخله. (۴)دغه شان ددې لفظ مسك په کسره دمیم کیدو باندې یو دلیل داهم دې چه دا د مصنف ابن عبدالرزاق رحمه الله د روایت موافق دې ځکه چه دهغه روایت کښې لفظ "ذريرة" استعمال شوې دې دکوم معنی چه هم دخوشبوئی راځی.(۵)

دې نه پس امام نووی رحمه الله دا بحث هم ذکرکړې چه د مشك په استعمال سره مقصد بدبوئی ختمول دی یا بیاددې داستعمال وجه داده چه دا مشك دحمل په استقرارکښې معاون دې؟ اوس که چرې رومبې صورت واخستې شی چه مقصد بدبوئی لرې کوی دی نوبیا د مشك نه ملاویدو په صورت کښې به ښځه دخوشبو څه بل ځیز استعمالوی. اوکه چرې دویم صورت واخستې شی چه دامشك د حمل په استقرارکښې معاون دی نود مشك نه ملاویدو په صورت کښې به ښځه د خوشبوئی داسې ځیز استعمالوی کوم چه د حمل په استقرارکښې معاون وی. خو امام نووی رحمه الله ددویم صورت تغلیط کړې دې ځکه چه که چرې هم دغه خبره وې نو بیا به دا حکم د واده کړې ښځې دپاره خاص وې خود روایاتو عموم او اطلاق ددې خبرې نفی کوی.(۶)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه صحیح هم دغه دی چه دغسل حیض او نفاس په موقع باندې دمشك استعمال دهرې ښځې دپاره مستحب دی او سره د ملاویدو نه استعمالول مکروه دی. که چرته مشك ملاؤنه شی نوبیا چه کومه یوه خوشبوهم استعمال کړی اوکه هیڅ خوشبوئی هم ملاؤ نه شی نوبیا دهر هغه ځیز استعمال اوکړی کوم چه د بدبوئی دختمولوصلاحیت لری لکه په خاوره کښې داخاصیت او

---

(۱) عمدة القاري: ۲۸۶/۳.
(۲) أعلام الحديث: ۳۲۲/۱التوضيح: ۸۲/۵.
(۳) المنهاج للنووي المعروف بشرح النووي: ۲۳۹/۴.
(۴) أعلام الحديث: ۳۲۲/۱التوضيح: ۸۲/۵.
(۵) فتح الباري: ۵۳۹/۱.
(۶) فتح الباري: ۵۳۹/۱.

صفت موجود دې ګنی صرف هم داوبو استعمال کافی دې.(١)

**قوله:: أن امرأة**

**د سوال کونکې ښځې نوم څه وو؟**: د امام بخاري رحمه الله د سفيان بن عيينه رحمه الله په طريق سره نقل شوې دې روايت کښې بس هم دومره دی چه يوه ښځه وه اوهغې د نبی کريم ﷺ نه د حيض دغسل کيفيت سره متعلق سوال کړې وو. او امام بخاری رحمه الله د وهيب روايت (د راتلونکی باب لاندې) کښې ددې خبرې اضافه کړې ده چه هغه ښځه انصاريه وه.(٢)امام مسلم رحمه الله ابو الاحوص عن ابراهيم بن مهاجر په طريق سره دا حديث روايت کولوسره د هغه ښځې د نوم تصريح هم کړې ده چه سوال کونکې دغه ښځه اسماء بنت شکل (بالشين والکاف المفتوحتين) وه.(٣)ددې په خلاف خطيب رحمه الله اسماء بنت يزيد بن السکن انصاريه کيدو تصريح کړې ده.(٤)

ابن جوزی رحمه الله هم دا قول اختيارکړې دې اودې سره ئې داهم فرمائی چه کوم د امام مسلم رحمه الله په روايت کښې ذکر شوی دی په هغې کښې تصحيف واقع شوې دې ځکه چه په انصارکښې د شکل نومې څوك سړې نه وو.(٥)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دابن جوزی رحمه الله دا قول د يوثابت شوې روايت نه بغيرد څه دليل ترديد کوی خودا هم ممکن اومحتمل دی چه شکل نوم ئې نه وی بلکه لقب وی ځکه چه دا روايت مسانيد اوجوامع چرته چه هم دی نوهلته خو يا دامام مسلم رحمه الله د روايت په شان د اسماء بنت شکل تصريح ده يا بيا د امام ابوداوٗد رحمه الله د روايت په شان صرف اسماء (بغيرد نسب) تصريح ده. دې نه علاوه د ابونعيم رحمه الله په تخريج کړې شوی حديث کښې هم اسماء بنت شکل ده اوهغوی داحديث هم په دغه طريق سره روايت کړې دې په کوم سره چه خطيب رحمه الله دا حديث روايت کړې دې ليکن خطيب رحمه الله په ځائی د بنت شکل د بنت يزيد کيدو تصريح کړې دې.(٦) امام نووی رحمه الله داسې اوکړل چه دواړه وجهې ئې ذکرکړې اوترجيح ئې يو ته هم ورنه کړه.(٧) علامه ابن ملقن رحمه الله فرمائی دامام مسلم رحمه الله د روايت ډيروجماعتونو اتباع کړې ده په کوم کښې چه ابن طاهراو ابوموسیٰ رحمه الله هم دې. البته بعض حضرات متاخرينوهم دخطيب دقول تصويب کړې دې اووجه ئې هم هغه ذکرکړې ده چه په انصاروکښې د شکل نوم څوك سړې نه وو(٨) نورفرمائی علامه ابن جوزی سره د دې چه په خپل کتاب تلقيح فهوم أهل الأثرکښې اسماء بنت يزيد بن السکن په سائله کيدو باندې د جزم اظهار فرمائيلې دې(٩) مګر په خپل دويم کتاب کشف المشکل کښې پخپله هغوی د اسماء بنت شکل سائله کيدو تصريح فرمائيلې ده.(١٠)

---

١) فتح الباری: ١/٥٣٩.

٢) فتح الباری: ١/٥٣٨عمدة القاری: ٣/٢٨٦.

٣) صحيح مسلم کتاب الحيض باب استحباب استعمال المغتسلة رقم الحديث: ٧٥٢.

٤) مبهمات الخطيب: ص: ٢٩.

٥) تلقيح فهو من أهل الأثر: ١/٤۶۶فتح الباری: ١/٥٣٨.

٦) فتح الباری: ١/٥٣٨.

٧) المنهاج للنووی المعروف بشرح النووی: ٤/٢٤١.

٨) التوضيح: ٥/٨٠.

٩) تلقيح فهوم أهل الأثر: ١/٤۶۶.

١٠) کشف المشکل: ٤/٣٧٠الرقم: ٣٣٠٩/٢٥٧٨.

ابن ملقن رحمه الله فرمائى چه ددې خبرې هم احتمال شته چه دا واقعه دوارو ښځوسره پيښه شوې وى لكه چه د ابن منده رحمه الله د صنيع نه معلوميږى خكه چه هغوى ددوارو ښځو ترجمې اوتعارف جدا جدا ذكركړې دې. دغه شان ابن سعد رحمه الله او طبرانى رحمه الله هم دا روايت د بنت يزيد د ترجمې لاندې ذكرنه كړو او بيا امام مسلم رحمه الله د اسماء بنت شكل تصريح كولوكښې متفرد هم نه دې.[1] بلكه ابن ابى شيبه رحمه الله او ابونعيم رحمه الله هم دا روايت هم دغه شان نقل كړې دې ځنگه چه امام مسلم رحمه الله كړې دې.[2]

الحاصل ددې اختلاف دتعيين باره كښې چه اسماء بنت شكل سائله گرځول ددې لاندينو وجوهاتو په رڼا كښې زيات د التفات قابل او دترجيح قابل ده: ① امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح كښې داسماء بنت شكل تصريح كړې ده. ② اكثرو حضراتو دامام مسلم رحمه الله د رواياتو اتباع كړې ده. ③ د امام مسلم رحمه الله نه علاوه ابن ابى شيبه رحمه الله او ابونعيم رحمه الله هم ددې نوم تصريح كړې ده. ④ ابن جوزى رحمه الله كه يو طرف ته د اسماء بنت يزيد بن السكن په نوم باندې د جزم اظهاركړې دې نويل طرف ته ئې پخپله د اسماء بنت شكل د سائله كيدو تعيين هم كړې دې. په دويم قول باندې هم يو دليل او قرينه ده چه په انصاركښې د شكل نوم ځوم سړې نه وو مگر ددې دليل جواب وركړې شوې وو چه ممكن دى چه شكل نوم ئې نه وى بلكه لقب ئې وى اوددې اسماء پلار په خپل لقب باندې مشهور وى يا بيا دلته واقعات جدا جدا وى.

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** په ترجمة الباب كښې دا امور ذكر دى: ① **دلك المرأة نفسها** (يعنى خپل اندامونه په مړلوسره وينځه). ② كيفيت د **اغتسال**. ③ **أخذ الفرصة الممسكة** (يعنى د مشك ملاؤ شوې كپړه اخستل). ④ **تتبع الدم** (يعنى د وينو چاپونه اونښې لټولو سره صفا كول).

خو په حديث كښې په صراحت سره آخرى دوه امور ذكركړې شوى دى. باقى پاتې شو اول ذكركړې شوې دوه امور، نو په "دلك" باندې په صراحت سره حديث دلالت نه كوى خود دلالت التزاميه په توگه ((**تتبعى بها أثر الدم**)) په "دلك" باندې دلالت كوى. ځكه چه د چاپونو او نښو ختمولوكښې "دلك" يعنى مړلو ضرورت پيښيږى اود كيفيت اغتسال نه مراد كه چرې دغسل حيض مخصوص صورت، يعنى د وينو چاپونه صفا كولو سره هغه ځائى باندې خوشبوئى لگول دى نو بيا دا خاص صورت دلته په حديث كښې هم ذكر دې. خوكه دغسل دكيفيت نه مراد نفس اغتسال دې نوبيابه داسې وئيلې شى چه سره ددې چه په مذكوره روايت كښې دنفس اغتسال ذكرنشته مگر په اصل روايت كښې داغتسال ذكر هم موجود دې كوم چه امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح كښې تخريج كړې دې. امام بخارى رحمه الله ددې اصل روايت تخريج ځكه نه دې كړې ځكه چه دهغه په سند كښې ابراهيم بن مهاجر يو راوى دې اوهغه دامام بخارى رحمه الله په شرط باندې نه دې.[3]

# ۱۴- باب: غُسْلِ الْمَحِيضِ

[1] التوضيح: ۸۱/۵-۸۰.
[2] المصنف لابن أبى شيبة كتاب الطهارة باب فى المرأة كيف تؤمر أن تغتسل رقم الحديث: ۸۶۹.
[3] عمدة القارى: ۲۸۵/۳-۲۸۴.

**ماقبل سره ربط**: په سابقه باب او موجوده باب كښې هم يو حديث ذكر دې او په دواړو احاديثو كښې دخوشبوئى د استعمال ذكر دې. علامه عينى رحمه الله فرمائى په حقيقت كښې ددې باب د ذكركولوهيڅ فائده نشته دې ځكه چه كوم حديث امام بخارى رحمه الله ددې باب لاندې ذكركړې دې هغه په وړاندې باب كښې تيرشوې دې. البته فرق صرف د سند د اختلاف دې ځكه چه تيرشوې روايت «يحى ثنا عن ابن عيينه عن منصور» په طريق سره نقل وو اودا حديث باب «مسلم عن وهيب عن منصور» په طريق سره نقل دې.[1]

## الحديث الأول

[۳۰۹]- حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ امْرَأَةً مِنَ الأَنْصَارِ قَالَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَيْفَ أَغْتَسِلُ مِنَ المَحِيضِ؟ قَالَ: «خُذِي فِرْصَةً مُمَسَّكَةً، فَتَوَضَّئِي ثَلاَثًا» ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَحْيَا، فَأَعْرَضَ بِوَجْهِهِ، أَوْ قَالَ: «تَوَضَّئِي بِهَا» فَأَخَذْتُهَا فَجَذَبْتُهَا، فَأَخْبَرْتُهَا بِمَا يُرِيدُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[2] [ر ۳۰۸]

**ترجمه**: دعائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه د قبيله انصار نه يوې ښځې رسول الله ﷺ ته عرض اوكړو چه زه د حيض غسل څنګه اوكړم؟ حضورپاك اوفرمائيل د مشك يوه ټكړه واخله او په هغې سره پاكى حاصله كړه. دارسول الله ﷺ درې ځل ارشاداوفرمائيلو. بيا نبى كريم ﷺ ته حياء راغله او حضورپاك خپل مخ مبارك دهغه طرف نه واړولو او يا بيا پيغمبر عليه السلام د "بها" په اضافه سره "توضى بها" اوفرمائيل. عائشه رضي الله عنها فرمائى چه ما هغه ښځه خپل طرف ته راښكله اوبيامې د نبى كريم ﷺ د مراد نه خبركړه.

### تراجم رجال

**مسلم بن إبراهيم**: دا مسلم بن ابراهيم القصاب ازدى فراهيدى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب زيادة الإيمان ونقصانه لاندې تيرشوى دى.[3]

**وهيب**: دا وهيب بن خالدبن عجلان باهلى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب تفاضل الإيمان في الأعمال لاندې تيرشوى دى.[4]

**منصور بن عبدالرحمن**: دامنصور بن عبدالرحمن رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الحيض باب قراءة الرجل في حجرامرأته وهي حائض لاندې تيرشوى دى.[5]

**صفية بنت شيبة**: دا صفيه بنت شيبه بن عثمان بن ابى طلحه العبدريه رضي الله عنها ده. ددې حالات كتاب الغسل باب من بدأبشق رأسه الأيمن في الغسل لاندې تيرشوى دى.

---

[1]) عمدة القاري: ۲۸۷/۳.

[2]) قوله: عائشة: الحديث، مرتخريجه تحت الحديث السابق.

[3]) كشف الباري: ۴۵۵/۲.

[4]) كشف الباري: ۱۱۸/۲.

[5]) كشف الباري: ۲۹۱/۱.

**عائشة**: دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابی بکر صديق ﷺ ده. ددوی حالات ((بدءالوحی)) ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوی دی. (۱)

## شرح حديث

**قوله:: توضئ**: حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه د مشك يوه ټکره واخله او په هغې سره پاکی حاصله کړه. دلته "توضیء" خپل لغوی معنې "تنظف" (پاکی حاصلول) کښې دې. ځکه چه په تير روايت کښې د "تطهري" صراحت دې. (۲)

**قوله:: ثلاثاً**: مطلب دادې چه حضورپاك "توضيء" درې ځل ارشاد اوفرمائيلو (۳) اودا احتمال هم دې چه ددې تعلق "قالت" سره وی يعنی دغه سائله درې ځل سوال اوکړو لکه چه د تيرشوی روايت نه واضح کيږی. (۴)

**قوله:: أو**: داد حضرت عائشه صديقه ﷺ د طرف نه شك واقع شوې دې چه حضورپاك ﷺ "توضيء" اوفرمائيلو يا بيا ئې "توضيء بها" اوفرماييلو يعنی ((تطهري بالفرضة)). (۵)

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت**: په ظاهره باندې په حديث اوترجمة الباب کښې هيڅ مطابقت نشته ځکه چه په ترجمة الباب کښې "غسل حيض" ذکر دې خو په حديث کښې د غسل حيض څه ذکرنشته دې. مګر شراح کرام رحمهم الله ليکلی دی که چرې لفظ غسل په فتحه د عين اومحيض داسم مکان په معنی کښې واخستلې شی نو په ترجمة الباب او حديث دواړو کښې به مطابقت واضح شی ځکه چه ددې تاويل نه پس به مطلب داشی چه حديث اوترجمة الباب دواړو کښې د بدن دمخصوص حصې دپاکوالی بيان دې کوم سره د چه د حيض د وينې تعلق کيږی. اوکه چرې لفظ غسل په ضمه د عين پريخودلې شی اودمحيض نه مراد دحيض وينه وی نو په دې صورت کښې به دا اضافت لاميه شی چه دهغه غسل بيان کوم چه د حيض سره خاص دې. دغه شان د غسلِ مخصوص کيفيت سره به د اصل غسل ثبوت خپل پخپله پيداشی. (۶)

# ۱۵ - باب: اَمْتِشَاطِ الْمَرْأَةِ عِنْدَ غُسْلِهَا مِنَ الْمَحِيضِ

**ماقبل سره ربط**: سابقه باب او دې باب دواړو کښې ربط دادې چه په دواړوکښې دې امر طرف ته اشاره ده چه ښځه دې دحيض په غسل کښې د صفائيئی ښه اهتمام کوی. هم دغه وجه ده چه باب سابق

---

۱) کشف الباری: ۲۹۱/۱.
۲) إرشادالساری: ۵۵۵/۱.
۳) إرشادالساری: ۵۵۵/۱.
۴) عمدة القاری: ۲۸۷/۳.
۵) عمدة القاری: ۲۸۷/۳ إرشادالساری: ۵۵۵/۱.
۶) عمدة القاری: ۲۸۷/۳ إرشادالساری: ۵۵۵/۱.

كښې د حيض په غسل كښې د خوشبوئى د استعمال ذكر وو او په دې باب كښې د اهتمام په غرض سره په ويښتو كښې د ګمنځې كولو په صراحت سره اود ويښتو كمسئى كولاوولو ضمناً تذكره ده.[1]

## د ترجمة الباب مقصد:

**د شيخ الحديث زكريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى چه حضرات شراح كرام رحمهم الله د ترجمة الباب دغرض اومقصد په حواله سره سكوت فرمائيلې دې اوزما په نيز دترجمة الباب دمقصد په حواله سره د ټولو نه بهتر توجيه داده چه مذكوره باب اوراتلونكې باب (دواړه) د سابقه باب دوه جدا جدا جزونه دى اود درېواړو ابواب مقصد دغسل حيض كيفيت اوطريقه بيانول دى.[2]

ددې ابواب په ملاوولو سره او په دې كښې چه كوم احاديث ذكركړې شوى دى د هغې كتلو سره معلوميږى چه د ښځو په معامله كښې كوم تخفيفى حكم وركړې شوې دې چه په غسل كښې د ويښتو جرړې لمدول كافى دى. د ويښتو د جرړو د لمدولونه پس د ويښتو د كمسو د كولاوولو ضرورت نشته دې نودا حكم د جنابت غسل سره خاص دې. د حيض په غسل كښې به ويښته كولاوول وى اودا وجوبى حكم دې. هم دغه د امام حسن رحمه الله او امام طاؤوس رحمه الله مسلك دې. د احاديث د ظاهر نه معلوميږى چه دامام بخارى رحمه الله هم دغه مسلك دې. امام احمد رحمه الله هم دغه قول اختياركړې دې. خودامام احمد رحمه الله د اصحاب يو جماعت په غسل حيض اوغسل جنابت دواړوكښې د ويښتو كولاوول مستحب امر ګرځولې دې په دې شرط چه د ويښتو د كولاوولو نه بغير جرړې لمدې شى هم دغه د جمهور علماؤ مسلك دې.[3]

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه باره كښې راځى چه هغه ښځوته دغسل په وخت (كه د جنابت غسل وى اوكه دحيض) د ويښتو كمسئى كولاوولوحكم وركولو. حضرت عائشه رضي الله عنها ته چه كله دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه سره متعلق داخبر اورسيدو نوهغې د خفګان اظهاركولوسره اوفرمائيل: **((يا عجباً لابن عمرو! يأمر النساء إذا اغتسلن أن ينقضن رؤوسهن، أفلا يأمرهن أن يحلقن رؤوسهن؟ لقد كنت أنا ورسول الله صلى الله عليه وسلم نغتسل، فلا أزيد على أن أفرغ على رأسي ثلاث أفراغات))** يعنى په عبدالله بن عمرو باندې تعجب دې چه هغه هسې ښځو ته د غسل په وخت د ويښتو دكمسو د كولاوولوحكم وركوى. بيا هغه داحكم ولې نه وركوى چه هغه ښځې دې خپل سره اوخروى، اوزمونږ عمل خودا ووچه كله به ما اورسول الله صلى الله عليه وسلم غسل كولو نوما به په خپل سرباندې ددريو چونګو اوبو اچولونه زياتوالې نه كولو.[4] هم دغه وجه ده چه ابن قدامه رحمه الله فرمائى: **((ولا يختلف المذهب في أنه لا يجب نقضه من الجنابة، ولا أعلم فيه خلافاً بين العلماء إلا ماروي عن عبدالله بن عمرو))** يعنى دجنابت په غسل كښې دويښتو كمسئى كولاوولو سره متعلق بغيردعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه بل دچانه هم د وجوب قول نقل نه دې ځكه چه دهغوى په حواله سره روايت كښې راځى چه هغوى به ښځوته دغسل په وخت د ويښتو د كمسو د كولاوولوحكم وركولو.[5]

---

[1] عمدة القارى: ۲۸۷/۳.
[2] الكنز المتوارى: ۲۷٦/۳.
[3] فتح البارى: ٤١٨/١ الكنز المتوارى: ۲۷٦/۳.
[4] المغنى لابن قدامة: ۲۹۸/۱ دارعالم الكتب.
[5] المغنى لابن قدامة: ۲۹۸/۱ دارعالم الكتب.

چونکه دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه داسې حکم ورکول غسل د جنابت او غسل د حیض دواړو سره متعلق وو په دې وجه حافظ ابن حجر رحمه الله دابن قدامه رحمه الله داخبره هم دهغوی په حواله سره داسې نقل کړې ده:
((لاأعلم أحداًقال بوجوبه إلاماروي عن عبدالله بن عمرو)).[1]
نور ابن قدامه رحمه الله فرمائي چه د حیض په غسل کښې د ویښتو کولاوول واجب دی که نه دی؟ نو په دې مسئله کښې زمونږ اصحاب (حنابله) کښې اختلاف دې. بعضو دحیض په غسل کښې دې ته واجب ونیلی دی لکه امام حسن رحمه الله اوامام طاؤوس رحمه الله اوبعض دا مستحب لیکلی دی اوهم دغه صحیح قول دې. إن شاء الله. [2]اوس ددې تفصیل نه دامعلومه شوه چه د امام احمد رحمه الله په نیزدحیض په غسل کښې به ویښته کولاوولې شی او ابن قدامه رحمه الله ددې دمستحب کیدو قول کړې دې.
جمهور حضرات دام سلمه رضي الله عنها د قول نه استدلال کوی چه هغې د حضورپاك نه سوال اوکړو اې د الله رسول ﷺ! زه د خپل سر کمسئی کلکې ترم نو آیا د جنابت په غسل کښې دا کولاووم؟ نو حضورپاك اوفرمائیل نه، د کولاوولوضرورت نشته دې. په یوبل طریق کښې دغسل جنابت سره د حیض دغسل متعلق هم دغه سوال دې. دهغه روایت نه معلومیږی چه د ویښتو کولاوول مستحب دی که د جنابت غسل وی اوکه د حیض غسل وی. خودحدیث باب ظاهر په وجوب باندې دلالت کوی. په دې وجه جمهورو حدیث باب هم په استحباب باندې محمول کړې دی دې دپاره چه په دواړو روایتونوکښې جمع اوشی. یا بیا حدیث باب په هغه صورت باندې محمول کړې شی په کوم کښې چه اوبه ترجړړو پورې نه رسی. ځکه چه په داسې صورت کښې د ویښتوکولاوول واجب کیږی. او حدیث د ام سلمه رضي الله عنها په هغه صورت باندې محمول کړې شی چه کله اوبه د ویښتو جرړو ته رسیږی.[3]

## الحديث الأول

[۳۱۰]- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ، حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ، قَالَتْ: أَهْلَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الوَدَاعِ، فَكُنْتُ مِمَّنْ تَمَتَّعَ وَلَمْ يَسُقِ الهَدْيَ، فَزَعَمَتْ أَنَّهَا حَاضَتْ وَلَمْ تَطْهُرْ حَتَّى دَخَلَتْ لَيْلَةُ عَرَفَةَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَذِهِ لَيْلَةُ عَرَفَةَ وَإِنَّمَا كُنْتُ تَمَتَّعْتُ بِعُمْرَةٍ، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «انْقُضِي رَأْسَكِ وَامْتَشِطِي، وَأَمْسِكِي عَنْ عُمْرَتِكِ»، فَفَعَلْتُ، فَلَمَّا قَضَيْتُ الحَجَّ أَمَرَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ لَيْلَةَ الحَصْبَةِ، فَأَعْمَرَنِي مِنَ التَّنْعِيمِ مَكَانَ عُمْرَتِي الَّتِي نَسَكْتُ[4][ر ۲۹۰]

**ترجمه:** د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها نه روایت دې چه ما په حجة الوداع کښې نبی کریم ﷺ سره احرام اوتړلو اوزه هغه خلقو کښې ووم کومو چه دتمتع نیت اوکړو اود قربانئی څاروی خان سره وانغستل. بیا حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائیل چه په هغې باندې حیض شروع شو اود حیض پاکی حاصله نه شوه. تردې چه دعرفه شپه راغله نوهغې عرض اوکړو اې دالله تعالی رسول ﷺ! داد عرفه

---

[1]) فتح الباري: ٤١٨/١.
[2]) المغني لابن قدامة: ٣٠٠-٢٩٨/١دارعالم الكتب.
[3]) فتح الباري: ٤١٨/١صحيح مسلم كتاب الحيض باب حكم ضفائر المغتسلة رقم الحديث: ٧٤٥-٧٤٤.
[4]) قوله: عائشة: الحديث، مرتخريجه تحت رقم الحديث: ٢٩٠.

شپه ده اوما د عمره احرام تړلوسره دتمتع اراده کړې وه. حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو ته خپل سر كولاؤ كړه ګمنز اوكړه اودعمرې نه منع شه نوما هم داسې اوكړه. كله چه زه دحج نه فارغ شوم نوحضورپاك د حصبه په شپه كښې عبدالرحمن ته حكم وركړوهغه ماته ددې عمرې په قضاء كښې دكومې چه ما احرام تړلې وو د تنعيم نه عمره اوكړه.

## تراجم رجال

**موسى بن إسماعيل**: دا ابوموسى بن اسماعيل التبوذكي البصري رحمه الله دي. د دوی مختصر حالات بدءالوحي كښې د څلورم حديث لاندې (۱)اوتفصيلي حالات كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد أو الرأس لاندې تيرشوي دي. (۲)

**إبراهيم**: دا ابواسحاق ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف زهري مدني رحمه الله دي. د دوی اجمالي حالات كتاب الإيمان باب تفضل أهل الإيمان في الأعمال لاندې تيرشوي دي. (۳)
او تفصيلي حالات كتاب العلم باب ماذكر في ذهاب موسى عليه السلام في البحر إلى الخضر لاندې تيرشوي دي. (۴)

**ابن شهاب**:ددوی مكمل نوم ابوبكر محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله بن الحارث بن زهره بن كلاب بن مرة بن كعب بن لؤي زهري مدني دې. ددوی حالات بدءالوحي ددريم حديث لاندې تيرشوي دي. (۵) او نور حالات ئې كتاب الغسل كښې هم راغلي دي.

**عروة**: دا عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات بدءالوحي دويم حديث لاندې (۶)اوتفصيلي حالات كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوي دي.(۷)

**عائشة**: دا ام المؤمنين سيده عائشه بنت ابي بكر الصديق رضي الله عنهما ده. د دوی حالات بدءالوحي دويم حديث لاندې تيرشوي دي. (۸)

## شرح حديث

**قوله:: الهدي**: هدي دهاء فتحه اودال سكون اوياء مخففه سره هم لوستلې شي اوددال په كسره او هاء مشدده سره هم لوستلې شي(۹)هدي هغه څاروی ته وائی كوم چه د ذبح كولودپاره حرم ته راوړلې شي علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه دحديث الفاظ «ولم يسق الهدي» وراندې ذكرشوې «وكنت من تمتع»

(۱) كشف الباري:۱/۴۳۳.
(۲) كشف الباري:۳/۴۷۷.
(۳) كشف الباري:۱/۱۲۰.
(۴) كشف الباري:۳/۳۳۳.
(۵) كشف الباري:۱/۳۲۶.
(۶) كشف الباري: ۱/۲۹۱.
(۷) كشف الباري: ۲/۴۳۶.
(۸) كشف الباري: ۱/۲۹۱.
(۹) عمدة القاري: ۳/۲۸۸إرشادالساري: ۱/۵۵۶.

دپاره بيان دي. ځکه چه دحج تمتع اراده لرونکي سړي خپل ځان سره هدى نه اوړي. په دي باندي علامه عيني رحمه الله اوفرمائيل چه دمتمتع دوه قسمونه دى. يوهغه متمتع وى چه خپل ځان سره د هدى ښناور اوړى اوځى[1] اودويم هغه متمتع وى چه خپل ځان سره د هدى ښناور نه اوړى اودهرقسم حکم جدادي. کوم متمتع چه هدى ځان سره اوړى هغه په مينځ کښي د احرام نه حلال کيدي نه شي اوکوم چه دهدى ښناور ځان سره نه اوړى نوهغه د عمري افعالو نه فارغ کيدو سره احرام کولاوولي شي اود هغه دپاره هغه څيزونه بيا حلال شي کوم چه داحرام نه وړاندي حلال وو اوداحرام تړلونه پس حرام شوي وو.

**قوله:: فزعمت أنها حاضت:** راوى د زعمت الفاظ نقل کړى دى د قالت الفاظ ئي نه دى نقل کړى ځکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها پخپله هم په صراحت سره ددغه خبري ذکر نه ووکړي اوداخبره وه هم داسي دکومي په تصريح کولو کښي چه حياء مانع ده.[2]

**قوله:: ليلة الحصبة:** دحاء فتحه د صاد سکون اوباء فتحه سره لوستلي شى. او ليلة الحصبة نه مرادهغه شپه ده په کومه کښي چه د حضورپاك قافلي دحصبه په مقام باندي قيام کړي وو.[3]

**قوله:: التنعيم:** دتنعيم مقام د ټولو نه نيزدي ميقات دي چه د مديني په لار دمکي نه دري ميله فاصله باندي واقع دي.[4]

ددي حديث باقى ټول شرح اومباحث «باب الأمر بالنفساء إذا نفسن» لاندي په تفصيل سره تيرشوى دى.

## د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:

**دعلامه داؤدى رحمه الله رائې:** امام داؤدى رحمه الله فرمائى چه ترجمة الباب اوحديث کښي هيڅ مناسبت نشته دي ځکه چه په ترجمة الباب کښي دغسل په وخت ويښتوکښي دګمنز کولو ذکر دي او په روايت کښي د ګمنز کولو حکم دعمري نه دحلال کيدودپاره وو نه چه دغسل دپاره.

علامه کرمانى رحمه الله ددي جواب ورکولوسره فرمائى چه په روايت کښي د احرام حج هم تذکره ده چه په دي خبره باندي دلالت کوى چه داغسل داحرام دپاره وو ځکه چه داحرام دپاره غسل مسنون دي. اوس چه کله په روايت کښي غسل داحرام دپاره امتشاط يعنى ګمنز کولو اود کمسنى د ويښتو کولاوول مسنون کيدل بيان شو نود غسل حيض دپاره دا امتشاط په طريقه اولى مسنون وى ځکه چه په غسل احرام کښي خو صرف پاکي اوصفائى مقصود وى خو په غسل حيض کښي نجاست غليظه ختمول وى. نوچه کله داحرام په غسل کښي د ويښتو کولاوول او په هغي کښي ګمنز کولو حکم دي نودا حکم د حيض د غسل دپاره بدرجه اتم کيدل پکاردى. اتوبيا داخبره هم ده چه داحرام غسل صرف مسنون اومستحب دي ليکن دحيض غسل خو فرض دي.

بل د احرام حج دپاره د غسل کولوذکر سره د دي چه په دي روايت کښي نشته دي ليکن په نورو رواياتوکښي دغسل ذکر په صراحت سره موجود دي. چنانچه امام مسلم رحمه الله چه کوم روايت تخريج

---

[1] عمدة القارى: ۲۸۸/۳.
[2] عمدة القارى: ۲۸۸/۳.
[3] عمدة القارى: ۲۸۸/۳.
[4] عمدة القارى: ۲۸۸/۳.

کرې دي دهغې الفاظ دادي: «فاغتسلي ثم أهلي بالحج» [۱] اودا د امام بخاري طريقه ده چه هغه کله داسې ترجمة الباب قائم کوی په کوم کښې چه د روايت نورو طرق ته اشاره وی او روايت مذکور تحت الباب کښې د ترجمة الباب صراحةً څه ذکر نه وی. [۲]

## ۱۶ - باب: نَقْضِ الْمَرْأَةِ شَعَرَهَا عِنْدَ غُسْلِ الْمَحِيضِ

**ماقبل سره ربط:** ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه په دواړو کښې د دوو داسې امورو تذکره ده دکوم تعلق چه يو جنس سره دې. چنانچه باب سابق کښې دغسل حيض په وخت ويښتوکښې د ګمنز کولو تذکره وه اودې باب کښې دغسل حيض په وخت دويښتو کمسئی کولاوولوتذکره ده. [۳]
واضحه دې وی چه په غسل حيض او غسل جنابت کښې د ښځې دپاره خپل ويښته کولاوول يومختلف فيه مسئله ده کومه چه په تير شوی باب کښې تيره شوې ده. [۴]
**دترجمة الباب مقصد:** باب سابق کښې د"ترجمة الباب مقصد"لاندې خبره تيره شوې ده چه «باب امتشاط المرأة عند غلسها من المحيض» او «باب نقض المرأة شعرها عندغسل المحيض» دواړه ابواب د"باب غسل المحيض" دوه جدا جدا اجزاء دی اومقصد ددريواړو ابواب نه دحيض د غسل کيفيت بيانول دی. [۵]

### الحديث الأول

[۳۱۱] - حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: خَرَجْنَا مُوَافِينَ لِهِلَالِ ذِي الحِجَّةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُهِلَّ بِعُمْرَةٍ فَلْيُهْلِلْ، فَإِنِّي لَوْلاَ أَنِّي أَهْدَيْتُ لَأَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ» فَأَهَلَّ بَعْضُهُمْ بِعُمْرَةٍ، وَأَهَلَّ بَعْضُهُمْ بِحَجٍّ، وَكُنْتُ أَنَا مِمَّنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ، فَأَدْرَكَنِي يَوْمُ عَرَفَةَ وَأَنَا حَائِضٌ، فَشَكَوْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «دَعِي عُمْرَتَكِ، وَانْقُضِي رَأْسَكِ، وَامْتَشِطِي وَأَهِلِّي بِحَجٍّ»، فَفَعَلْتُ حَتَّى إِذَا كَانَ لَيْلَةُ الحَصْبَةِ، أَرْسَلَ مَعِي أَخِي عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي بَكْرٍ فَخَرَجْتُ إِلَى التَّنْعِيمِ، فَأَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ مَكَانَ عُمْرَتِي قَالَ هِشَامٌ: «وَلَمْ يَكُنْ فِي شَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ هَدْيٌ، وَلاَ صَوْمٌ وَلاَ صَدَقَةٌ» [۶] [ر ۲۹۰]

**ترجمه:** دعائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه مونږ د ذی الحجه مياشت سره نيزدې رسول الله ﷺ سره اووتلو. رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو. کوم سړې چه دعمرې احرام تړل غواړی هغه دې د عمرې احرام

---

[۱] صحيح مسلم کتاب الحج باب بيان وجوه الإحرام..... الخ رقم الحديث: ۲۹۳۷.
[۲] شرح الکرمانی: ۳/۱۸۴-۱۸۳عمدة القاری: ۳/۲۸۸فتح الباری:۱/۴۱۷.
[۳] عمدة القاری: ۳/۲۹۰.
[۴] عمدة القاری: ۳/۲۹۰.
[۵] الکنز المتواری: ۳/۲۷۸.
[۶] قوله: عائشة: الحديث، قدمر تخريجه تحت رقم الحديث: ۲۹۰.

اوترې اوكه ما دقربانئى هدى ځان سره نه وو راوستې نو زه به هم دعمرې نه پس داحرام نه حلال كيدم. چنانچه بعض خلقو دعمرې احرام اوتړلو اوبعض دحج او زه په هغه خلقو كښې ووم چاچه دعمرې احرام تړلې وو. په ماد عرفه ورځ شوه په داسې حال كښې چه زه حائضه شوم. چنانچه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوكړو حضورپاك اوفرمائيل: عمره پريږده د سر وينبته اوسپړه اوګمنز اوكړه اود حج احرام اوتړه. نوما هم داسې اوكړل، ترديې چه كله په حصبه كښې د حصاريدو شپه راغله نو حضورپاك ماسره زما رور عبدالرحمن رضي الله عنه اوليګلو نوزه دتنعيم پورې لاړم اودهغه ځائى نه د فوت شوې عمرې په ځائى د دويمې عمرې احرم اوتړلو. هشام رحمه الله وائى چه دې تولو خبروكښې نه هدى وه نه روژې او نه صدقه.

## تراجم رجال

**عبيدبن إسماعيل**: دا عبيد بن اسماعيل قرشي هباري عبادى كوفى رحمه الله دې، ددوى كنيت ابومحمد دې. د بعض حضراتو وينا ده چه ددوى نوم عبيدالله دې او عبيد د دوى لقب دې.(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه حافظ شيرازى رحمه الله په دې خبره باندې جزم كړې دې چه ددوى نوم عبدالله دې اولقب ئى عبيد دې.(٢)

هغوى د سفيان بن عيينه، عيسى بن يونس، حمادبن اسامه، ابوادريس، جميع بن عمر بنعبدالرحمن العجلى او عبدالرحمن بن محمد محاربى رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت كړې دې.

اود دوى نه امام بخارى، احمدبن على الخزاز، عبدالله بن زيداتن البجلى، ابو حاتم محمدبن ادريس رازى، على بن العباس، محمدبن العباس الاخرم او محمدبن الحسين بن حفص خثعمى رحمهم الله وغيره دحديث روايت كوى.(٣)محمدبن عبدالله الحضرمى رحمه الله فرمائى ثقة.(٤) حطين رحمه الله فرمائى ثقة.(٥) دارقطنى رحمه الله فرمائى ثقة.(٦) ابن حبان رحمه الله دوى كتاب الثقات كښې ذكركرى دى.(٧)

ددوى د وفات كال سره متعلق امام بخارى رحمه الله فرمائى چه ددوى انتقال ٢٥٠هجرى ربيع الاول اواخر كښې د جمعه په ورځ شوې.(٨)

**أبوأسامة**: دا ابواسامه رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب العلم باب فضل من علم وعلم لاندې تيرشوى دى.(٩)

**هشام**: داد عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله خونى دې. د دوى مختصر حالات بدء الوحى دويم حديث لاندې (١٠)اوتفصيلى حالات كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوى دى.(١)

---

(١) عمدة القارى: ٢٩٠/٣تهذيب التهذيب: ٣٢/٣.
(٢) تهذيب التهذيب: ٣٢/٣.
(٣) دَ تلامذه ومشائخ دَ تفصيل دَپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ١٨٦/١٩.
(٤) تهذيب الكمال: ١٨٦/١٩.
(٥) تهذيب الكمال: ٣٢/٣.
(٦) تهذيب الكمال: ٣٢/٣.
(٧) ٤٣٣/٨.
(٨) التاريخ الكبير:٤٤٢/٥رقم الترجمة:١٤٤١.
(٩) كشف البارى: ٤١٤/٣.
(١٠) كشف البارى: ٢٩١/١.

**عروة**: دا عروة بن الزبیر بن العوام رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات بدءالوحی دویم حدیث لاندې (۲) او تفصیلی حالات کتاب الایمان باب أحب الدین إلی الله أدومه لاندې تیرشوی دی. (۳)

**عائشة**: داام المؤمنین سیده عائشه بنت ابی بکر الصدیق رضی الله عنها ده. د دوی حالات بدءالوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی. (۴)

## شرح حدیث

**قوله:: موافین هلال ذی الحجة**: یعنی زمونږ دمدینې منورې نه روانیدل د ذی الحجه دمیاشت شروع کیدو نه یوڅو ورځې وړاندې وو. (۵)

دائمه حدیث اوشراح حدیث په دې سلسله کښې اختلاف دې چه دمدینې منورې نه دحجة الوداع دپاره روانیدل په کومه ورځ اوکوم تاریخ شوی؟ اودا اختلاف ((باب الأمر بالنفساء إذا نفسن)) لاندې په مفصل اومدلل انداز کښې ذکر کړې شوی دی. البته د آسانتیا دپاره ددغې اختلاف حاصل دلته ذکرکولې شي.

ددغه اختلاف حاصل دادې چه دمدینې منورې نه د روانیدو په سلسله کښې درې اقوال دی. رومبې قول داامام طبری رحمه الله دې چه د ذوالقعده ۲۴ تاریخ دجمعه په ورځ یوم الخروج ګرځوی. دویم قول د ابن حزم رحمه الله دې چه ۲۴ ذوالقعده د زیارت په ورځ یوم الخروج ګرځوی. او دریم قول د علامه ابن قیم رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله اوملاعلی قاری رحمه الله او نورو محققینو حضراتودې. داحضرات ۲۵ذوالقعده دهفته په ورځ یوم الخروج ګرځوی. او هم دغه قول د احادیث صحیحه برابر دې.

**قوله:: أهدیت**: یعنی که چرې ما هدی (د قربانئ څناور) ځان سره نه وو راوستلې نوما به هم د عمرې احرام تړلو، حضورپاك هدی ځان سره د راوستل د عمرې داحرام نه تړلو دپاره علت ددې دپاره اوګرځولو څکه چه هدی ځان سره راوستونکې ترهغه وخته پورې داحرام نه حلال کیدې نه شی ترکومې چه هغه هدی قربانی او ذبح نه کړې شي اوښکاره خبره ده چه د هدی دقربانئ ورځ ۱۰ ذی الحجه (یوم النحر) ده. (۶)

**اشکال**: دلته یو اشکال پیداکیږی چه دحضورپاك ارشاد (لولا أنی أهدیت لأهللت بعمرة) نه خودا مفهوم کیږی چه حج تمتع دحج افراد نه افضل دې؟ بیا امام شافعی رحمه الله ددې اشکال دختمولودپاره څه جواب ورکړې دې؟

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه ددې اشکال جواب دادې چه ذوالخلیفه ته رسیدوسره د ټولونه اول حضورپاك حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم ته خطاب کولوسره په دې امر کښې اختیارورکړو چه د چا زړه غواړی د حج احرام دې اوتړی اود چا چه زړه غواړی نو د عمرې احرام دې اوتړی. په دغه اختیار

---

(۱) کشف الباری: ۴۳۲/۲.
(۲) کشف الباری: ۲۹۱/۱.
(۳) کشف الباری: ۴۳۶/۲.
(۴) کشف الباری: ۲۹۱/۱.
(۵) شرح الکرمانی: ۱۸۵/۳عمدة القاری: ۲۹۰/۳.
(۶) شرح الکرمانی: ۱۸۵/۳عمدة القاری: ۲۹۱/۳.

وركولوسره مقصود د حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم نه دهغه باطل عقيدې ترديد اومخالفت كول وو دكوم په وجه چه د حج په مياشتوكښې عمره كول افجر الفجور ګڼړلې شو. په دې وجه رسول الله ﷺ دحج اوعمرې دواړو نه د هريو احرام دتړلو اختيار وركړو چه دغه غلطه عقيده هم ددغه حضراتو په عمل سره چقنړې كړې شي. ليكن پخپله حضورپاك دحج احرام تړلې وو اود هدى ځان سره د بوتللو د وجې نه حج فسخ كولوسره د عمرې احرام نه شو تړلې. په دې وجه دصحابه كرامو د زړه دتسلئ دپاره ئې داهم اوفرمائيل چه مابه هم خامخا ستاسو خلقو موافقت كولو مګر مشكل دادې چه ما ځان سره هدى راوړلې راغلې يم. د كوم په وجه چه زما دپاره د هدى د قربانئ نه وړاندې حلال كيدل جائزنه دى. ځكه چه حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم هم د حضورپاك په موافقت كښې دحج د احرام اراده لرله. لهذا دلته د حج فسخ كولوسره د عمرې احرام تړل مراد دى چه هم د دغه حجة الوداع والا كال سره خاص وو. دې نه مراد حج تمتع نه دې د كوم د افراد په مقابله كښې چه په افضليت كښې اختلاف دې.(۱)

«فسخ الحج إلى العمرة» مطلب: «فسخ الحج إلى العمرة» مطلب د احرام حج نيت بدلولوسره د احرام عمرې نيت كول دى.(۲)

جمهور علماؤ حج فسخ كولوسره دعمرې احرام تړل د عدم جواز قول نقل كړې دې. ابن عباس رضي الله عنهما ددې د جواز خبره كړې ده اوهم دغه دامام احمد رحمه الله او امام داؤد رحمه الله مذهب دې اود هغوى استدلال ددې خبرې نه دې چه دحجة الوداع په موقع حضورپاك د خپلو اصحابو حج فسخ كولوسره دعمرې داحرام تړلو اختياروركړې وو. جمهور حضرات ددې دا جواب وركوى چه د رسول الله ﷺ دا فرمان اوحكم هم د دغه حجة الوداع والا كال سره خاص وو. د كوم دليل چه د سنن ابى داؤد ، سنن نسائى او سنن ابن ماجه روايات دى. په كوم كښې چه حارث بن بلال دخپل پلار نه نقل كوى چه هغه دحجة الوداع په موقع د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو«فسخ الحج لنا خاصة أولمن بعدنا؟» يعنى آيا داحكم صرف زمونږ سره خاص دې يا زمونږ نه پس راتلونكودپاره به هم دا حكم او اختيار وى؟ نو رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو «بل لكم خاصة» يعنى دا حكم صرف په دې كال هم ددې خلقو دپاره خاص دې.(۳)

**قوله: قال هشام:** په دې كښې دوه احتماله دى. يواحتمال دادې چه دې ته تعليق اووئيلې شي. په داسې صورت كښې به د حضرت هشام رحمه الله قول «ولم يكن في شيء من ذلك هدي ولا صوم ولا صدقة» به معلق روايت ګڼړلې شي. دويم احتمال د ادې چه ددې په اعتبارد معنې په سندكښې موجود لفظ "هشام" باندې عطف دې او په دې صورت كښې به دحضرت هشام رحمه الله قول دحديث متصل جز اوحصه شى.(۴) كه چرې "قال هشام" تعليق اوګڼړلې شي نوددې تعليق مقصد به د يواشكال طرف ته اشاره كول وى اوهغه اشكال دادې چه حضرت هشام رحمه الله خودا فرمائى چه په دې پوره سفر او واقعه

(۱) شرح الكرمانى: ۱۸۶/۳عمدة القارى: ۲۹۱/۳إرشادالسارى:۵۵۷/۱.

(۲) التوضيح: ۹۱/۵.

(۳) التوضيح: ۹۱/۵سنن أبى داؤد كتاب المناسک باب الرجل يهل بالحج ثم يجعلها عمرة، رقم الحديث: ۱۸۰۸ سنن النسائى كتاب المناسک باب إباحة فسخ الحج بعمرة لمن لم يسق الهدى رقم الحديث: ۲۸۱۰ وسنن ابن ماجه كتاب المناسک باب من قال كان فسخ الحج لهم خاصة، رقم الحديث: ۲۹۸۴.

(۴) عمدة القارى:۲۹۱/۳شرح الكرمانى: ۱۸۶/۳إرشادالسارى: ۵۵۸/۱.

كښې خونه هدی وه نه روژه او نه صدقه وه. ليکن په حضرت عائشه رضي الله عنها باندې خو که هغه قارنه وه يا متمتعه په دواړو صورتونو کښې هدی لازم ده. د قران په صورت کښې به هغه هدی د احناف په نيز دم شکر وی اود شوافع په نيز به هدی جبر وی اوکه چرې حضر ت عائشه رضي الله عنها متمتعه وه اوروستو مفرده بالحج شوې وه لکه چه داحنافو تحقيق دې نوبياهم هدی لازم ده او په دې صورت کښې به دغه هدی د جنايت وی. بيا که چرې هدی نه وی نود روژو حکم دې. درې روژې د حج په ورځو کښې او اووه کورته د راګرځيدو نه پس. نود اشکال حاصل دادې چه دحضرت عائشه رضي الله عنها د احرام سره متعلق دائمه حضراتو د تحقيقاتو تقاضاداده چه هدی لازم ګيدل پکاردی. خو دلته حضرت هشام رحمه الله فرمائی.چه په دې سفرکښې نه هدی وه نه روژه او نه صدقه؟

ددې په تاويل کښې حضرات شوافع دا وائی چه دلته د هدی جنايت نفی ده د هدی جبر نفی نه ده اواحناف حضرات دا تاويل کوی چه د هدی شکر نفي ده دهدی جنايت نفی نه ده. خود دې تاويلاتونه بهتردا معلوميږی چه اووئيلې شی حضرت هشام رحمه الله ته تردغې خبر نه دې رسيدلې ګنی د رواياتونه داخبره صفا معلومه ده چه په دې سفرکښې رسول الله صلی الله عليه وسلم د ازواج مطهرات د طرف نه غوا قربانی کړې وه. لهذا دحضرت هشام رحمه الله د نفی کولوسره فی نفسه نفی نه لازميږی.([1])

حضرت مولانا انورشاه کشميری رحمه الله فرمائی چه هدی په (اصطلاح کښې) هغه ځناور ته وائی کوم چه دکور نه يا د لارې نه د بيت الله د اوږلودپاره ځان سره کړې شی اودلته حضرت هشام رحمه الله هم ددې نفی کړې ده. لهذا د قول هشام مفهوم به داشی چه حضرت عائشه رضي الله عنها دکور نه يا د لارې نه دهدی ځناور نه وو اوړلې بلکه حضوريااک هم دمکې معظمې نه دازواج مطهرات دپاره ځناور واخستو اوهغه ئې ذبح کړو.([2])

## د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:

په دې مقام باندې هم دحديث ترجمة الباب سره دمناسبت لاندې هم هغه کلام دې کوم چه د علامه کرمانی رحمه الله په حواله سره دتيرشوی باب لاندې ذکرکړې شوې دې. د کوم حاصل چه دادې سره ددې چه په روايت کښې دنقضِ شعر حکم دغسلِ حيض دپاره نه دې ليکن په روايت کښې د احرام حج ذکرموجود دې چه ددې خبرې دليل دې چه غسلِ احرام د حج دپاره وو ځکه چه داحرام دپاره غسل مسنون دې. اوس چه غسل داحرام دپاره د نقضِ شعر او امتشاطِ رأس حکم ورکولې شی نودغسل حيض دپاره به داحکم په طريقه اولی مسنون وی. ځکه چه احرام غسل صرف مسنون او مستحب دې اود حيض غسل فرض دې.([3])

---

[1]) فيض الباری:۴۹۹/۱ إيضاح البخاری: ۱۱۹/۱۱.

**نوټ**: دِ ايضاح البخاری نه ددې بحث دَ نقل کولووجه داده چه دَ صاحب ايضاح تحقيق دَحضرات احناف دَ عائشه رضي الله عنها داحرام والاتحقيق موافق دې ځکه چه علامه عينی رحمه الله وغيره دلته دَحضرت عائشه رضي الله عنها ابتداء مفرده بالحج ګيدو قول کړې دې(عمدة القاری:۲۹۱/۳التوضيح: ۹۱/۵) خو "باب الأمر بالنفساء إذا نفسن" لاندې دلاتلو نه ثابت کړې شوی دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها په شروع کښې د عمرې په احرام کښې وه اوهم دغه دَ جمهورو مسلک دې.

[2]) فيض الباری: ۴۹۹/۱ أنوار الباری:۴۵۱/۱۰.

[3]) شرح الکرمانی: ۱۸۶/۳.

دويم جواب دادې چه دلته د ترجمة الباب الفاظ ((غسل المحيض)) کښې اضافت ادنی دتعلق د وجې نه دې په دې معنی چه حضورپاك دغسل حکم ورکړې وو اوس که هغه غسل د حیض نه دپاکوالی اوطهارت دپاره وی یا د څه بل څه مقصد دپاره (لکه غسل داحرام وغیره) احکام به هم دغه وی.[1]

## ۱۷ -باب: مُخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ

**ماقبل سره ربط:** په تیرشوی باب کښې د حیض متعلق یو څو احکام ذکرکړې شوی وو او اوس په دې باب کښې هم د حیض متعلق یو حکم بیان کړې شوې دې اوهغه حکم دا دې چه حامله ښاندې حیض نه راځی.[2]

**د ترجمة الباب مقصد:** ددې باب ذکرکولوسره د امام بخاری رحمه الله مقصد دهغه حضراتو مذهب ته تقويت ورکول دی څوك چه داوائی په حامله ښځه باندې حیض نه راځی. هم دغه د اهل کوفه حضرات حنفیه، امام احمد بن حنبل، امام ابوثور، ابوعبید، حضرت عطاء، حسن بصری، امام زهری، امام حکم او حماد رحمهم الله مذهب دې. د امام شافعی رحمه الله نه دوه روایتونه دی. قول قدیم هم دغه دې چه په حامله ښځه باندې حیض نه راځی او قول جدید دادې چه حامله ښځه باندې هم حیض رانلې شی او هم دغه د امام مالك رحمه الله او امام اسحاق رحمه الله مسلك دې.[3]

په ایام حمل کښې د حیض نه راتلو سبب د مور په رحم کښې د بچی وجود دې. د بچی وجود ددم حیض د وتلونه مانع کیږی. اوکه چرې حامله ښځه څه وینه گوری هم نوهغه دم حیض نه وی بلکه هغه د بچی نه مترشح کیږی یا هغه د بچی د خوراك فضله وی اویا بیا د څه بیمارئی د وجې نه وتونکې فاسد وینه وی.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د مذکوره حدیث نه په ایام حمل کښې د حیض نه راتلو باندې استدلال کول محل نظر دې ځکه چه د حدیث شریف نه خو صرف هم دومره معلومیږی چه د حامله د رحم نه خارج کیدونکې څیز ((سَقط)) په ضمه فتحه اوکسره، او کسره اولی سره یعنی نیمگړې بچې وی د کوم شکل چه پوره نه وی جوړشوې. په دې سره دا لازم نه راځی چه که چرې دحامله ښځې د رحم نه وینه راوځی نو هغه به حیض نه وی. اودا کومه دعوی چه کولې شی چه د حمل په حالت کښې راوتونکې وینه د بچی نه مترشح یا د هغه د خوراك فضله یا د څه بیمارئی د وجې نه وتونکې فاسد وینه وی نودا دعوی د دلیل محتاج ده. او هرڅه چه ددې باره کښې خبر او اثر وارد شوې وی هغه د مذکوره دعوی دپاره مثبت نه دی ځکه چه داسې وینه هم د دم حیض د صفاتو حامل وی. او په دغه زمانه

[1] شرح الکرمانی: ۱۸۶/۳.

[2] عمدة القاری: ۴۳۳/۳.

[3] شرح ابن بطال: ۴۴۴/۱ التوضیح لابن ملقن: ۹۵/۵،شرح الکرمانی: ۱۸۸/۳، فتح الباری: ۴۱۹/۱عمدة القاری:۴۳۲/۳إرشادالساری: ۵۵۸/۱.

[4] إرشادالساری: ۵۵۸/۱.

كښې د دې د راتلو امکان هم دې. لهذا دې ته هم د دم حيض حکم ورکول پکاردی او څوک چه د دې د خلاف دعوی کوی د هغه په ذمه دليل دې.(١)

او په آخره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله دا هم بيان کړې دې چه د دې حضراتو تولو نه قوی دليل دا دې چه استبراء رحم او د عدت د پوره کيدو اعتبار په حيض سره کړې شوې دې چه په دې سره د رحم د حمل نه خالي کيدل متحقق او يقيني کيږی. نو که چې په حامله باندې هم حيض راتلو نو د حيض په ذريعه به د رحم دخالی کيدو والاخبره بې سود او بې فائدې کيدله.(٢)

دا هغه دليل دې کوم چه حافظ ابن حجر رحمه الله تسليم کړې دې او هيڅ جواب ئې نه دې ورکړې. علامه عيني رحمه الله د حافظ ابن حجر رحمه الله دا اشکال او د هغه نظر ذکرکولو نه پس فرمائيلی دی چه په حالت د حمل کښې عدم اتيان حيض باندې زمونږ استدلال صرف د دې باب د حديث نه نه دې بلکه په دې باندې ډير زيات احاديث او ډير زيات اخبار او آثار هم دلالت کوی.

**په حالت دحمل کښې په عدم اتيان حيض باندې دلالت کونکی احاديث:** ① امام بخاری رحمه الله او امام مسلم رحمه الله "نافع عن ابن عمر" په طريق باندې روايت کوی چه: «أنه طلق امرأته وهی حائض علی عهد رسول الله صلی الله عليه وسلم، فسأل عمر بن الخطاب رسول الله صلی الله عليه وسلم، فقال رسول الله صلی الله عليه وسلم: مره فليراجعها، ثم ليمسكها حتی تطهر ثم تحيض ثم تطهر ثم إن شاء أمسك بعد وإن شاء طلق قبل أن يمس، فتلك العدة التی أمر الله أن يطلق لها النساء»(٣)

يعنی کله چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما خپلې بی بی ته دحيض په حالت کښې طلاق ورکړو نو دا خبره حضرت عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په وړاندې پيش کړه، په دې باندې حضور پاک او فرمائيل چه هغه (ابن عمر رضی الله عنهما ته) د رجوع کولو حکم ورکړه او بيا دې ښځه په نکاح کښې اوساتی، تر دې چه هغه پاکه شی کله چه هغه راتلونکې حيض تير کړی او پاکه شی نو اوس به هغه ته اختيار وی که غواړی نو حصاره دې کړی او که غواړی نو طلاق دې ورکړی ځکه چه هم دغه هغه عدت دې د کوم په اعتبار سره چه الله تعالی د طلاق ورکولو حکم فرمائيلې دې.

په دې حديث کښې رسول الله صلی الله عليه وسلم د دوو خبرو طرف ته لار خودنه او فرمائيله. ړومبې خبره داده چه که چرې د طلاق ورکولو اراده وی نو په داسې طهر کښې ورکول پکاردی په کوم کښې چه جماع نه وی. او دويمه خبره دا چه د طلاق دعدت اعتبار به په حيض باندې وی. اوس د دغه اعتبار بالحيض دپاره ضروری دی چه طلاق په داسې طهر کښې ورکړې شی چه د جماع نه خالی وی ځکه چه که په دې کښې جماع شوې وی او دهغې د وجې نه حمل اوشی نو بيا به د طلاق اعتبار په حيض سره نه کيږی بلکه به وضع حمل سره به کيږی. د دې نه پته اولګيده چه په حالت د حمل کښې حيض نه راځی ګنی حمل به په عدت طلاق کښې د اعتبار بالحيض دپاره رکاوټ نه جوړيدو.

---

(١) فتح الباری: ٤١٩/١

(٢) فتح الباری: ٤١٩/١.

(٣) رواه الإمام البخاری فی الطلاق باب قول الله تعالی: ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ﴾ رقم الحديث: ٥٢٥١ وكذا رواه الإمام مسلم فی الطلاق باب تحريم طلاق الحائض بغير رضاها وأنه لو خالف وقع الطلاق ويؤمر برجعتها رقم الحديث: ٣٦٥٢.

② دحضرت ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ د اوطاس د قيديانو متعلق داهدايات جاري کړي وو چه: «لاتوطأ حامل حتى تضع ولا غير ذات حمل حت يتٍ تحيض حيضة»[1] يعنى چه د حامله ښځې حمل ترکومې پورې وضع نه شی هغې سره جماع مه کوئی اودغه شان چه غير حامله ښځه يوحيض تير نه کړی هغې سره هم جماع مه کوئی.

③ حضرت رويفع بن ثابت رضی الله عنه روايت کوی چه حضور پاك ﷺ فرمانيلی «لايحل لامرءٍ يؤمن بالله واليوم الآخر أن يسقى مائه زرع غيره، يعنى: إتيان الحبالى يتٍ من السبايا وأن يصيب امرأة ثيباً من السبى حت يتٍ يستبرءها، يعنى: إذا اشتراها»[2]

يعنى د هيڅ يو صاحب ايمان سړی دپاره دا حلال نه دی چه هغه دې په خپلو اوبوسره د بل چا پټې خروب کړی، د رسول الله ﷺ مراد دادې چه قيدی حامله ښځو سره جماع مه کوئی اوداهم حلال نه دی چه يوصاحب ايمان ثيبه قيدی ښځه واخلی اود استبراء رحم نه وړاندې هغې سره جماع اوکړی.
په دې دواړو روايتونوکښې رسول الله ﷺ وجود حيض د رحم مادر د حمل نه خالی کيدو دليل ګرځولې دې. که چرې ته دحمل او حيض اجماع ممکن وې نو وجود حيض به د انتفاء حمل دليل هيڅ کله نه شو جوړيدې.

**په حالت دحمل کښې په عدم اتيان حيض باندې دلالت کونکی اثار** ① علی رضی الله عنه فرمانی «إن الله رفع الحيض عن الحبات وجعل الدم رزقاً للولد مما تغيض الأرحام»[3] ② حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: «إن الله رفع الحيض عن الحبلى يتٍ وجعل الدم رزقاً للولد»[4] ③ حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی: «الحبلى لا تحيض، تغتسل وتصلى»[5]

دا ټول آثار په دې خبره باندې واضحه دلالت کوی چه حامله ښځه باندې حيض نه راځی.[6]

**د ابن منير رحمه الله د استدلال طرز:** ابن منير رحمه الله ددې په دم حيض نه کيدو باندې داسې استدلال کړې دې چه دحامله په رحم باندې فرښته مقرروی اوفرښتې په ګنده ځائی کښې نه اوسيږی لهذا د مور رحم د حيض د وينې د ګندګئی نه پاك او صاف کيدل پکاردی.[7]

په دې باندې رد کولوسره حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د فرښتې په دغه ځائی کښې مقرر کيدوسره دا لازم نه راځی چه هغه دې رحم کښې دننه داخل شی چرته چه دحيض د وينې د وجود اوعدم وجود سره بحث کيږی اوبيا دا التزام خو دواړو طرفوته لګيدې شی ځکه چه وينه که د هر ځه وی دحيض وی يا د بل هرقسم دويم څيز ټولې نجس وی.[8]

---

[1] رواه أبوداؤد فى النكاح باب فى وطء السبايا رقم الحديث: ٢١٥٩.
[2] رواه الإمام أحمد حديث رويفع بن ثابت الأنصارى: ٢٠٧/٢٨ رقم الحديث: ١٦٩٩٧ مؤسة الرسالة.
[3] رواه أبوحفص بن شاهين. (الجوهرالنقى فى ذيل السنن الكبرى للبيهقى: ٤٢٤/٧).
[4] رواه ابن شاهين أيضاً. (حواله بالا).
[5] رواه الدارقطنى (سنن الدارقطنى كتاب الحيض: ٤٠٧/١ رقم الحديث: ٨٤٩).
[6] عمدة القارى: ٢٩٢/٣.
[7] فتح البارى: ٤١٩/١.
[8] فتح البارى: ٤١٩/١.

ددې په جواب ورکولوسره علامه عيني رحمه الله فرمائي چه د فرښتې په رحم کښې دننه داخليدل لازمي اوضروري نه وي نودعدم دخول اوحلول فيصله هم ضروري اوقطعي نه ده. او وينه چه ترکومې پورې دننه وي هغې ته نجس نه شي وئيلې ګنې هيڅوك به هم پاك پاتې نه شي ځکه چه نجاست په ټولو کښې موجود دې. (١)

واضحه دې وي چه ترجمة الباب ((مخلقة وغير مخلقة)) د سورت حج آيت ﴿ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِن مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ ۚ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ يوه ورو کې شان ټکړه ده. د آيت مبارك ترجمه داده:

**ترجمه**: اې خلقو که چرې تاسو (دقيامت په ورځ) د دوباره راژوندې کيدو نه په شك (اوانکار) کښې يئ نوهم مونږ (اول) تاسو دخاورې نه جوړ کړئ، بيا د نطفه نه (کومه چه دخوراك نه پيداکيږي) بيا د وينې د قطرې نه، بيا د بوټئي نه چه پوره کيږي او (بعض) نيمګړې هم، دې دپاره چه مونږ ستاسو په وړاندې (خپل قدرت) ښکاره کړو او مونږ (دمور) په رحم کښې چه کومه (نطفه) غواړو د يومقررمودې پورې (يعنې د پيداکيدو دوخت) پورې حصاره ساتو. (٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلي دي چه د ((باب مخلقة وغير مخلقة)) روايت مونږ ته په اضافه سره رسيدلې دې يعنې: باب التفسير قوله تعالى ﴿ مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ ﴾ لکه چه د حافظ ابن حجر رحمه الله په رائې کښې دامام بخاري رحمه الله مقصد د آيت مبارك تفسير کول دي. (٣)

په دې باندې علامه عيني رحمه الله اوفرمائيل چه افسوس دائې هم خودلې وې چه داد اضافت والاروايت پخپله هم د امام بخاري رحمه الله نه دې يادهغوی د شاګرد فربري رحمه الله نه دې؟ اوبيا دا حديث ددې آيت مبارك تفسير څنګه جوړيدې شي چه دحديث په متن کښې نه "مخلقة" ذکر دې اونه د "غيرمخلقة" ذکردې چه په ترجمة الباب کښې موجود لفظ "مخلقة" او "غيرمخلقة" ددواړو تفسير جوړيدې شو. (٤)

دعلامه عيني رحمه الله د اشکال حاصل دادې چه که چرې دآيت تفسير دامام بخاري رحمه الله مقصد اوګرځولې شي نودغه وخت به دا مسئله دکتاب التفسير جوړه شي.

شيخ المشائخ حضرت شاه ولي الله رحمه الله هم د حافظ ابن حجر رحمه الله په اتباع کښې هم دغه فرمائيلي دي چه د امام بخاري رحمه الله مقصد په آيت کښې موجود لفظ ﴿ مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ ﴾ تفسير کول دي اوسره ددې چه د دې مناسبت کتاب التفسير سره دې مګر دلته دا په کتاب الحيض کښې د ادنئ مناسبت د وجې نه ذکر فرمائيلې دې. (٥) بعض حضراتو هغه مناسبت داتحرير کړې دې چه کله نطفه رحم ته ځي نودهغې به هم دوه صورتونه وي. يا به په هغې کښې تخليقي کيفيت پيداکيږي يا نه او ښکاره خبره ده چه تخليقي کيفيت به هم په هغه رحم کښې پيداکولې شي په کوم کښې چه دحيض صلاحيت وي. ځکه چه دحيض نه بغيرپه نطفه کښې تخليقي تغير پيداکول دعادة الله او سنتِ الهيه نه خلاف دي. (٦)

---

١) عمدة القاري:۳/۲۹۲.

٢) بيان القرآن سورة الحج: ۲/۵۱۰مکتبه رحمانيه.

٣) فتح الباري: ۱/٤۱۸.

٤) عمدة القاري: ۳/٤۳۳.

٥) شرح تراجم أبواب البخاري: ۱۹الکنزالمتواري: ۳/۲۸۰ تقرير بخاري: ۲/۱۰۱.

٦) إيضاح البخاري:۱۱/۱۲۰.

علامه رشید احمد گنگوهی رحمه الله فرمائی دامام بخاری رحمه الله مقصد داخودل دی چه د لفظ مخلقة اطلاق په دوو معنو باندې کیږي. (دغه شان د غیر مخلقة اطلاق هم په دوو معنو باندې به وی):

رومبۍ معنی: ((ماتم خلقه وکمل، یعنی: مخلقة)) هغه جنین ته وائی د کوم تخلیق چه مکمل شوې وی او غیر مخلقة ددې معنې په اعتبارسره هغه جنین ته وائی دکوم په تخلیق کښې چه څه نقص یا کمې پاتې شوې وی.

دویمه معنی ((مالم یأخذ فی الصورة ولم یتکون إلا قلیلاً منه، کید ورجل، یعنی: مخلقة)) هغه جنین ته وائی د کوم صورت چه نه وی مکمل شوې بلکه صرف لاس یا خپې جوړې شوې وی او په دې اعتبار سره غیر مخلقة هغې ته وائی د کوم چه هیڅ یو اندام نه وی تیارشوې.

اوس که چرې رومبۍ معنی مرادوی نود امام بخاری رحمه الله مقصد به دا وی چه مخلقة اوغیر مخلقة دواړه په حکم کښې یوشان دی. لهذا که ماشوم پوره وی (کوم چه د مخلقة په معنی کښې دې) یا ناقص الخلق وی (چه د غیر مخلقة په معنی کښې دې) کله چه هغه پیداکیږي نو په هغه موقع باندې دمور د رحم نه وتونکې وینه د نفاس وی ځکه چه د پیداکیدو نه پس چه کومه وینه راځی هغې ته نفاس وائی اودلته هم داسې دی ځکه چه ناقص ته هم ولد وائی.

اوکه دویمه معنی مراد وی نوهغه وخت به دامام بخاری رحمه الله مقصد دا وی چه مخلقة اوغیرمخلقة په احکام کښې برابر نه دی لهذا ددې دویمې معنی په اعتبارسره دغیرمخلقة د پیدائش نه پس به راتلونکې وینه دنفاس نه وی هم دا غرض شیخ الحدیث زکریا رحمه الله هم اختیارکړې دې.[1]

## الحدیث الأول

[۳۱۲]- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّوَجَلَّ وَكَّلَ بِالرَّحِمِ مَلَكًا [ص:۷۰] يَقُولُ: يَا رَبِّ نُطْفَةٌ، يَا رَبِّ عَلَقَةٌ، يَا رَبِّ مُضْغَةٌ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَقْضِيَ خَلْقَهُ قَالَ: أَذَكَرٌ أَمْ أُنْثَى، شَقِيٌّ أَمْ سَعِيدٌ، فَمَا الرِّزْقُ وَالأَجَلُ، فَيُكْتَبُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ"[2] [۳۱۵۵، ۲۲۲۲]

**ترجمه:** حضرت انس بن مالک رضی الله عنه درسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی الله تعالی په رحم باندې یوه فرښته مقررکړې ده چه وائی اې پروردګار! تا دمور په رحم کښې نطفه پیداکړه. اې پروردګار! تا چك وینه پیدا کړه. اې پروردګار! تا د غوښې بوټئی پیداکړه. نوچه کله الله تعالی دا اراده فرمائی چه د دې تخلیق مکمل کړی نو فرښته وائی چه ښځه ده که سړې؟ بدبخت دې که نیك بخت؟ بیا دده رزق اودده عمر څه دې؟ چنانچه دا څیزونه هم دهغه د مور په خیټه کښې مقررکولې شی.

[1]) لامع الدراری: ۲/۲۶۷-۲۶۵ الکنز المتواری: ۳/۲۸۲-۲۷۹ تقریر بخاری: ۲/۱۰۱.

[2]) قوله: أنس بن مالک: الحدیث، رواه البخاری فی أحادیث الأنبیاء، باب خلق آدم وذریته رقم الحدیث: ۳۳۳۳ وکذا فی کتاب القدر فی الباب الأول تحت رقم الحدیث: ۶۵۹۵ ومسلم فی القدر باب کیفیة خلق الآدمی فی بطن أمه وکتابة رزقه وأجله وعمله الخ تحت رقم الحدیث: ۶۷۲۳

**دمخلقة اوغير مخلقة تفسير:** ① حضرت قتاده رحمه الله د دې په تفسير او تاويل کښې فرمائي «تامه وغيرتامه» يعنى مکمل اوپوره بوټئى «دغوښې ټکړه» يا ناتمام او نيمګړې بوټئى «دغوښې ټکړه».

② بعض حضرات فرمائي چه مخلقة وغيرمخلقة دنطفې صفت دې. په دې اعتبارسره به مفهوم دا شي چه نطفه مخلقه هغې ته وائى کوم چه مکمل تخليق کړې شى اونطفه غيرمخلقه هغې ته وائى کومه چه دتخليق نه وړاندې د مور د رحم نه غورزولې شى.

③ امام مجاهد رحمه الله او امام شعبى رحمه الله وغيره فر مائي دمخلقة نه مراد هغه جنين دې کوم ته چه مکمل انسانى شکل ورکړې شوې وى اودغيرمخلقة نه مراد هغه نيمګړې بچې دې چه دتخليق نه وړاندې غورزيږى. امام طبرى رحمه الله ددې ټولواقوالو ذکرکولونه پس هم دې آخرى ذکرکړې شوې قول، قول صواب ګرځولې دې.[1]

## تراجم رجال

**مسدد:** دا مسدد بن مسرهد بنمرعيل الاسدى البصرى رحمه الله دې. ددوى حالات **کتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه** لاندې په اختصارسر ه او **کتاب العلم باب من خص بالعلم قوماً** لاندې په تفصيل سره تيرشوى دى.[2]

**حماد:** داحمادبن زيدبن درهم ازرى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات **کتاب الايمان باب: ﴿وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا﴾** الآيه لاندې تيرشوې دې.[3]

**عبيدالله بن أبي بكر:** داد حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نمسې حضرت عبيدالله بن ابى بکر بن انس بن مالک رحمه الله دې. دې د خپل نيکه حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه د حديث روايت کوى اويوقول دا هم



[1] التوضيح: ٩٦/٥ التفسير للطبرى، سورة الحج:٥ فتح البارى: ٤١٩/١ عمدة القارى:٤٣٣/٣ الكنز المتوارى:٢٨١/٣.
[2] كشف البارى: ٢/٢، ٥٨٨/٤.
[3] كشف البارى: ٢١٩/٢.

دي چه دي دخپل پلار ابوبکر رحمه الله نه روايت کوی اوهغه د خپل پلار حضرت انس رضي الله عنه نه روايت د حديث کوی.[1] اوددوی نه ددوی رور بکر بن ابی بکر بن انس، حمادبن زيد ، حماد بن سلمه، شدادبن سعيد ، امام شعبه، عتبه بن حميد الضبی، مبارك بن فضاله، هشيم، محمد بن عبدالعزيز اوعلی بن عاصم رحمهم الله وغيره دحديث روايت کوی.[2]

امام احمدبن حنبل، يحيى بن معين، امام ابوداؤد او امامن نسائی رحمهم الله فرمائی: **ثقة**.[3]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی: **صالح**.[4] ابن حبان رحمه الله ددوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[5] البته امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی عنبسه بن سالم صاحب الانواح دعبيدالله بن ابی بکر بن انس بن مالك رحمه الله نه يوڅو موضوع روايات نقل کړی دی.[6]

**أنس بن مالك**: دا مشهور اومعروف صحابی رسول صلى الله عليه وسلم، د حضورپاك خادم خاص حضرت انس بن مالك بن نضر بن ضمغم خزری انصاری رضي الله عنه دې. ددوی حالات **كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه** لاندې تيرشوی دی.[7]

## حل لغات

**النطفة**: امام اسماعيل جوهری رحمه الله فرمائی چه **نطفة** د طاء په سکون سره د صفا اوبو په معنی کښې هم استعماليږی او **ماء الرجل** يعنی دمنی په معنی کښې هم استعماليږی. په رومبې معنی کښې د استعماليدو په صورت کښې ددې جمع **نطاف** راځی اود دويمې معنی په لحاظ سره ددې جمع **نُطَف** دنون په ضمه او طاء فتحه سره راځی. دا لفظ د باب ضرب او باب نصر دواړو نه مستعمل دې اود دواړو ابواب نه هم د څڅيدو په معنی کښې استعماليږی. په دې وجه داسې شپه په کومه کښې چه ترسحر کيدو پورې باران يوشان وريږی هغې ته **ليلة نطوف** وائی او **النطَفة** د طاء فتحه سره د غوږ ويښتو ته وائی اود دې جمع **نَطَف** دنون اوطاء فتحه سره راځی.[8]

**العلَقة**: دلام فتحه سره تينګې چك شوې وينې ته **علق** اود هغې وړې ټکړې ته **علقة** وائی.[9]

**المضغة**: امام جوهری رحمه الله فرمائی **مضغة** دغوښې ټکړې ته وائی اوهم ددې نه دا مقوله هم مشتق ده. «**قلب الإنسان مضغة من جسده**» يعنی دانسان زړه دهغه دبدن يوه ټکړه ده ددې جمع **مُضَغ** دميم ضمه اود ضاد فتحه سره راځی.[10]

---

[1] تهذيب الكمال: ۱۵/۱۹.

[2] دتفصيل دپاره اوګورئی تهذيب الكمال: ۱۵/۱۹.

[3] تهذيب الكمال: ۱۵/۱۹.

[4] الجرح والتعديل: ۳۰۹/۵رقم الترجمة: ۱٤۷۰دار إحياء التراث العربی.

[5] ٦٥/٥

[6] تهذيب الكمال: ۱٦/۱۹.

[7] كشف الباری: ٤/۲.

[8] معجم الصحاح للجوهری: ۱۵٦۹عمدة القاری: ۲۹۳/۳.

[9] معجم الصحاح للجوهری: ۷۳۵عمدة القاری: ۲۹۳/۳.

## شرح حديث

د مذكوره روايت نه معلوميږي چه د مور په رحم كښې نطفه د پريوتلونه پس هم د فرښتې د تربيت اوخيال ساتلودپاره ليګلې شي مګر په دې باره كښې روايات مختلف دي. د يوروايت نه معلوميږي چه فرښته په دريمه چله (۱۲۰ ورځې يعنى ۴مياشتې) دپوره كيدونه پس ليګلې شي. هغه روايت دا دې «إن أحدكم يجمع خلقه في بطن أمه أربعين يوماً، ثم يكون في ذلك علقة مثل ذلك، ثم يكون في ذلك مضغة مثل ذلك، ثم يرسل الله الملك، فينفخ فيه الروح ويؤمر بأربع كلمات: بكتابة رزقه وأجله وشقي أوسعيد»

اللفظ لمسلم.(۲) هم دغه شان د بعض رواياتو نه ۴۰ بعض نه ۴۵ اوبعض نه ۴۲، ۴۳ ورځونه پس فرښته ليګل معلوميږي.

علماء كرامو حضراتو په دې رواياتوكښې داسې تطبيق وركړې دې چه جنين د نطفې په صورت كښې د مور په رحم كښې د واقع كيدو نه پس واخله دنياته د راتلو پورې ټول مراحل د فرښتې په تربيت او خيال ساتلوكښې تيره وى اوكله هم چه د يو حال نه بل حال ته وربدليږي نوفرښته په آواز كولوسره وائى «يارب هذه نطفة، يارب هذه علقة ويارب هذه مضغة» مګر په بعض رواياتوكښې ړومبې مرحله كښې د فرښتې ليګل ذكرشوى بعض كښې د دويمې مرحلې په وخت او بعض كښې د دريمې مرحلې په وخت ارسال دملائكه ذكرشوې. اود فرښتې خيال ساتل د شروع نه تر آخره پورې وى.(۳)

په دې تقرير سره د هغه سوال جواب هم كيږي چه هم په يو وخت كښې د يوې فرښتې نطفه علقه او بيا مضغه كيدل څنګه ممكن دى خكه چه د تيرو توضيحاتو نه خومعلومه شوې ده چه دا ټول تغيرات هم ديوخت سره متعلق نه دى بلكه دهريوحال نه بل حال ته وربدليدلوپه مينځ كښې ۴۰ورځو موده ده.(۴)

شراح حضرات ليكلى دى چه د الله تعالى د طرف نه د جنين په خيال ساتلو باندې مقرر شوې فرښته په مختلف اوقاتو كښې مختلف تصرفات كولو باندې هم ماموركيږي. په ړومبې مرحله كښې دمور په رحم كښې موجود نطفه علقه (دغوښې بوټئى) كښې ۴۰ ورځې تيريدو نه پس د فرښتې په نګرانئى كښې بدليږي اوهم دغه هغه مرحله وى چه فرښتې ته هم ددې خبرې علم كيږي چه دا نطفه به وړاندې تلو سره د بچى شكل اختياروى ځكه چه هره يوه نطفه د بچى شكل نه اختياروى. اوهم ددې ړومبې مرحلې د پوره والى نه پس ددغه جنين رزق دهغه عمر اودغه شان دهغه نيك بخت يا بدبخت كيدل مقدركولې شي. په دويمه مرحله كښې دغه جنين ته انسانى شكل اوصورت وركولې شي چه دا به مذكر وى كه مؤنث. هم دې ته مدة المضغة هم وائى. ځكه چه ددې چلې په تكميل باندې علقه (دغوښې قطره) مضغه (بوټئى) كښې بدليږي. جنين په انسانى شكل اوصورت كښې د اچولو مرحله هم په دې دويمه چله كښې اود روح پوكوهلو نه اول كيږي. ځكه چه داخبره هم فيصله شوې ده چه د روح پوكوهلو مرحله د انسانى شكل اوصورت وركولونه پس كيږي. بيا چه كله علقه په مضغه كښې بدليږي نو په دې باندې په دې حالت كښې نوره يوه چله تيريږي اود دې دريمې چلې د پوره والى نه

---

(۱) لسان العرب: ۱۲۹/۱۲معجم الصحاح للجوهري: ۹۹۱عمدة القاري: ۲۹۳/۳.

(۲) رواه البخاري في بدء الخلق باب ذكر الملائكة رقم الحديث: ۳۲۰۸ ومسلم في كتاب القدر باب كيفية خلق الآدمي في بطن أمه وكتابة رزقه وأجله وعمله وشقاوته وسعادته رقم الحديث: ۶۷۲۴-۶۷۲۳.

(۳) التوضيح: ۹۷/۵عمدة القاري:۴۳۵/۳.

(۴) شرح الكرماني:۱۸۷/۳.

پس په دغه جنين كښې روح پوكوهلې شي. لكه چه د روح پوكوهلو مرحله څلور مياشتې پس راځي اودا ټول مراحل د فرښتې په نګرانئ كښې انجام ته رسيږي. (۱)

دعلماء كرامو په دې خبره باندې اتفاق دې چه د روح پوكوهلو مرحله څلورمياشتې پس راځي اودا خبره هم تيره شوې ده چه د رزق ليكل دعمر ليكل اودغه شان د نيك بخت اوبدبخت كيدو تقدير دړومبي چلې نه پس د دويمې چلې دوران كښې كيږي. خود صحيح بخارى اوصحيح مسلم د روايت نه په ظاهره معلوميږي چه د رزق ليكل اواجل وغيره مرحله د دريمې چلې د پوره كيدو نه پس كيږي هغه روايت دادې: ((إن أحدكم يجمع خلقه في بطن أمه أربعين يوماً، ثم يكون علقة مثل ذلك، ثم يكون مضغة مثل ذلك، ثم يبعث الله ملكاً، ويؤمر بأربع كلمات ويقال له: اكتب عمله ورزقه وأجله وشقي أوسعيد، ثم ينفخ فيه الروح)) اللفظ للبخاري. (۲).

يعنې تا دمور په خيټه كښې څلويښتو ورځو پورې د نطفه په شكل كښې ساتلې شي. بيا هغه نطفه هم دومره موده پس چك شوې وينه كښې بدلولې شي، بيا هغه چك شوې وينه هم دومره موده پس د غوښې بوټئ كښې وربدلولې شي، بيا ددې طرف ته فرښتې ته د څلورو خبرو حكم وركولوسره ليګلې شي، چنانچه هغه فرښته دده عمل، دده رزق، د ده عمر او دده بدبخت يا نيك بخت كيدل ليكي او بيا په دې كښې روح ورپوكوهلې شي.

ددې روايت نه صفا معلوميږي چه د كتابت مرحله د دريمې چلې د پوره كيدونه پس كيږي. ددې تعارض جواب دادې چه د صحيح بخارى ددې روايت جمله ((ثم يبعث الله ملكاً فيؤمر بأربع كلمات)) ماقبل كښې: ((يجمع خلقه في بطن أمه)) باندې معطوف دې او ((ثم يكون علقة مثل ذلك، ثم يكون مغة مثل ذلك)) دمعطوف اومعطوف عليه په مينځ كښې د جمله معترضه په توګه وارد شوې ده. او داسې د يوې جملې دمعطوف اومعطوف عليه په مينځ كښې حائل كيدل جائز او ثابت دي. (۳)

دغه شان دحضرت انس رضي الله عنه په مذكوره روايت كښې د رسول الله ﷺ دا ارشاد: ((وإذا أراد الله أن يقضي خلقاً، قال: يارب! أذكر أم أنثى؟)) هم دتيرشوې تحقيق خلاف نه دې اونه په دې سره دا لازم راځي چه د فرښتې دا سوال دمضغة جوړيدونه پس كيږي. ځكه چه دا پخپله يومستقل كلام دې او په دې كښې د يو بل حالت خبر وركول مقصود دي. چنانچه په روايت كښې د ټولو نه اول ددې خبرې خبر وركړې شو چه د نطفې پيدا كيدو سره يوه فرښته ددې د نګرانئ دپاره مقرركولې شي چه د نطفې كيدونه واخله مضغه جوړيدونه پس مراحل پورې مستقل نګرانى كوى او بيا ((وإذا أراد الله أن يقضي)) سره د جدا خبرې خبر وركړو چه كله الله تعالى نطفه په علقه كښې بدلول غواړى نوهغه وخت دا امور (د رزق ليكل، د اجل ليكل د سعادت او شقاوت ليكل او دمذكر اومؤنث وغيره كيدل) هم د فرښتې په حواله كولې شي. (۴)

---

(۱) التوضيح: ۹۸/۵ عمدة القارى: ۴۳۴/۳.

(۲) مرتخريجه آنفاً

(۳) التوضيح: ۹۹/۵-۹۸ عمدة القارى: ۴۳۶/۳-۴۳۵.

(۴) التوضيح: ۹۹/۵ عمدة القارى: ۴۳۶/۳.

**قوله: فيكتب في بطن أمه**: يعني دا ټول امور فرښته د لوح محفوظ نه نقل كولوسره ليكي.[1]
لكه څنګه چه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه په مرفوع روايت كښې ددې صراحت دې. روايت دادې: «إن النطفة إذا استقرت في الرحم، أخذها الملك بكفه قال: أي رب! أذكر أم أنثى؟ شقي أم سعيد؟ ما الأثر؟ بأي أرض تموت؟ فيقال له: انطلق إلى أم الكتاب، فإنك تجد قصة هذه النطفة فينطلق، فيجد قصتها في أم الكتاب»[2]
يعني كله چه نطفه دمور په رحم كښې حصاريږى نوفرښته هغه په خپل تلى كښې كيخودو سره دالله تعالى نه تپوس كوى چه اې الله! دا به سړې وى اوكه ښځه؟ بدبخت به وى كه نيك بخت؟ او كوم ځائې كښې به د ده مرګ وى؟ نودې فرښتې ته وئيلې شى چه د لوح مفحوظ طرف ته لاړه شه هلته به ته د دغه نطفې پوره قصه اووينې. چنانچه فرښته د لوح محفوظ طرف ته ځى اوهلته ددې نطفې پوره تفصيل ګورى.

**اشكال اود هغې جواب**: په تيرو شوو بحثونوكښې داخودلې شوې وو چه كله جنين د نطفې په صورت كښې وى نوهغه وخت هم فرښته «يارب! النطفة» وئيلوسره خبر وركوى. دغه شان چه كله هغه د نطفې نه علقه اودعلقه نه مضغه جوړيږى نوبياهم فرښته «يارب! علقة» او «يارب! مغضة» وئيلوسره خبر وركوى. د اخبار فائده مخاطب ته ديوې خبرې علم وررسول وى اويا بيا مخاطف ته داخودل وى چه متكلم ته هم ددې خبرې علم دې. اوس دلته د اخبار دواړه پورته ذكر شوې فائدې مفقوددى ځكه چه الله تعالى عالم الغيب دې.
جواب دادې چه د فائدې والاخبره هغه وخت ده كله چه كلام دهغې په ظاهرباندې واخستې شى خوكه د ظاهر نه عدول كولوسره اوكتلې شى نوبيا ددواړونه يوه فائده هم نه شى حاصليدې. لكه چه حضرت مريم عليها السلام فرمائيلې وو﴿رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَآ أُنْثَىٰ﴾اوس چرې كه دا كلام په ظاهر باندې واخستې شى او په دغه پورته ذكر شوو دواړو فائدوباندې نظروى نوهيڅ يوه فائده به حاصله نه شى ځكه چه الله تعالى عالم الغيب دې. هم دغه شان دلته هم د فرښتې كلام په خپل ظاهرباندې نه دې بلكه دلته د اخبارمقصدددې لاندينو امورونه څه هم كيدې شى:
① دالله تعالى نه ددې جنين دخلقت د پوره كولو درخواست دې. ② دعاده چه الله تعالى دې جنين ته كامل صورت وركړى③ دا استعلام دې اود الله تعالى نه پوښتنه كول دى چه اوس ددې باره كښې څه حكم دې؟[3]

**دكتابت نه څه مراددې؟**: سوال داپيدا كيږى چه دلته دكتابت نه مراد حقيقى كتابت دې كه دا د تقدير نه كنايه ده؟ دلته دواړه احتمالات كيدې شى. دكتابت نه حقيقى كتابت هم مرادكيدې شى ځكه چه الله تعالى په هرڅيز باندې قادردې اوداهم ممكن دى چه دا دتقدير نه كنايه وى. ليكن په دې باندې يوبل سوال پيداكيږى چه تقدير خو د ازل نه وى اوقديم وى، تقدير خود مور په خيټه كښې نه ليكلې كيږى؟ نوجواب دادې چه دلته تقدير د هغې موجوده مكل سره معلق كول اوخاص كولو ذكر دې. هم دې ته قدر هم وائى او تقدير ازلي خو يو عقلي امر دې كوم چه په قضاء سره تعبير كولې شى.[4]

[1]) التوضيح: ٩٩/٥عمدة القارى: ٤٣٦/٣.
[2]) الجامع الأحكام القرآن سورة الحج:٥التفسير المظهرى، سورة الحج:٥التوضيح: ٩٩/٥ عمدة القارى٤٣٦/٣.
[3]) شرح الكرمانى: ١٨٧/٣عمدة القارى: ٤٣٦/٣.
[4]) شرح الكزمانى: ١٨٨/٣عمدة القارى: ٤٣٨/٣.

**دکوموامورو کتابت کیږي؟**: دمورپه خیټه کښې هم هغه څیزونه لیکلې شي دکوم ذکرچه وړاندې تیر شوې دې. یعنې د بچې رزق، د بچې عمر، نر اوښځه کیدل، نیک بخت یا بدبخت کیدل.
علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه په دې څلورو خبروکښې دانسان د ژوند ټول احوال راجمع کړې شوی دی. ځکه چه په دې کښې د مبدأ هم بیان دې چه دا بچې به په دې دنیا کښې مذکر پیداکیږي یا به مؤنث پیداکیږي؟ اودغه شان دانسان دمعاد هم ذکردې چه نیک بخت به وی اوکه بدبخت به وي؟ بیا ددې مبدأاومعاد په مینځ کښې دانسان عمر اودهغه اجل دې. اوکوم څه چه انسان په دې عمرکښې مختلف تصرفات کولوسره حاصلوی هغه دده رزق دې. (۱)
**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: ددې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت داسې دې چه دحدیث ترجمة الباب کښې موجود آیت تکړه ﴿مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ﴾ تفسیرکړې شوې دې اوهغه داسې ((إذاأرادالله أن يقضي خلقه))کښې دمخلقة بیان دې اود مخالف مفهوم "غیرمخلقة" مضمون نه متضمن دې یعنی چه کله الله تعالی دده د مکمل تخلیق اراده نه فرمائي نودا به "غیرملخقة" وی. دلته په حدیث کښې مخلقه أو غیر مخلقه دواړو صراحت نشته دې مګر یوبل روایت دکوم چه امام طبراني رحمه الله روایت کړې دې، کښې ددواړو تصریح موجود ده. هغه روایت دادې: ((إذا وقعت النطفة في ارحم بعث الله ملكاً، فقال: يارب! مخلقة أوغير مخلقة؟ فإن قال: غير مخلقة، مجها الأرحام دماً، وإن قال: مخلقة قال: يارب! في أي صفة هذاه النطفة؟ أذكر أم أنثى؟ ما رزقها؟ ما أجلها؟ أشقى أو سعيد؟ قال: فيقال: له: انطلق إلى أم الكتاب، فاستنسخ منه صفة هذه النطفة. قال: فينطلق الملك، فينسخها، فلاتزال معه حتى يأتي على آخر صفتها)) (۲)
دا روایت لفظاً موقوف دې مګر حکماً مرفوع دې ځکه چه په دې حدیث کښې د یوداسې امر خبرورکړې شوې دې دکوم چه عقل ادراك نه شی کولې اوداسې حدیث په کوم کښې چه غیر مدراك بالعقل امر خبر ورکړې شوې وی حکماً مرفوع وی اوهغه په سماع باندې محمول کولې شی. (۳)

## ۱۸ - باب: کَيْفَ تُهِلُّ الْحَائِضُ بِالْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ

داڅلورم باب دې کوم چه امام بخاري رحمه الله په کیف سره شروع کړې دې. (۴)
**ماقبل سره ربط**: علامه عیني رحمه الله فرمائي چه ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه په تیرشوی باب کښې امام بخاري رحمه الله دحیض داحکامونه یوحکم بیان کړې وو اوهغه حکم داوو چه دحمل دوران کښې دحیض وینه نه راځي. دغه شان امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې هم حیض سره متعلق یوحکم بیان کړې دې اوهغه حکم دادې چه حائضه هم د حج یا عمرې احرام تړلې شی. (۵)
**د ترجمة الباب مقصد**: اکثر شراح کرام حضراتو ترجمة الباب کښې مجود لفظ "کیف" د دې په اصلي اوحقیقي معنی کښې نه دې اخستې بلکه دائي وئیلی دی چه د "کیف" نه مراد جواز اوعدم جواز

---

(۱) شرح الکرماني: ۱۸۸/۳عمدة القاري: ۴۳۷/۳.
(۲) فتح الباري: ۴۱۹/۱-۴۱۸ عمدة القاري: ۴۳۴/۳رواه الطبری فی تفسیره: ۴۶۲/۱۶-۴۶۱.
(۳) فتح الباري: ۴۱۹/۱-۴۱۸ عمدة القاري: ۴۳۴/۳.
(۴) الکنزالمتواري: ۲۸۳/۳.
(۵) عمدة القاري: ۴۳۸/۳.

صحت اوعدم صحت دې. اود امام بخاري رحمه الله مقصد دا سوال کول دی چه آیا حائضه د حج یا دعمرې احرام تړلې شی که نه؟ اوبیائی په روایت سره ددې صحت او جواز ثابت کړې.[1]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې وضاحت سره دا اعتراض هم ختمیږی چه حدیث او ترجمة الباب کښې مناسبت نشته (ځکه چه په حدیث کښې د احرام تړلو څه کیفیت یا صفت نه دې بیان شوې خو لفظ "کیف" کیفیت حالت او صفت نه عبارت دې) ځکه چه لفظ "کیف" په خپله اصلي معنی کښې نه دې.[2]
داکثر شراح حضراتو په دې توجیه باندې اعتراض کیږی اوهغه اعتراض داکیږی چه په حدیث خود حج دمیاشتو د صحت ذکرموجود دې مګر د عمرې د اهلال صحت په حدیث کښې ذکر نشته دې. دکوم مطلب چه داشو چه حدیث باب د ترجمة الباب صرف په بعض باندې دلالت کوی. جواب دادې چه دلته د صحت اهلال نه مراد اعم دې سره ددې که په شروع کښې وی لکه دحضرت عائشه رضي الله عنها د حج دپاره احرام تړل دحیض په حالت کښې وو سره ددې چه هغې ته داحرام تړلونه پس حیض راغلې وی ځنګه چه حضرت عائشه رضي الله عنها د عمرې په احرام کښې وه اودهغې نه پس په هغې باندې حیض راغلې. په دواړو صورتونو کښې دحائضه دپاره احرام تړل (که هغه دحج وی اوکه دعمرې) صحیح او جائزدې.
دویم جواب دادې چه د عمرې احرام د حج په احرام باندې قیاس کړې شی لکه چه دحائضه دپاره د حج احرام تړل صحیح دی هم دغه شان دعمرې دپاره احرام تړل هم صحیح دی.[3]
**دشیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله رائې**: شیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله فرمائی چه دحضرات شراح بیان کړې شوې توجیه په خپل ځائی باندې صحیح ده مګر په دې کښې د لفظ کیف رعایت نه دې کړې شوې. زما په نیز لفظ کیف په خپل ظاهرباندې اوخپله اصلي معنی کښې دې اومقصد د حائضه دپاره کیفیت اوصفت بیانول دی اوهغه داسې چه سره ددې بنځه حائضه وی خوچه کله دحج اوعمرې احرام تړی نوغسل کولوسره به احرام تړی اوحضرت عائشه رضي الله عنها احرام هم ددې قبیل نه وو.[4]
پاتې شوه خبره ددې غسل د حکم، امام بخاري رحمه الله د احرام تړلو دکیفیت سره د کیف لفظ سره دغسل دحکم طرف ته هم په یو سوالیه اندازکښې اشاره کړې ده چه آیا داغسل کول مستحب دی که واجب؟ ځکه چه داغسل خو به هم په حیض کښې وی نود جمهورو په نیز دا غسل مستحب دې بغیرد حزم رحمه الله نه چه دهغه په نیز داغسل واجب دې.[5]

## الحدیث الأول

[۳۱۳] - حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الوَدَاعِ، فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ، وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ، فَقَدِمْنَا مَكَّةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

---

[1]) شرح الکرمانی: ۳/۱۹۰-۱۸۹فتح الباری: ۱/۴۱۹عمدة القاری: ۳/۴۳۸إرشادالساری: ۱/۵۶۰الکنزالمتواری: ۳/۲۸۳.
[2]) فتح الباری: ۱/۴۱۹.
[3]) شرح الکرمانی: ۳/۱۹۰-۱۸۹.
[4]) الکنزالمتواری: ۳/۲۸۳.
[5]) الکنزالمتواری: ۳/۲۸۳.

«مَنْ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَلَمْ يُهْدِ، فَلْيُحْلِلْ، وَمَنْ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَأَهْدَى، فَلَا يُحِلُّ حَتَّى يُحِلَّ بِنَحْرِ هَدْيِهِ، وَمَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ، فَلْيُتِمَّ حَجَّهُ» قَالَتْ: فَحِضْتُ فَلَمْ أَزَلْ حَائِضًا حَتَّى كَانَ يَوْمُ عَرَفَةَ، وَلَمْ أُهْلِلْ إِلَّا بِعُمْرَةٍ، فَأَمَرَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَنْقُضَ رَأْسِي وَأَمْتَشِطَ، وَأُهِلَّ بِحَجٍّ وَأَتْرُكَ الْعُمْرَةَ، فَفَعَلْتُ ذَلِكَ حَتَّى قَضَيْتُ حَجِّي، فَبَعَثَ مَعِي عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، وَأَمَرَنِي أَنْ أَعْتَمِرَ مَكَانَ عُمْرَتِي مِنَ التَّنْعِيمِ[1]-[ر ۲۹۰]

**ترجمه**: دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دې چه مونږ رسول الله ﷺ سره په حجة الوداع کښې اووتلو اوبه مونږ کښې بعض د عمرې احرام تړلې وو اوبعض خلقو د حج احرام تړلې وو. رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه کوم سړی دعمرې احرام تړلې دې اوهدی ځان سره نه دې راوړې نوهغه دې حلال شی. اوکوم سړی چه د عمرې احرام تړلې دې او هدی ځان سره راوستې ده هغه دې نه حلال کيږی ترهغه وخته پورې چه هغه دخپلې قربانۍ کولوسره حلال شی. اوکوم سړی چه د حج احرام تړلې دې هغه دې خپل حج پوره کړی. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه په ماحیض شروع شو اوزه حائضه شوم تردې چه دعرفه ورځ راغله اوما دعمرې احرام تړلې وو. چنانچه رسول الله ﷺ حکم راکړو چه زه خپل سر کولاؤ کړم او ګمنزل اوکړم اود حج احرام اوتړم او عمره ترک کړم. چنانچه ما هم داسې اوکړه تردې چه دحج ارکان اداکړل. بيا حضور پاک ماسره عبدالرحمن بن ابوبکر رضي الله عنه اوليګلو چه زه دترک کړې عمرې په ځائې باندې دتنعيم نه عمره اوکړم.

## تراجم رجال

**يحيى بن بكير**: دا امام اوزكريا يحيى بن عبدالله بن بكير القرشي المخزومى المصرى رحمه الله دې. ددوی حالات بدء الوحی ددريم حديث لاندې تيرشوی دی.[2]

**ليث**: دا امام ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې. ددوی حالات هم بدء الوحی ددريم حديث لاندې تيرشوی دی.[3]

**عقيل**: دا عقيل بن عقيل بن خالد بن عقيل رحمه الله دې. ددوی مختصر حالات بدء الوحی ددريم حديث لاندې اوتفصيلی حالات كتاب العلم باب فضل العلم لاندې تيرشوی دی.[4]

**ابن شهاب**: دامشهور محدث ابوبكر محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى مدنى رحمه الله دې. ددوی حالات هم بدء الوحی ددريم حديث لاندې تيرشوی دی.[5]

**عروة**: دا عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات بدء الوحی دويم حديث لاندې اوتفصيلی حالات كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوی دی.[6]

---

[1] قوله: عائشة: الحديث مرتخريجه فى باب الأمر بالنفساء إذا نفسن تحت رقم الحديث: ۲۹٤.

[2] كشف البار: ۳۲۳/۱.

[3] كشف البار: ۳۲۳/۱.

[4] كشف البار: ۳۲۵/۱، ٤۵۵/۳.

[5] كشف البار: ۳۲۶/۱.

[6] كشف البارى: ۲۹۱/۱.

**عائشة**: دا ام المؤمنین سیده عائشه بنت ابی بکر الصدیق رضي الله عنها ده. د دوی حالات بدء الوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی.[2]

## شرح حدیث

د حجة الوداع دواقع کیدو کال ۱۰هجری دې.[3]

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت د حدیث الفاظ «وأهل بعمرة» نه ثابت دې څکه چه په دواړو کښې دحائضه دپاره د حج داحرام تړلو ذکر دې. ددې دپاره چه حضرت عائشه رضي الله عنها د حیض په حالت کښې د حج احرام تړلې وو.[4]

بله داخبره چه کومو حضرات دحضرت عائشه رضي الله عنها د قارنه کیدو قول کړې دې نودهغوی په نیز حدیث اوترجمة الباب کښې مناسبت نور زیات واضح دې څکه چه لکه څنګه په ترجمة الباب کښې دحائضه دپاره احرام د حج اواحرام دعمرې دواړو ذکر دې هم دغه شان په حدیث کښې دحضرت عائشه رضي الله عنها د حیض په حالت کښې داحرام حج اواحرام عمرې دواړو ذکر دی. څکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها د حیض په حالت کښې د حج احرام تړلې وو. اوهغه ددې احرام حج نه وړاندې په احرام دعمره کښې هم وه.[5]

# ۱۹ - باب: إِقْبَالِ الْمَحِيضِ وَإِدْبَارِهِ

**ماقبل سره ربط**: ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه په دواړوابواب کښې دحیض احکامو بیان دې.[6]

## د ترجمة الباب مقصد

**دشیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله رائې**: شیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله فرمائی چه دحضرات شراح دمقصدسره متعلق هیڅ نه دی فرمائیلی. البته دحافظ ابن حجر رحمه الله د کلام نه دامعلومیږی چه دامام بخاری رحمه الله مقصد په دې ترجمة الباب سره د ائمه اربعه رحمهم الله دانقطاع حیض سره متعلق د اختلاف طرف ته اشاره کول دی. څکه چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د علماء کرامو په دې خبره باندې اتفاق دې چه اقبال حیض (د حیض راتللو) پیژندګلو دحیض د وینې د دې په ممکن وخت کښې وتل دی مګر ادبارحیض (انقطاع حیض) پیژندګلوکښې اختلاف دې. بعض کرسف او مالوچ د اوچ راوتل دانقطاع حیض علامت ګرځولې دې اوبعض هغه سپینې اوبه د انقطاع حیض علامت ګرځولې دې چه د حیض په اختتام باندې راڅی.[7]

---

[1] کشف الباری: ۴۳۶/۲.

[2] کشف الباری: ۲۹۱/۱.

[3] إرشادالساری: ۵۶۰/۱عمدة القاری: ۴۳۸/۳.

[4] عمدة القاری: ۴۳۹/۳-۴۳۸.

[5] عمدة القاری: ۴۳۹/۳-۴۳۸.

[6] عمدة القاری: ۴۴۰/۳.

[7] الکنزالمتواری: ۲۸۴/۳فتح الباری: ۴۲۰/۱.

کسف یادمالوچو اوچ وتلوته جفوف اوسپینو اوبو. تلو نه قصة بیضا سره تعبیرکړې شوې دی. دعلامه ابن بطال رحمه الله دکلام نه معلومیږي چه ادبار حیض انقطاع حیض، هم دغه دوه علامتونه دی. اوس ددې دواړو نه دحم دحیض نه پاکیدو په سلسله کښې کوم علامت زیات معتبر دې نو په دې کښې دامام مالك رحمه الله په شاګردانو کښې اختلاف دې.[1]

د ابن قاسم رحمه الله د روایت مطابق که چرې حائضه دانقطاع حیض په وخت قصهٔ بیضاء (د سپینواوبو) لیدونکونه ده نودهغې دپاره ادبارحیض یعنی دانقطاع حیض علامت به هم قصهٔ بیضاء وی. ترکومې چه هغه قصهٔ بیضاء نه ګوری پاکه په نه وی. لیکن چه کومه حائضه د قصهٔ بیضاء لیدونکونه نه ده نودهغې دپاره د ادبارحیض علامت جفوف دې اوهم دغه د عیسی بن دینار رحمه الله قول هم دې. اود ابن عبدالحکم د روایت مطابق دادبارحیض علامت صرف جفوف دې سره ددې چه هغه حائضه د قصهٔ بیضاء د لیدونکوه وی اوهم دغه دحضرت عمر رضي الله عنه اوحضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله قول هم دې.[2]

علامه قسطلانی رحمه الله دویمه معنی اختیارکړې ده. چنانچه هغه فرمائی چه د قصهٔ بیضاء نه مراد هغه سپینې اوبه دی چه د حیض په ختمیدو باندې ښکاره کیږی اوبه دې سره د رحم د پاکیدو پته لګی. علامه قسطلانی رحمه الله د دویمې معنی اختیارولودپاره د ترجیح وجه دا بیان کړې ده چه جفوف عدم دې اوقصهٔ بیضاء د سپینو اوبو د وجود او په دلالت کولوکښې وجو زیات ابلغ اومؤثردې. بیا دلته داسې ددې وجې نه هم دی چه د ښځې رحم په حیض کښې هم کله کله بالکل اوچیږی اوهم داسې چه کله د ایام حیض په مینځ کښې هم ښځه صفائی کوی نود څه وخت دپاره هغه اوچه شی خودا معامله د قصهٔ بیضاء په معنی د سپینو اوبونه ده ځکه په سپینو اوبوکښې صرف د طهر کیدو احتمال دې.[3]

**د شیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله قول:** شیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله فرمائی چه زما په نیز دامام بخاری رحمه الله مقصدپه محدثینوکښې مشهورې دې معنی طرف ته اشاره کول دی دکوم د پاره چه محدثین حضرات اقبال حیض او ادبار حیض غوندې اصلاحات استعمالوی. یعنی د محدثینو حضراتو په نیز دا دوه اصطلاحی کلمې دی. چه د یوخاص قسم وینې د راتلو اودهغې د تلو په معنی کښې استعمالیږی. او هم په دې وجه امام بخاری رحمه الله ددې باب لاندې هغه آثار او روایات راوړلې دی دکوم تعلق چه الوان (رنګونو) سره دې.[4]

لیکن چونکه حضرات حنفیه ته تمییزباللون (یعنی د رنګ په ذریعه دحیض وینه د غیرحیض د وینې نه جداکولو) سره اتفاق نه دې بلکه داحنافو په نیز دحیض په معامله کښې ایام (عادت) اعتبارکولې شی. په دې وجه داحضرات داقبال او ادبار والاروایت په ایام عادت باندې محمول کوی.[5]

نورکه دا اووئیلې شی چه امام بخاری رحمه الله لکه څنګه دایام معتبرکیدو صراحت نه دې کړې، هم دغه شان هغوی تمییز باللون قول هم نه دې اختیارکړې نودا ویناکول به غلط نه وی. ځکه چه امام بخاری

---

[1]) شرح ابن بطال: ۱/٤٤٦-٤٤٥ التوضیح: ۵/۱۰۵.
[2]) شرح ابن بطال: ۱/٤٤٦-٤٤٥ التوضیح: ۵/۱۰۵ المنتقی شرح المؤطا: ۱/٤٤٣ دارالکتب العلمیة.
[3]) إرشادالساري: ۱/۵٦۱.
[4]) الکنزالمتواري: ۳/۲۸٤.
[5]) الکنزالمتواري: ۳/۲۸٤.

رحمه الله دباب لاندې دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دا اثر راوړلې دې: «لاتعجلن حت يت ترين القصة البيضاء» د کوم نه چه صفا پته لګی چه حضرت عائشه رضي الله عنها د رنګ اعتبارنه دې کړې. (1)

**دعلامه انور شاه کشمیری رحمه الله قول:** علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه آیا د حیض په راتلو اوحیض په ختمیدو کښې د رنګونو اعتبارشته چه تور او سور رنګ خو حیض اوشمیرلې شی او خړ، شین او زیړ رنګونه دې حیض اونه منلې شی. یا په دې سلسله کښې دعادت اعتباردې چه په ایام حیض کښې هرقسم رنګین رطوبت او وینې ته به حیض وئیلې شی؟ نوامام بخاری رحمه الله چه دلته کوم عنوان اختیارکړې دې اودهغې لاندې چه کوم آثار راوړلی دی په هغې کښې دتمییز باللون صراحت نشته بلکه دا آثار دتمییز باللون په غیر معتبرکیدو باندې دلالت کوی. دکوم نه چه معلومیږی چه امام بخاری رحمه الله په دې سلسله کښې امام ابوحنیفه رحمه الله سره دې. (2)

«وَكُنَّ نِسَاءٌ يَبْعَثْنَ إِلَى عَائِشَةَ بِالدُّرْجَةِ فِيهَا الْكُرْسُفُ فِيهِ الصُّفْرَةُ، فَتَقُولُ: لاَ تَعْجَلْنَ حَتَّى تَرَيْنَ الْقَصَّةَ الْبَيْضَاءَ تُرِيدُ بِذَلِكَ الطُّهْرَ مِنَ الْحَيْضَةِ. وَبَلَغَ ابْنَةَ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ: أَنَّ نِسَاءً يَدْعُونَ بِالْمَصَابِيحِ مِنْ جَوْفِ اللَّيْلِ، يَنْظُرْنَ إِلَى الطُّهْرِ، فَقَالَتْ: مَا كَانَ النِّسَاءُ يَصْنَعْنَ هَذَا، وَعَابَتْ عَلَيْهِنَّ»

## الحديث الأول

[۳۲] - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ، كَانَتْ تُسْتَحَاضُ، فَسَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «ذَلِكِ عِرْقٌ وَلَيْسَتْ بِالْحَيْضَةِ، فَإِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ، فَدَعِي الصَّلاَةَ وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْتَسِلِي وَصَلِّي» (3) -[ر ۲۲۲]

**داثار اوحدیث ترجمه:** ښځوبه حضر ت عائشه رضي الله عنها له په ډبی کښې کرسف بندولوسره رالیګلو په کوم کښې چه زیړوالې وو، وحضرت عائشه رضي الله عنها به فرمائیل تادی مه کوئی تردې چه د چونې په شان خالص سپینوالې اووینئی. هغې (حضرت عائشه رضي الله عنها) به د دې نه د حیض نه پاکوالې مراد اخستلو.

او دحضرت زیدبن ثابت رضي الله عنه لورته چه کله داخبره معلومه شوه چه ښځې په مینځ شپه کښې چراغ راغواړی اود طهر یعنی پاکوالی باره کښې ګوری نوهغې اوفرمائیل چه اول خو به ښځوداسې نه کول اوهغې دا عمل معیوب او ګڼړلو.

دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دې چه فاطمه بن ححش ته داستحاضه عارضه وه نوهغې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په دې باره کښې معلومات اوکړو. حضورپاك اوفرمائیل داد رګ وینه ده، حیض نه دې، نوچه کله د حیض راتلل وی نو مونځ پریږده اوکله چه حیض ختم شی نوغسل کولوسره مونځ اداکوه.

**تخریج التعلیق الاول:** دامام بخاری رحمه الله داتعلیق اواثر امام مالك رحمه الله مؤطا کښې اومحدث عبدالرزاق رحمه الله په خپل مصنف کښې موصولاً ذکر کړې دې. دامام مالك رحمه الله تخریج دا دې: «مالك عن علقمة بن أبي علقمة عن أمه مولاة عائشة أم المؤمنين أنها قالت: كان النساء يبعثن إلى عائشة بالدرجة فيها الكرسف

---

(1) الکنز المتواری: ۲۸۵/۳.

(2) فیض الباری: ۵۰۱/۱.

(3) قوله: عائشة: الحدی، مرتخریجه فی کتاب الوضوء باب غسل الدم رقم الحدیث: ۲۲۸.

فيه اصفرة من دم الحيض، يسئلنها عن الصفرة، فتقول لهن: لا تعجلن حتى يرين القصة البيضاء. تريد بذلك الطهر من الحيضة)) (۱)

اومحدث عبد الرزاق تخريج دادې (عبد الرزاق قال: أخبرنا معمر عن علقمة بن أبي علقمة قال: أخبرتني أمي أن نسوة سألك عائشة رضي الله عنها عن الحائض تغتسل إذا رأت الصفرة وتصلي؟ فقالت عائشة: لا، حتى يرين القصة البيضاء) (۲)

## تراجم رجال

**علقمه**: دا راوی حدیث علقمه بن ابی علقمه بن ام علقمه په دواړه شان سره پیژندلې شی. دابوعلقمه نوم مبارك بلال او ام علقمه نوم مبارك مرجانه دی. ام علقمه دحضرت عائشه رضي الله عنها آزاده کړې شوې وینځه وه او په دې کنبې د ائمه رجال هیڅ اختلاف نشته دې. البته په دې کنبې اختلاف دې چه ابوعلقمه هم دحضرت عائشه رضي الله عنها آزاد کړې شوې غلام وو یا هغه د مصعب بن عبدالرحمن بن عوف آزادکړې شوې غلام وو؟ نودامام مالك رحمه الله رحجان دې طرف ته دې چه دام علقمه په شان ابوعلقمه هم د حضرت عائشه رضي الله عنها آزادکړې غلام وو او دزبیربن بکار رحمه الله وینا ده چه ابوعلقمه، د مصعب بن عبدالرحمن بن عوف آزادکړې غلام وو. (۳)

علقمه بن ابی علقمه مدنی دې. هغه د خپل مور بی بی مرجانه، حضرت انس بن مالك، سعیدبن المسیب، امام اعرج او هزان بن مالك رحمهم الله وغیره نه دحدیث روایت کړې دې.

او ددوی نه عبدالرحمن بن ابی الزناد، امام مالك، سلیمان بن بلال، دراوردی، حمزه بن عبدالواحد، عبدالعزیز بن عبدالله بن حمزه بن صهیب رحمهم الله وغیره دحدیث روایت کړې. (۴)

ابن معین، امام ابوداؤد اوامام نسائی رحمهم الله هغوی ثقه گرځولی دی. (۵) امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی: ((صالح الحديث، لا بأس به)) (۶) ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کنبې کړې. (۷) ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی ((كان ثقة مأموناً)) (۸)

ددوی دتاریخ وفات په حواله سره ابن سعد رحمه الله او ابن حبان رحمه الله په مینځ کنبې اختلاف دې. دابن سعد رحمه الله په قول دهغوی وفات دابوجعفر منصور د خلافت په شروع کنبې شوې او دابن حبان رحمه الله په قول د دوی وفات د ابوجعفر منصور دخلافت په آخری دور کنبې شوې. (۹)

---

(۱) الموطا للإمام مالک کتاب الطهارة باب طهر الحائض مكتبة نور محمد.

(۲) مصنف عبدالرزاق کتاب الحيض باب كيف الطهر رقم الحديث: ۱۱۵۹ المجلس العلمی الهند والمكتب الإسلامی

(۳) التمهيدلابن عبدالبر، علقمة بن أبي علقمة: ۱۰۷/۲۰، المكتبة التجارية.

(۴) تهذيب التهذيب: ۲۴۴/۷ دارالفكر

(۵) تاريخ ابن معين، الأول من التابعين ومن بعدهم من أهل المدينة: ۱۹۱/۳ رقم الحديث: ۸۶۷ إحياء التراث الإسلامی، تهذيب الكمال: ۲۹۹/۲۰ مؤسسة الرسالة.

(۶) تهذيب الكمال: ۲۹۹/۲۰ مؤسسة الرسالة.

(۷) ۲۱۱/۵ دارالفكر.

(۸) التمهيدلابن عبدالبر: ۱۰۷/۲۰.

(۹) كتاب الثقات لابن حبان: ۲۹۱/۷ دارالفكر تهذيب التهذيب: ۲۴۴/۷ دارالفكر.

**ابوعلقمه**: داعلقمه بن ابی علقمه پلار بلال رحمه الله دی د چاکنیت چه ابوعلقمه دی.[۱]
ابن حبان ددوی ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دی.[۲]

**أم علقمة**: داعلقمه بن ابی علقمه‌مور ام علقمه ده. ددې نوم مرجانه ده. ابن حبان رحمه الله ددې ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[۳] داحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت کوی اودې نه ددې خونی علقمه روايت کوی.[۴]. امام عجلی رحمه الله فرمائی **مدنية تابعية ثقة**.[۵]

**دمذکوره اثر شرح: دلفظ "قصة" تفسیر**: د لفظ قصة په فتح د قاف اوتشدید د صاد په تفسیر کښې مختلف اقوال دی. علامه زمخشری رحمه الله فرمائی چه قصة په لغت کښې چونې ته وائی. چنانچه وئیلی کیږی «**قصص داره أي: جصصها**» فلانکی کور چونا کړو. اوبیائی مذکوره اثر ذکرکولوسره ددې متعلق درې احتمالات ذکرکړل. ① ددې اثر مطلب دادې چه ښځه به ترهغه وخته پورې دحیض په حالت کښې وی ترکومې چه ښځه په فرج کښې کیخودې شوې کیږې ټکړه یا مالوچ د چونې په شان سپین اونه وینی په کوم چه نه څه قسم زیړوالې لګیدلې وی اونه پرې دخاورې خړرنګ وی. ② دبعض حضراتو وینا ده چه قصة نه مراد هغه څیز دې چه د سپین تار په شان د حیض وینه بندیدو نه پس راوځی اودا معنی حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کړې ده. ③ د حضرت عائشه رضي الله عنها مقصد د سپینوالی نه علاوه دټولو رنګونو نفی کول دی. یعنی چه د سپینوالی نه علاوه د بل یو رنګ اثر نه وی اوهم ددې دپاره قصة بیضاء تعبیرئی پیش کړو. ځکه چه ښکاره خبره ده چه کوم سړې سپینوالې وینی هغه د سپینوالی نه علاوه بل رنګ ته نه ګوری.[۶]
علامه کرمانی رحمه الله رومبې احتمال اختیارکړو اوددې اثر شرح ئې داسې بیان کړه چه حضرت عائشه رضي الله عنها هغه سوال کونکو ښځوته دا فتوی ورکړه چه د پاکوالی حالت به ترهغه وخته پورې نه وی ترکومې پورې چه زیړوالې باقی وی. بلکه د پاکوالی د حاصلولودپاره ضروری دی چه مالوچ د چونې په شان سپین اوصفا ښکاره شی.[۷] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی په دې اثر کښې ددې خبرې دلیل دې چه دحیض په حالت کښې ښکاریدونکې زیړوالې او خاورین رنګ حیض دې.[۸]
ځکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها په دغه اثر کښې هم دغه فیصله فرمائیلې ده چه د حیض په زمانه کښې ښکاریدونکې زیړوالې یا خاورین رنګ به هم حیض شمیرلې کیږی. اوهم دغه دامام مالک رحمه الله امام ابوحنیفه رحمه الله امام احمد رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله مذهب دې. البته امام ابویوسف رحمه الله او ابوثور رحمه الله

---

[۱] کتاب الثقات لابن حبان: ۶۵/۴
[۲] ایضاً.
[۳] ۴۶۶/۵.
[۴] ایضاً
[۵] معرة الثقات للإمام العجلی: ۴۶۱/۲ مکتبة الدار.
[۶] الفائق فی غریب الحدیث والأثر: ۲۰۰/۳ النهایة فی غریب الأثر: ۱۱۳/۴.
[۷] شرح الکرمانی: ۱۹۱/۳.
[۸] فتح الباری: ۴۲۰/۱ وکذا فی شرح البخاری لابن بطال: ۴۴۶/۱.

فرمائي چه دحيض په زمانه کښې ښکاريدنکې زيړوالې او خاورين رنګ به هغه وخت حيض شميرلې شي کله چه ددې نه وړاندې د تور رنګ وينه راغلې وي.(١)

موفق الدين ابن قدامه رحمه الله فرمائي چه دامام مالک رحمه الله نه د قصة بيضاء په تفسير کښې دوه اقوال نقل دي: ① قصة بيضاء هغه سپينو اوبوته وائي چه د حيض په ختميدو باندې راوځي کومې ته چه ترية هم وائي. ② قصة بيضاء د مالوچو هغه خاص ټکړې ته وائي کومه چه ښځه په خپل فرج کښې ايږدي چه کله هغه راويستلې شي نو چه هغه شان سپينه او صفاوي لکه چه په فرج کښې د کيخودو په وخت وو او په دې باندې دهيڅ قسم بدليدل نه وي.(٢) دغه شان علامه دردير رحمه الله نه نقل دي چه د قصة بيضاء نه مراد هغه سپينې اوبه دي چه د ښځې د رحم نه خارج کيږي.(٣)

علامه ابن عابدين شامي رحمه الله د لفظ قصة بيضاء معنى بيانولو سره ليکلي دي چه د قصة معنى چونا او مطلب دا چه چه دمالوچوهغه ټکړه چه کله راويستلې شي نوچه د چونې په شان وي نه په هغې باندې زيړ رنګ وي اوخاورين اودا د انقطاع حيض دليل دې.(٤)

علامه عيني رحمه الله هم د لفظ قصة په تفسير کښې مختلف اقوال نقل کړي دي. هم ددغه اقوال نه يوقول داهم دې چه قصة هغه خاورې ته وائي کومې سره چه سر وينځلې شي اوزيړبخنه د سپين رنګ وي اوچونکه په حديث کښې لفظ قصة بيضاء ذکرشوې دې په دې وجه به دلته مفهوم دا وي چه په فرج کښې کيخودې شوې مالوچ چه د چونې په شان سپين اوصفا راوځي کوم سره چه زيړ رنګ شامل نه وي. علامه عيني رحمه الله فرمائي چه چونې سره تشبيه ورکولوکښې مقصد سپينوالې او صفائي ده چه مالوچ هم په خپل حالت باندې راوځي.(٥)

**قوله: وكن نساء**: كن د جمع مؤنث غائب صيغه ده او په دې کښې موجود د جمع ضمير د نساء طرف ته راګرځي اوداسې ضيمر ته په علم نحوه کښې ضميرمبهم وئيلې شي. اود ضمير مبهم د جواز شرط دادې چه دهغې طرف ته روستو ضرور اشاره کړې شوې وي لکه چه دلته لفظ د نساء هم د دې ضميرجمع طرف ته اشاره کونکې دې اودې سره بدل واقع کيږي اوددې جوازهم داسې دې لکه چه «أكلوني البراغيث»وئيل جائز اوصحيح دې لهذا دې ته اضمار قبل الذكر وئيل صحيح نه دي.

بل لفظ نساء روستوذکرکولو کښې (هرکله چه لفظ کن سره ددې طرف ته اشاره کيږي) د تنويع فائده حاصليږي او په لفظ نساء کښې موجود تنوين هم دد تنويع طرف ته اشاره کوي اومطلب دادې چه داسې د ټولو ښځود طرف نه نه کيدل بلکه د بعض ښځود طرف نه دا عمل مخې ته راغلې وو.(٦)

**قوله: الدرجة**: علامه ابن اثير رحمه الله فرمائي چه دا لفظ "دِرَجة" ددال په کسره او راء په فتحه سره نقل دې اودا د دُرْج جمع ده او دغه شان أدرج هم ددې جمع راځي اوددې معنى ده دښځو وړوکي مروکي

---

(١) أوجز المسالک: ٥٨٩/١.

(٢) المغني لابن قدامة: ٣٩٩/١.

(٣) الشرح الكبير للعلامة أحمدالدردير مع حاشية الدسوقي: ٢٨١/١دارالكتب العلمية.

(٤) حاشية ابن عابدين كتاب الطهارة باب الحيض مطلب: لوأفتى مفت بشيء من هذا الأقوال الخ:٨٨٢/١ دارعالم الكتب.

(٥) عمدة القاري:٤٤١/٣.

(٦) عمدة القاري: ٤٤٠/٣.

خیزونه کیخودو صندوقچه. یوقول داهم دې چه د لفظ تلفظ "الدرجة" د دال ضمه او راء سکون سره دې اودلته په دې مقام باندې دا لفظ سره ددې چه په دې معنی کښې مستعمل دې کومه چه پورته ذکر شوه لیکن اصلاً ددې معنی د هغه کپړې ده په کوم کښې چه دوانې اوتړې او د اوښې په فرج کښې کیخودې شی او بیا یو څوورځې پس هغه کپړه د اوښې د فرج نه راویستې شی. په دې عمل سره مقصد د اوښې په زړه کښې د بلې اوښې د بچی دپاره رحمت اوشفقت پیداکول وی. په دې وجه په کپړه کښې څه خاص دوائی اچولوسره کله په فرج کښې کیخودې شی نوهغه اوښه دحمل په شان کیفیت محسوس کوی اوبیا ددغه کپړې د راویستلو نه پس د بلې اوښې بچې دې ته نیزدې کولې شی نوهغه داخپل بچې ګڼړی او په ده باندې مهربانه کیږی او هغه سره مینه کوی. د الدرجة جمع الدُرج د راء فتحه سره ده. یو دریم قول داهم دې چه دا لفظ الدُرْجة ددال ضمه او راء سکون سره دې اودا د الدرج تانیث دې اودا اول تیر شوی دی چه الدرج مفرد دې او ددې جمع دِرَجة او أدراج راځی.(۱)

**د مذکوره تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت دادې چه په ترجمة الباب کښې ادبار حیض یعنی دحیض دختمیدو تذکره ده او تعلیق مذکورکښې د ادبارحیض علامت قصهٔ بیضاء (سپینو اوبو) تذکره ده.(۲)

**تخریج التعلیق الثاني:** دامام بخاری رحمه الله دا دویم تعلیق امام مالك رحمه الله موصولاً ذکر کړې دې. دامام مالك رحمه الله تخریج دادې: ((**مالك عن عبدالله بن أبي بكر عن عمته عن ابنة زيد بن ثابت أنه بلغها أن نساء كن يدعون بالمصابيح من جوف الليل ينظرن إلى الطهر فكانت تعيب ذلك عليهن وتقول: ما كان النساء يصنعن هذا**))(۳)

## تراجم رجال

**عبدالله بن ابي بكر:** داعبدالله بن ابی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم رحمه الله دې. ددوی کنیت ابومحمد دې او بعض وائی چه ددوی کنیت ابوبکر مدنی دې.(۴)

دوی دخپل پلار ابوبکربن محمد، دخپل پلار دترور عمره بنت عبدالرحمن، ابوجعفر محمدبن علی بن الحسین، عروه بن الزبیر ، یحیی بن عبدالرحمن بن اسد بن زراره، ابوالزناد ، انس، حمید بن نافع ، سالم بن عبدالله بن عمر، عبدالملك بن ابی بکر بن عبدالرحمن اوامام زهری رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کړې.

اودوی نه امام زهری(امام زهری او عبدالله بن ابی بکر دواړه د یوې زمانې دی) دهغوی ورارہ عبدالملك بن محمد بن ابی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم، مالك، هشام بن عروه، ابن جریج، حمادبن سلمه، ابواولیس مدني، فلیح بن سلیمان، ابن اسحاق، عبدالعزیز بن المطلب، سفیان بن عیینه او سفیان ثوری رحمهم الله وغیره روایت حدیث کوی.(۵)

---

(۱) النهاية لابن الأثير: ۱۱۲/۲-۱۱۱مؤسسة التاريخ العربي، لسان العرب: ۳۲۱/٤تاج العروس من جواهر القاموس: ۵۵۶/۵التراث العربی، سلسلة تصدرها وزارة الإرشاد،مطبعة حكومة كويت، عمدة القارى: ۴٤۱/۳.

(۲) عمدة القارى:۴٤۰/۳.

(۳) الموطا كتاب الطهارة باب طهر الحائض قم الحديث: ۱۵۱دارالغرب الإسلامي.

(۴) تهذيب التهذيب: ۳۱۱/۲-۳۱۰مؤسسة الرسالة.

(۵) تلامذه او مشایخ دپاره اوګورئی تهذیب الکمال: ۳۵۰/۱٤-۳٤۹مؤسسة الرسالة.

امام مالك رحمه الله فرمائی ((كان كثير الحديث وكان رجل صدق))[1] امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی ((حديثه شفاء))[2] يحيى بن معين رحمه الله او امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی: ثقة.[3] امام نسائی رحمه الله فرمائی ((ثقة ثبت))[4] ابن حبان رحمه الله دهغوی ذكر كتاب الثقات كښې كړې دی[5] ابن سعد رحمه الله ((كان ثقة، كثير الحديث عالماً))[6] امام عجلی رحمه الله فرمائی ((مدنی تابعی ثقة))[7]

ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی ((كان من أهل العلم، ثقة فقيهاً محدثاً مأموناً حافظاً وهو حجة فيما نقل وحمل)) يعني دی داهل علم نه وو ثقه وو فقيه وو محدث وو د جرح وغيره نه محفوظ وو. حافظ حديث وو اوكوم روايات چه هغوی نقل كړی دی هغه په هغه تولو كښې معتمد وو.[8] امام مالك رحمه الله نور فرمائی ((كان من أهل العلم والبصيرة))[9] دهغوی عمر اوبا كاله وو. دهغوی د وفات په تاريخ كښې دوه اقوال دی. يوقول دادې چه دهغوی وفات ۱۳۵هجری كښې شوې او دويم قول دادې چه دهغوی وفات ۱۳۰هجری كښې شوې.[10]

**عن عمته**: ابن حذاء رحمه الله فرمائی چه په سندكښې ذكرشوې عمة (ترور) نه مراد عمرو بنت حزم رحمهماالله ده، چه په حقيقت كښې د عبدالله بن ابی بكر د نيكه ترور ده. مګردلته ددې اطلاق دعبدالله بن ابی بكر رحمه الله په ترور باندې مجازاً كړې شوې دې. هم په دې باندې علامه عينی رحمه الله هم جزم كړې دې.[11]

ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چرته عمره بنت حزم اومنلې شی نوبيا ددې د زيد بن ثابت رضی الله عنه د لور نه روايت كول په ظاهره مشكل دی څكه چه عمره بنت حزم د پخوانو صحابياتونه ده. صحابی رسول حضرت جابر رضی الله عنه هم ددې نه روايت كوی اوحضرت زيدبن ثابت رضی الله عنه لور د قديم صحابياتونه نه ده. ليكن چونكه د اكابر د اصاغر نه روايت كول ثابت دی په دې وجه عين ممكن دی چه دعمره بنت حزم رضی الله عنها د حضرت زيد بن ثابت رضی الله عنه د لور نه روايت كول هم ثابت وی. خوددې هرڅه باوجود هم دومره خبره شته چه د عبدالله بن ابی بكر رحمه الله دا روايت منقطع وی څكه چه هغه د عمره بنت حزم رضی الله عنها زمانه نه ده ليدلې.[12]

---

[1] تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱٤تهذيب التهذيب: ۳۱۱/۲مؤسسة الرسالة الجرح والتعديل: ۱۷/۵دارإحياء التراث العربی.

[2] حواله بالا

[3] تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱٤تهذيب التهذيب: ۳۱۱/۲مؤسسة الرسالة الجرح والتعديل: ۱۷/۵دارإحياء التراث العربی.

[4] تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱٤تهذيب التهذيب: ۳۱۱/۲مؤسسة الرسالة الجرح والتعديل: ۱۷/۵دارإحياء التراث العربی.

[5] ۱٦/۵ دارالفكر.

[6] معرفة الثقات للإمام العجلی: ۲۲/۲مكتبة الدار، (مدينة منورة).

[7] تهذيب التهذيب: ۳۱۱/۲.

[8] تهذيب التهذيب: ۳۱۱/۲.

[9] تهذيب التهذيب: ۳۱۱/۲.

[10] تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱٤.

[11] شرح الزرقانی علی المؤطا: ۱۷۲/۱دارالكتب العلمية فتح الباری: ۴۲۱/۱دارالمعرفة.

[12] فتح الباری: ۴۲۱/۱دارالمعرفة، أوجزالمسالك: ۵۹۰/۱ دارالقلم.

یوبل احتمال داهم دي چه عمة نه مراد د حضرت عبدالله بن ابی بکر رحمه الله د سکه تروریانونه ام عمرو، ام کلثوم رضی الله عنها وی. په دې باندې شیخ زکریا رحمه الله فرمانیلی دی چه د مجاز په مقابله کښې به حققت مراد اخستل زیات بهتر وی. یو خوددې وجې نه چه ائمه رجال هیڅ قسم احتمال ته ترجیح نه ده ورکړې او بل په دې وجه چه مجاز مراد اخستلو په صورت کښې په سند کښې انقطاع هم لازم راځی.[1]

«ابنة زید بن ثابت»: دلته دامام بخاری رحمه الله په مذکوره تعلیق کښې اود امام مالك رحمه الله په موصوله روایت کښې هم دغه شان مبهم نقل دی. بل چرته هم د نوم تصریح نشته دې. علامه ابن ملقن رحمه الله فرمائی چه کیدې شی «ابنة زید» نه ام سعد رضی الله عنها مراد وی ځکه چه ابن عبدالبر رحمه الله صرف هم دا په صحابیات کښې شمیرکړې ده.[2]

او حافظ دمیاتی ابومحمد رحمه الله دحضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه دپاره ددې لونړو تذکره کړې ده: ام اسحاق، حسنه، عمره، ام حسن، قریبه، ام محمد او ام کلثوم. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ما بغیرد ام کلثوم نه د بل چاروایت نه دې لیدلې. په دې وجه عین ممکن دی چه دلته د بنت زید نه مراد هم ام کلثوم وی چه دحضرت سالم بن عبدالله بن عمر بی بی وه.[3]

دې نه علاوه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه بعض شراح حضراتو دلته دبنت زید نه مراد ام سعد خیال کړې ده. اوددې خبرې بنیاد په دې خبره باندې دې چه ابن عبدالبر رحمه الله د ام سعد رضی الله عنها تذکره په صحابیاتو کښې کړې ده. خو زما په نیز دابن عبدالبر رحمه الله ام سعد رضی الله عنها په صحابیاتو کښې ذکرکول ددې خبرې دلیل نه دې چه په دې روایت کښې د بنت زید نه مراد هم ام سعد رضی الله عنها وی ځکه چه ابن عبدالبر رحمه الله ام سعد رضی الله عنها صرف په صحابیات کښې شمیرکړې ده. دائی نه دی فرمائیلی چه هغه په دې واقعه کښې حاضره اوموجود وه. بلکه که چرته دام سعد رضی الله عنها څه روایت ملاویږی نوهغه دعنبسه بن عبدالرحمن په طریق سره ملاویږی اوابمه رجال دعنبسه بن عبدالرحمن تکذیب کړې دې.

دې نه علاوه یو اضطراب داهم دې چه ام سعد رضی الله عنها د زید بن ثابت رضی الله عنه لور ده که بی بی ده؟ ځکه چه دواړه شان اقوال ملاویږی. خو بل طرف ته د ائمه نسب نه چاهم د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه په لونړو کښې د ام سعد تذکره نه ده کړې.[4] علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دحافظ ابن حجر رحمه الله مقصد په علامه ابن ملقن رحمه الله باندې ردکول دی ځکه چه هم هغه د بنت زید نه ام سعد مراد کیدو خیال کړې دې.[5]

---

[1]) أوجزالمسالک: ۵۹۰/۱.

[2]) التوضیح: ۱۰۳/۵فتح الباری:۴۲۱/۱-۴۲۰عمدة القاری: ۴۴۲/۳أوجزالمسالک: ۵۹۰/۱.

[3]) فتح الباری:۴۲۱/۱-۴۲۰عمدة القاری: ۴۴۲/۳أوجزالمسالک: ۵۹۰/۱.

[4]) فتح الباری:۴۲۱/۱-۴۲۰عمدة القاری: ۴۴۲/۳أوجزالمسالک: ۵۹۰/۱.

[5]) عمدة القاری: ۴۴۲/۳.

علامه عيني رحمه الله فرماني چه علامه ذهبي رحمه الله (اوددوى په شان نور حضرات اهل علم) ام سعد رضي الله عنها بنت زيد بن ثابت گرځولې ده او په قيل سره ئې د هغې د زيد بن ثابت رضي الله عنه د بي بي كيدو احتمال هم نقل كړې دې. خكه زيات راجح هم دغه دې چه ام سعد رضي الله عنها د حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه لورده. (١)
ددې نه علاوه دا وئيل چه ما د حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه په لونړوكښې بغيرد ام كلثوم رضي الله عنها نه بل د چا روايت نه دې ليدلې نودهغه نه ليدل اوعدم علم ددې خبرې منافي نه دې چه بلې لورنى هم د حديث روايت كړې وى خكه چه دادهغوى د شان نه نه دې چه هغوى ته دې دټولو رواياتوعلم وى. (٢)بهرحال نه خو علامه ابن ملقن رحمه الله په جزم سره ام سعد رضي الله عنها مراد كيدل ذكركړى دى اونه حافظ ابن حجر رحمه الله دام كلثوم رضي الله عنها تعينن كړې دې په دې وجه دواړه احتمالات كيدې شي. (٣)

## دمذكوره تعليق شرح

**قوله:: أن نساء:** اكثرنسخوكښې لفظ نساء هم دغه شان نكره روايت شوې دې مگر بعض دا لفظ معرفه هم روايت كړې دې او په دواړو كښې فرق بيانولوسره علامه كرماني رحمه الله فرماني كه چرې لفظ نساء د الف لام نه بغيردې نودا لفظ به ټولو ښځو ته شامل شي اوكه چرې الف لام سره دې نو په دغه الف لام خارجي سره به دحضرت صحابه كرام رضي الله عنهم ازواج مراد شي. (٤)

**قوله:: يدعون**: يدعون داد جمع مؤنث غائب صيغه ده. جمع مذكر اوجمع مؤنث دواړه په دې ماده كښې مشترك دى ليكن د دواړو په تقديركښې فرق دې. د جمع مذكر غائب وزن به "يفعلون" جوړيږى اودجمع مؤنث غائب وزن به "يفعلن" جوړيږى. د ((يدعون بالمصابيح)) مطلب دادې چه هغه ښځو به چراغ راغوښتلو دې دپاره چه د هغې په رڼا كښې كرسف اوگورى اوهغوى ته دطهر شروع كيدو يا نه شروع كيدو علم اوشي. (٥)

**قوله:: ينظرن إلى الطهر::**

**د ښځودا عمل معيوب گرزولووجه:** ددې معنى داده چه هغه ښځو به د چراغ په رڼاكښې خپل خپل كرسف كتلوچه چرته په هغې كښې څه داسې څيزخونشته چه په طهرباندې دلالت كوى. په دې دويم اثركښې دزيد بن ثابت رضي الله عنه لورته چه كله دا خبراورسيدو چه ښځې دشپې چراغ راغوښتلوسره كرسف گورى نوهغې دا كار معيوب اوگنړلو اود معيوب گنړلو دوه وجهې كيدې شي: ① يوخودا چه د چراغ په رڼاكښې د شپې په معمولي رنګ او سپينوالي كښې فرق نه كيږى. ښځه به گنړى چه هغه پاكه ده په دې وجه به غسل كولوسره دماسخوتن مونځ كوى حالانكه هغه به لا دغه وخت پاكه شوې نه وى.
② بل دا چه داسې كول تعمق دې شريعت چه انسان دكوم څيز مكلف نه دې جوړكړې انسان له هم

(١) عمدة القاري: ٤٤٢/٣ تهذيب الكمال: ٢٠٦/٢٥ مؤسسة الرسالة، الاستيعاب في معرفة الأصحاب كتاب كنى النسآء باب السين: ٤٩٢/٤ دارالكتب العلمية، أسد الغابة في معرفة الصحابة: ٣٤٨/٦ دارالفكر الإصابة في تمييز الصحابة: ٤٠٠/٨ دارالكتب العلمية.
(٢) عمدة القاري: ٤٤٢/٣.
(٣) أوجز المسالك: ٥٩١/١.
(٤) شرح الكرماني: ١٩١/٣ عمدة القاري: ٤٤٢/٣.
(٥) عمدة القاري: ٤٤٢/٣ السنن الكبرى للبيهقي: ٣٣٦/١ رقم الحديث: ١٦٥٢ دائرة المعارف النظامية.

پکار دی چه په دې سلسله دې هغه هسې خامخا په خپل ځان باندې پابندئې نه لګوی. ښځو به د شپې چراغ راغوښتلوسره دهغې په رڼاکښې کرسف په دې غرض سره کتلو چه که حیض منقطع شوې وی نوچه غسل کولوسره دماسخوتن مونځ اوکړی ګنی که سحر هغه خپره سپینه راؤوتله نوددې مطلب به داشی چه حیض خود شپې په څه حصه کښې ختم شوې وو. په دې وجه به اوس غسل کولوسره دماسخوتن مونځ قضاء کولې شی. مګر شریعت په دې سلسله کښې ښځې مجبوره کړې نه دی بلکه ددې ګنجائش ئې ساتلې دې. چه دشپې وخت کښې کوم کرسف کیږدئې هغه سحر اوګورئې که رنګین دې نو دحیض سلسله باقی ده اوکه چرته سپین دې نو سلسله ختمه شوې ده. غسل اوکړه اود ماسخوتن مونځ قضاء اوکړه ځکه چه د شپې وخت د آرام دې. چنانچه د امام بیهقی رحمه الله په روایت کښې حضرت عائشه رضی الله عنها ښځوته په ایام حیض کښې د شپې په وخت کې خپل ځان ته د کتلونه منع کړې وی. باقی د ماسخوتن د مونځ په قضاء باندې هیڅ نیول نشته دې ځکه چه نیول په اختیاری قضاء باندې کیږی. نوهم ددې د پاره دحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه لور خامخاد تعمق فی الدین په سبب دص ښځو داعمل معیوب اوګڼړلو.(۱)

**یوه اختلافی مسئله:** دلته په دې مقام باندې شراح کرامو یوه بله اختلافی مسئله هم ذکرکړې ده. اوهغه مسئله داده چه که چرې حائضه یا دنفاس والاښځه د نمر د راختونه وړاندې پاکه شی مګر په غسل کولوکښې هغه دومره روستوالې اوکړی چه سحر راؤخیژی نودداسې ښځې د روژې باره کښې څه حکم دې؟

امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه که د حیض انقطاع په لسو ورځو باندې شوې دې اودغه شان دنفاس دوینې نه پاکوالې څلویښت ورځې پوره کیدو باندې حاصل شوې دې و په داسې صورت کښې به په دغه دواړوقسم ښځو باندې د هغه ماسخوتن مونځ قضاء کول لازم وی او د راتلونکې ورځې روژه به هم صحیح وی. البته د روژې دپاره شرط دادې چه د سحر د راختو نه وړاندې د روژې نیت اوکړی. اوکه چرې دحیض بندیدل د لسو ورځو نه وړاندې شوې دی یا دغه شان د نفاس وینه د څلویښتو ورځو نه مخکښې منقطع شوې ده نوبیا دوه صورتونه دی:

① د انقطاع دم حیض او نفاس نه پس که د سحر د راختو پورې دومره وخت شته په کوم کښې چه هغه غسل هم اوکړی او بیا د روژې نیت هم اوکړی نو په داسې صورت کښې به هم هغه د ماسخوتن دمونځ قضاء کوی اود راتلونکې ورځ روژه به هم ساتی.

② خوکه دانقطاع دم نه پس دومره وخت باقی پاتې نه شو نو په داسې صورت کښې به نه په هغې باندې د ماسخوتن دمونځ قضاء وی اونه د راتلونکې ورځې روژه ساتلې شی.

په رومبو دواړو صورتونوکښې د ماسخوتن قضاء کول اود راتلونکې ورځې د روژې د صحیح کیدو حکم په دې وجه اولګولې شو ځکه چه په دې دواړو صورتونوکښې نفس انقطاع دم د وجې نه هغه ښځه دحیض یا نفاس دناپاکئې نه وتلې وه. خو په دریم او آخری صورت کښې : ماسخوتن مونځ قضاء لازم نه کیدو اودغه شان د روژې د نه صحیح کیدو حکم په دې وجه اولګولې شو چه دصحابه کرام رضی الله عنهم اجماع ده که چرې دحیض وینه د لسو ورځو نه وړاندې بنده شوه یا د نفاس وینه دڅلویښتو ورځونه وړاندې بنده شوه نوچه کوم دغسل کولو موده وی نوهغه به هم حیض شمیرلې شی اوحیض د مونځ روژې دواړو منافی دې. په دې وجه په دې آخری صورت کښې به نه دماسخوتن د مونځ قضاء

---

۱) فتح الباری: ۴۲۱/۱ شرح ابن بطال: ۴۳۶/۱ عمدة القاری: ۴۳/۳ فیض الباری: ۵۰۱/۱ إیضاح البخاری: ۱۲۴/۱۱.

وی اونه د وراندې ورځې روژ به صحیح وی.[1]

دامام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله مذهب دادې که چرته حائضه اونفساء د طلوع فجر نه وړاندې صفاکیږی نود وړاندې ورځې روژه ساتل به صحیح او جائزوی مګر شرط په کښې دادې چه دطلوع فجر نه وړاندې د روژې نیت اوکړی اوکه چرې د طلوع فجر نه پس پاکه شی نوبیا به د وړاندې ورځې روژه ساتل صحیح نه وی.[2]

علامه نووی رحمه الله فرمائی چه هم دغه د جمهور صحابه، تابعینو او تبع تابعینو رحمهم الله مذهب دې. چنانچه د صحابه کرامو رضي الله عنهم حضراتو نه حضرت علی بن ابی طالب، عبدالله بن مسعود، ابوزر، زید بن ثابت، ابو الدرداء، ابن عباس، ابن عمر او حضرت عائشه رضي الله عنها ددې قائل دی. اوهم دغه شان جمهور تابعین امام ثور، امام مالك، امام ابوحنیفه، امام احمد او امام ثور رحمهم الله هم دا مذهب دې. البته امام اوزاعی رحمه الله حسن بن حي رحمه الله اوعبدالملك بن الماجشون رحمه الله فرمائی چه ترکومې پورې غسل نه کوی دهغې روژه به صحیح نه وی. دا حضرات فرمائی چه دحیض په وجه وړپورې شوې حدث دروژې دپاره مانع دې. لهذا ترکومې پورې چه غسل نه وی کړې اود دغه حدث نه نی پاکی نه وی حاصله کړې ترهغې پورې د وړاندې ورځې ورژه هم نه شی ساتلې. اوحدث جنابت د روژې دپاره مانع نه دې په دې وجه به جنبی سړې روژه ساتی. لیکن ددې حضراتو استدلال صَحیح نه دې ځکه چه د ښځې حیض یا نفاس ختم شو نو دغه وخت کښې هغه حائضه یا نفساء پاتې نه شوه. البته د دغه حیض او نفاس د وجې په دې باندې پورې غسل دهغې په ذمه باندې باقی دې اودا غسل د روژې نه مانع نه دې لکه څنګه چه د جنابت د غسل معامله ده. که چرې جماع په روژه کښې واقع شوې ده نو په دې سره به روژه فاسدیږی ځکه چه جماع د حیض په شان د روژې نه منافی ده. خوکه جماع د سحر د راختو نه وړاندې شوې ده اود دغه جماع په وجه لازم شوې غسل ئی د سحر د راختونه پس اوکړو نو ددې په وجه به د روژې په صحت باندې هیڅ اثر نه پریوځی ځکه چه داغسل د روژې نه مانع نه دې. بَل زمونږ استدلال د قرآن کریم آیت ﴿فَالْـَٔنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ ۖ وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ﴾ نه دې نوچه کله الله تعالی مباشرت د سحر د راختو پورې مباح ګرځولې دې. نولازمی نتیجه داده چه غسل به د طلوع فجر نه پس وی.[3]

**د مذکوره تعلیقاتو مقصد:** دمذکوره تعلیقاتو نه معلومیږی چه د امام بخاری رحمه الله مقصد تمییز بالالوان غیر معتبر کیدل ښانی. لهذا د اقبال کیفیت به داشی چه په خپل وخت کښې رنګین رطوبت راشی اوکله دا رنګین رطوبت ختم شی نودا د ادبار سلسله ده. د الوان یعنی رنګ اعتبارنشته چه هم دتور او سور رنګ اعتبار به کولې شی لکه چه د شوافع حضراتو مذهب دې. ددې حضراتو استدلال د سنن ابی داؤد روایت دې په کوم کښې چه دی: «**إنه دم أسود يعرف فإذا كان ذلك فأمسكى عن الصلاة**» یعنی دحیض د وینې رنګ تور وی کوم چه پیژندلې شی.[4] لیکن احناف (کثرالله سوادهم) د رنګونو په مینځ

---

[1]) بدائع الصنائع: ۵۹۷/۱دارالکتب العلمية.

[2]) المدونة الكبرى: ۲۰۷/۱دار صادر. حاشية الدسوقي على الشرح الكبير:۱۴۹/۲-۱۴۸دارالکتب العلمية. المغنى لابن قدامة: ۳۷/۳- ۳۶دارالفكر. المجموع شرح المهذب:۳۰۷/۶إدارة الطباعة المنيرية.

[3]) المجموع شرح المهذب:۳۰۸/۶۶-۳۰۷إدارة الطباعة المنيرية المغنى لابن قدامة:۳۷/۳-۳۶دارالفكر. التوضيح: ۱۰۶/۵شرح ابن بطال: ۴۴۶/۱ عمدة القاري:۲۲۹/۳..

[4]) سنن أبي داؤد كتاب الطهارة باب إذا أقبلت الحيضة تدع الصلاة رقم الحديث: ۲۸۶.

كښې ددې فرق قائل نه دی اوددې روايت په جواب كښې احناف دا وائی چه «دم أسود يعرف» كليه ده كه جزئيه؟ كليت مونږ نه تسليم كوو او جزئيت زمونږ دپاره تسليم كول مضر نه دی. دكليت د نه تسليم كولو مطلب دادې چه دهرې ښځې وينه دې توره وی ښكاره خبره ده چه داسې نه وی. كه چرې د ښځې مزاج معتدل وی او خوراك ئې هم معتدل وی او آب وهوا هم معتدل وی نوتجربه ګواه ده چه د حيض رنګ به ئې سور وی اوكه چرې ګرمو هواګانو ګرم خوراكونه يا د مزاج ګرمانش او د مزاج د خرابوالی د وجې نه احتراقی كيفيت پيدا شوې وی نوډ وينې رنګ به تور بخن وی. او په كومو ملكونو كښې چه يخنی ډيره وی نوهلته د وينې رنګ بالكل سور كيدل هم ضروری نه دی. يا فرض كړه ښځه سبزی ډيره استعمالوی اومعده طاقت ئې كمزورې دې نوچه څنګه په براز كښې مختلف رنګونه ښكاره كيږی دغه شان به د خوراك اجزاء هم په خوراك كښې شامل شی اوقسم قسم رنګونه په ښكاره كيدل شروع شی. په دې وجه داحنافو په نيز په رنګونوباندې د حيض مدار نه دې. البته كه يوې ښځې ته دعادت موافق داخبره معلومه ده چه دهغې دحيض رنګ تور وی يا سور وی نوچونكه اصل څيز عادت دې نو په داسې صورت كښې رنګ معتبرګرځولې شی خو بيا هم مدار عليه نه شی ګرځولې كيدې.

د «فإنه دم أسود يعرف» هم دا مطلب دې چه دا يوه جزئيه ده په بعض حالاتو كښې دمعرف په درجه كښې ددې هم اعتبار كولې شی. بهرحال ددې آثارونه معلوميږی چه په دې مسئله كښې امام بخاری رحمه الله داحنافو ملګرتيا كړې ده.[1]

**مذكوره تعليق اوترجمة الباب كښې مناسبت:** ددې تعليق ترجمة الباب سره مناسبت دادې چه په ترجمة الباب كښې اقبال يعنی راتلل او ادبار يعنی دحيض آخر ذكركړې دې او په تعليق كښې هم دښځو خپل خپل كرسف كتل هم په دې غرض سره وو چه هغوی ته دحيض ختميدل اود طهريعنی پاكوالی شروع كيدل معلوم شی.[2]

(حدثنا عبدالله بن محمد، قال حدثنا سفيان، عن هشام، عن أبيه.......)

## تراجم رجال الحديث

**عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفر عبدالله بن محمد بن عبدالله بن جعفر اليمان بن اخنس جعفی بخاری مسندی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات كتاب الإيمان باب أمور الدين لاندې تيرشوی دی.[3]

**سفيان:** دا سيان بن عيينه بن ميمون، ابومحمدالكوفی رحمه الله دې. ددوی مختصر حالات بدء الوحی رومبې حديث لاندې او تفصيلی حالات كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا الخ لاندې تيرشوی دی.[4]

**هشام:** داد عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله ځوئی دې. د دوی مختصر حالات بدء الوحی دويم حديث لاندې[5] اوتفصيلی حالات كتاب الإيمان باب أحب الدين إلی الله أدومه لاندې تيرشوی دی.[1]

---

[1] إيضاح البخاری: ۱۱/۱۲۵-۱۲٤.

[2] عمدة القاری: ۳/٤٤۲.

[3] كشف الباری: ۱/٦۵۷.

[4] كشف الباری: ۱/۲۳۸، ۳/۱۰۲.

[5] كشف الباری: ۱/۲۹۱.

**عروة**: داعروة بن الزبير بن العوام رحمه الله دي. د دوی مختصر حالات بدءالوحي دویم حدیث لاندې (۲) او تفصیلي حالات کتاب الایمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تیرشوی دی. (۳)

**عائشة**: داام المؤمنین سیده عائشه بنت ابی بکر الصدیق رضي الله عنهما ده. ددوی حالات بدءالوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی. (۴)

## شرح حدیث

په دې روایت باندې تفصیلي کلام باب الاستحاضه لاندې تیرشوی دی.

**مستحاضه سره متعلق درواياتود اختلاف وجه**: داروایت مخکښې «کتاب الوضوء باب غسل الدم» لاندې هم تیرشوی دی چرته چه د روایت الفاظ دا وو. «وإذا أدبر فاغسلي عنك الدم وصلي» یعنی غسل واجب اونه ګرځولې شو. ددې نه پس حضرت عروه بن زبیر رحمه الله فرمائی «ثم توضيء لكل صلاة» دلته داودس وجوب ذکر دې او په حدیث باب کښې «فاغتسلي وصلي» الفاظ دی په کوم کښې چه دغسل د وجوب حکم ذکر دی. نوسوال داپیداکیږی چه د مستحاضه په مسئله کښې درواياتو دااختلاف ولې دې؟ جواب دادې چه څنګه دمستحاضه احوال مختلف وی هم هغه شان روایات هم مختلف دی اود مستحاضه د مختلفو احوالو سره متعلق دی.

دویمه خبره دا چه غسل او اودس واجب ګرځول اودهغې تذکره کول ددې وجوب غسل او وجوب وضو د نه ذکرکولومنافی نه دی. مطلب دادې چه د وجوب غسل او وجوب وضو ذکر اوددې دواړو د عدم ذکرپه مینځ کښې تضاد اومنافات نشته دې. دغسل او اودس وجوب په خپل ځائی باندې ثابت دې سره ددې چه په بعض روایاتوکښې د دې ذکر موجودنه دی. دمنافاتو اوتضاداتو خبره به هغه وخت وه کله چه په یوروایت وجوب دغسل اووجوب وضو خبره وه او په بل روایت کښې دعدم وجوب تذکره وه.

**یواشکال اودهغې جواب**: بل دا اشکال دې نه وی چه دحدیث الفاظ «فاغتسلي وصلي» سره دهرمونځ دپاره دغسل تکرار مفهوم کیږی ځکه چه صرف هم یوځل غسل کول کافی کیږی. اوترکومې چه دام حبیبه رضي الله عنها تعلق دې چه هغې به دهرمونځ دپارغسل کولو (دمستحاضه کیدو د وجې نه) نوکیدې شی چه هغه د مستحاضاتو دهغه قسم نه وه په چاچه په هرمونځ کښې غسل کول واجب وی. امام شافعی فرمائی چه حضورپاك صرف دغسل کولو او د مونځ کولوحکم ارشاد فرمائیلې وو په هغه حکم کښې داخبره نه وه چه دهرمونځ دپاره غسل کول دی او زما خیال دادې چه دام حبیبه رضي الله عنها دهر مونځ دپاره غسل کول وجوبی نه وو بلکه نفلی او استحبابی وو. د کوم چه هغې ته حکم نه وو ورکړې شوې. (۵)

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: حدیث اوترجمة الباب کښې مناسبت بالکل واضح دې چه په دواړو کښې داقبال دم او ادبار دم تذکره ده. (۶)

---

(۱) کشف الباري: ۴۳۲/۲.

(۲) کشف الباري: ۲۹۱/۱.

(۳) کشف الباري: ۴۳۶/۲.

(۴) کشف الباري: ۲۹۱/۱.

(۵) شرح الکرماني: ۱۹۲/۳-۱۹۱عمدة القارس: ۴۴۴/۳.

(۶) عمدة القاري: ۴۴۳/۳.

# ۲۰ - باب: لَا تَقْضِي الْحَائِضُ الصَّلَاةَ

**ماقبل سره ربط:** ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه په دواړوابواب کښې دترك صلاة تذكره ده.(۱)

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاري رحمه الله په دې ترجمة الباب سره داخودل غواړي چه حائضه ښځه به نه په ايام حيض کښې مونځ اداکوي اونه به دپاكوالي نه پس د دغه مونځونوقضاء راوړي.(۲)

چنانچه شاه ولي الله رحمه الله فرمائي چه ددې ترجمة الباب مطلب اومعنی داده چه حائضه به مونځ نه اداکوي اونه به د دغه مونځونو روستو بيا قضاء کوي.(۳)

[وَقَالَ جَابِرٌ وَأَبُو سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ: (تَدَعُ الصَّلَاةَ)]. [ر: ۲۹۸، ۶۸۰۳]

**ترجمه:** حضرت جابر اوحضرت ابوسعيد رضي الله عنهما روايت کوي چه حضورپاك ﷺ اوفرمائيل: هغه (حائضه) به مونځ پريږدي.

## تراجم رجال

**جابر:** دا جابربن عبدالله انصاري مشهور صحابي رضي الله عنه دې. د دوی احوال **كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلامن المخرجين من القبل والدبر** لاندې تيرشوي دي.

**أبوسعيد:** دا مشهور صحابي حضرت ابوسيعد سعدبن مالك بن سنان بن عبيدبن ثعلبه خدري رضي الله عنه دې. ددوی حالات **كتاب الإيمان باب من الدين الفرارمن الفتن** لاندې تيرشوي دي.(۴)

**تخريج التعلقين:** امام بخاري رحمه الله ددغه دواړو صحابه كرامو نه داتعليق روايت بالمعنی کړې دې. ترکومې چه دحديث جابربن عبدالله رضي الله عنه تعلق دې نودا امام بخاري رحمه الله ((**كتاب التمني، باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: "لواستقبلت من أمري ما استدبرت" رقم الحديث: ۷۲۳۰**)) لاندې ((**حبيب عن عطاء عن جابر بن عبدالله**)) په طريق سره موصولاً روايت کړې دې. مگر هلته د روايت الفاظ: ((**غيرأنها لاتطوف ولاتصلي**)) نه مراد هم ترك صلاة دې. دغه شان امام مسلم رحمه الله هم ((**أبوالزبيرعن جابر**)) په طريق سره ددې معنې روايت موصولاً ذكركړې دې.(۵) پاتې شوه خبره دحضرت ابوسعيدخدري رضي الله عنه دحديث نوهغه نيزدې ((**باب ترك الحائض الصوم**)) لاندې موصولاً تيرشوې دې. البته دهغه روايت الفاظ: ((**أليس إذا حاضت لم تصل ولم تصم**)) سره نقل دي.(۶)

---

(۱) عمدة القاري: ۴۴۴/۳.

(۲) عمدة القاري: ۴۴۴/۳.

(۳) الأبواب والتراجم: ۶۵ الكنزالمتواري: ۲۸۶/۳.

(۴) كشف الباري: ۸۲/۲.

(۵) عمدة القاري: ۴۴۴/۳.

(۶) صحيح البخاري كتاب الحيض باب ترک الحائض الصوم رقم الحديث: ۳۰۴ فتح الباري: ۴۲۱/۱ عمدة القاري: ۴۴۴/۳.

## د دوارو تعلیقونود ترجمة الباب سره مناسبت:

**د علامه کرمانی رحمه الله رائې:** دلته یو اشکال کیږی چه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب د عدم قضا قائم کړې دې اوتعلیق ئې دترک صلاةٌ سره متعلق نقل کړو، نو په دوارو کښې به دمطابقت څه صورت وی؟ ددې په جواب کښې علامه کرمانی رحمه الله فرمانی چه ترک مطلق دې او ترک ادا کولو ته هم شامل دې اوقضاته هم شامل دې. لهذا په دوارو کښې مناسبت او مطابقت موجود دې اوچونکه ترک اداء صلاة ټولو مسلمانانو ته معلوم او واضح دې په دې وجه هم ترک سره ترجمه قائم کولو کښې څه خاص فائده نه وه.([1])

**دعلامه عینی رحمه الله رائې:** علامه عینی رحمه الله هم نیزدې نیزدې هم دغه جواب ورکړې دې هغوی فرمانی چه عدم قضاء هم دترک یو صورت دې. ترک اعم دې اوعدم قضاء اخص دې. اوچرته چه اخص وی هلته خو اعم وی په دې وجه په دوارو کښې مطابقت موجود دې.([2])

**دعلامه قسطلانی رحمه الله رائې:** علامه قسطلانی رحمه الله فرمانی چه په تعلیق اوترجمة الباب کښې مطابقت دادې چه ترک صلاة عدم قضاء ته مستلزم دې ځکه چه دترک صلاة حکم شارع علیه السلام ورکړې دې. لهذا څنګه د متروك شرع کول جائزنه دی دغه شان به د دې متروك شرع قضاء هم نه وی.([3])

د علامه عینی رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله دکلام حاصل دادې چه ترک اعم دې اوعدم قضا اخص دې. اواعم اخص ته شامل وی. لهذا چرته چه دعدم قضاء تذکره ده هلته ترک خپل پخپله موجود دې.

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه دا علت صحیح نه دې ځکه چه دحیض په حالت کښې روژه نه ساتل هم متروك شرع ده مګر ددې قضا لازم وی. ددې نه معلومه شوه چه د عدم قضاء صلاة دپاره متروك شرع کیدل علت ګرځول صحیح نه دی.([4]) شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمانی چه دامام بخاری رحمه الله دا ترجمهٔ په حقیقت کښې په دوو جزونو باندې مشتمل ده: ① حائضه ښځه به ادا مونځ نه کوی. ② حائضه ښځه به د دغه مونځونو قضاء هم نه کوی. خو چه امام بخاری رحمه الله کوم روایت ذکر کړې دې هغه صرف رومبی جز سره متعلق دې.([5])

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دامام بخاری رحمه الله مقصددا وو چه اول هغه معلق روایت په ذریعه د ترک اداء صلاة باندې استدلال کولو و بیا دحدیث عائشه رضی الله عنها په ذریعه په عدم قضاء باندې هم استدلال کولو. په دې وجه امام بخاری رحمه الله اول معلق روایت پیش کولوسره په ترک ادا باندې استدلال اوکړو ودا ئې حدیث موصول د حدیث عائشه رضی الله عنها د پاره مقدمه جوړکړو چه دترجمة الباب عین موافق دې او په عدم صلاة قضاء باندې دلالت کوی.([6])

بعض حضرات فرمانی چه ددې ترجمة الباب نه د امام بخاری څه خاص مقصد نشته بلکه ترک او عدم قضاء هم دواړه یو دی. اګرچه په ظاهره د امام بخاری رحمه الله په الفاظوسره دوارو کښې تغائرمعلومیږی

---

[1]) شرح الکرمانی: ۳/۱۹۲.

[2]) عمدة القاری: ۳/٤٤٤.

[3]) إرشاد الساری: ۱/۳۵۹-۳۵۸عمدة القاری: ۳/٤٤٤.

[4]) الأبواب والتراجم:۶۵الکنزالمتواری: ۳/۲۸۶.

[5]) الأبواب والتراجم:۶۵الکنزالمتواری: ۳/۲۸۶.

[6]) فتح الباری: ۱/٤۲۱.

مگر په حقيقت کښې په دواړو کښې هيڅ تغاثر نشته دې. او هم په دې وجه په ترجمة الباب کښې په يو باندې اکتفاکړې ده. که چرې په دواړو کښې تغايروې نو په ترجمة الباب کښې به ددواړو طرف ته اشاره کول هم ضروری وې. والله اعلم.[1]

# الحديث الأول

[٣١٥] - حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي مُعَاذَةُ، أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ لِعَائِشَةَ: أَتَجْزِي إِحْدَانَا صَلاَتَهَا إِذَا طَهُرَتْ؟ فَقَالَتْ: أَحَرُورِيَّةٌ أَنْتِ؟ «كُنَّا نَحِيضُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلاَ يَأْمُرُنَا بِهِ» أَوْ قَالَتْ: فَلاَ نَفْعَلُهُ.[2]

**ترجمه:** د حضرت معاذ رضی الله عنها نه روايت دې چه يوې ښځې دحضرت عائشه رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چه کله زمونږ نه يوه ښځه دحيض نه پاکه شي نوآيا هغه به د مونځ قضاکوی؟ حضرت عائشه رضی الله عنها اوفرمائيل ولې ته حروريه ئې؟ په مونږ به دحضورپاك په زمانه کښې حيض راتلو او حضورپاك به مونږ ته د مونځ حکم نه فرمائيلو يائې اوفرمائيل چه مونږ به مونځ نه کولو.

## تراجم رجال

**موسى بن اسماعيل:** دا ابوسلمه بن اسماعيل التبوذکی البصری رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات بدءالوحی کښې د څلورم حديث لاندې[3] اوتفصيلی حالات كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد أوالرأس لاندې تيرشوی دی.[4]

**همام:** داهمام (تشديد سره) بن يحيى بن دينار العوذی الازدی العدوی رحمه الله دې. ددوی کنيت ابوعبدالله دې اودبعض حضراتو قول دادې چه ددوی کنيت ابوبکرالبصری دې.[5]

دوی د عطاء بن ابی رباح، اسحاق بن ابی طلحه، زيد بن اسلم، ابوجمره الضبعی، قتاده، محمدبن جحاده، ابو التياح الضبعی، نافع مولی ابن عمر، ابوعمران الجونی، انس بن سيرين، زياد بن سعد، ثابت البنانی، زيادالاعلم، يحيى بن ابی کثير، حسين المعلم او ابن جريج رحمهم الله وغيره نه دحديث روايت کوی.

ددوی نه سفيان ثوری رحمه الله، عبدالله بن المبارك رحمه الله، ابنعليه رحمه الله، وکيع بن مهدی رحمه الله، بشير بن السری رحمه الله، عبدالصمدبن عبدالوارث رحمه الله، ابوسعيدمولی بنی هاشم رحمه الله، احمدبن اسحاق رحمه الله

---

[1]) عمدة القاري: ٣/٤٤٤.

[2]) قوله: عائشة: الحديث، رواه الإمام مسلم فی كتاب الحيض باب وجوب قضاء الصوم على الحائض دون الصلاة، رقم الحديث: ٧٦٣-٧٦١والإمام الترمذی فی الطهارة باب ماجاء فی الحائض أنها لاتقضی الصلاة. رقم الحديث: ١٣٠والإمام أبوداؤد فی الطهارة باب الحائض لا تقضی الصلاة، رقم الحديث:٢٦٣-٢٦٢والإمام النسائی فی كتاب الحيض باب سقوط الصلاة عن الحائض، رقم الحديث: ٣٨٢والإمام ابن ماجة فی الطهارة باب الحائض لا تقضی الصلاة، رقم الحديث: ٦٣١جامع الأصول فی أحاديث الرسول: ٣٥٦/٧.

[3]) كشف الباري:١/٤٣٣.

[4]) كشف الباري:٣/٤٧٧.

[5]) تهذيب التهذيب: ١١/٦٠دارالفكر،عمدة القاري: ٣/٤٤٥ إرشادالساري: ١/٣٥٩.

خضرمي رحمه الله، حبان بن هلال رحمه الله، يزيدبن هارون رحمه الله، ابوعلي الحنفي رحمه الله، ابوداؤد طيالسي رحمه الله، ابوالوليد طيالسي رحمه الله، عمرو بن عاصم رحمه الله، حجاج بن المنهال رحمه الله، عبدالله بن رجاء الغدافي رحمه الله، ابو نعيم، رحمه الله موسى بن اسماعيل رحمه الله، هدبه بن خالد رحمه الله او شيبان بن فروخ رحمه الله روايت حديث كړې.([1])

يزيدبن هارون رحمه الله فرمائي «كان همام قوياً في الحديث»([2]) امام احمدبن حنبل فرمائي: «ثبت في كل المشايخ» نور فرمائي «كان عبدالرحمن يرضاه» چنانچه عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائي: «همام عندي في الصدق مثل ابن أبي عروبة» ([3])

دغه شان ابن محرز، امام احمدبن حنبل رحمه الله نه نقل كوى «همام ثقة وهو أثبت من أبان العطار في يحيى بن أبي كثير» يعنې همام يو ثقه راوى دې اوهغه دخپل شيخ يحيى بن ابى كثير رحمه الله نه روايت كولوكښې د ابان العطار په نسبت زيات معتبردې.([4])

ابن معين رحمه الله فرمائي «ثقة صالح وهو أحب إلي في قتادة من حماد بن سلمة» يعنې مام رحمه الله يو پرهيزګاره ثقه راوى دې اوحضرت قتاده رحمه الله نه روايت كولوكښې دحماد بن سلمه رحمه الله په نسبت زما زيات خوښ دې.([5]). په يوه بله موقع باندې فرمائي «همام في قتادة أحب إلي من أبي عوانة» يعنې همام دحضرت قتاده رحمه الله نه روايت كولوكښې ماته د ابوعوانه رحمه الله په نسبت هم زيات خوښ دې.([6]).

عبدالله ابن المبارك رحمه الله فرمائي: «همام ثبت في قتادة» ([7])عمرو بن على رحمه الله فرمائي: «الأثبات من أصحاب قتادة: ابن أبي عروبة وهشام وشعبة وهمام» ([8])ابن حبان رحمه الله دهغوى ذكر كتاب الثقات كښې كړې دې.([9]) امام ابوزرعه رحمه الله فرمائي: «لابأس به» ([10])امام عجلى رحمه الله فرمائي: «بصري ثقة»([11]) امام حاكم رحمه الله فرمائي: «ثقة حافظ»([12])

البته يحيى بن سعيد رحمه الله دهمام بن يحيى رحمه الله روايات نه قبلول اونه دهغوى په نيزد هغوى د رواياتو څه اهميت وو. چنانچه يحيى بن سعيد رحمه الله د همام بن يحيى رحمه الله باره كښې نقل كړى دى:

① محمدبن عبدالله بن عمار، د يحيى بن سعيدنه نقل كوى: «ألا تعجب من عبدالرحمن يقول: من فاته شعبة سمع من همام» دې نه پس محمدبن عبدالله رحمه الله فرمائي: «كان يحيى لايعبأ بهمام».

---

[1]) تلامذه اومشائخ دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال: ۳۰/۳۰۳-۳۰۲ سير أعلام لنبلاء: ۲۹۷/۷.
[2]) تهذيب الكمال: ۳۰۴/۳۰ تهذيب التهذيب: ۶۸/۱۱ سير أعلام لنبلاء: ۲۹۸/۷.
[3]) تهذيب الكمال: ۳۰۴/۳۰ تهذيب التهذيب: ۶۸/۱۱ سير أعلام لنبلاء: ۲۹۸/۷.
[4]) حواله بالا.
[5]) حواله بالا
[6]) حواله بالا
[7]) تهذيب الكمال: ۳۰/۳۰۸ تهذيب التهذيب: ۶۹/۱۱ سير أعلام لنبلاء: ۳۰۰/۷.
[8]) تهذيب الكمال: ۳۰۸/۳۰ تهذيب التهذيب: ۶۹/۱۱ سير أعلام لنبلاء: ۳۰۰/۷.
[9]) ۵۸۶/۷.
[10]) تهذيب الكمال: ۳۰۹/۳۰ تهذيب التهذيب: ۶۹/۱۱ سير أعلام لنبلاء: ۳۰۰/۷ الجرح والتعديل: ۱۳٤/۹.
[11]) معرفة الثقات للعجلي: ۳۳۵/۲.
[12]) تهذيب التهذيب: ۷۰/۱۱.

② په يوه موقع باندې ابرهيم بن عرعره رحمه الله يحيى بن سعيد ته اووئيل: «حدثنا عفان، دثنا همام» ابراهيم بن عرعره رحمه الله هم دومره وينا کړې وه چه يحيى بن سعيد رحمه الله هغه اورتلو وئې وئيل: «اسکت ويحك» [1]

ليکن دې سره سره دا هم نقل دی چه يوخل داسې اوشو چه ابن ابی عدی رحمه الله «ابن أبی عروبة عن قتادة» په طريق سره يو حديث بيان کړو نو يحيى بن سعيد رحمه الله دا روايت قبول نه کړو. هم په دغه مجلس کښې عفان رحمه الله هم ناست وو هغوی اووئيل: «حدثنا همام عن قتادة» اوبيائې هم دغه روايت بيان کړو مګر دې ځل يحيى بن سعيد رحمه الله خاموش پاتې شو او په سند باندې هيڅ نکير اونه فرمائيلو. راوی وائی مونږ په دې ډير حيران شو چه د «ابن أبی عروبة عن قتادة» باندې خو ئې نکير اوفرمائيلو او «همام عن قتادة» په طريق باندې خاموش شو. [2] هم په دې باندې علامه ذهبی رحمه الله فرمائی چه ددې نه معلوميږی چه سره ددې چه يحيى بن سعيد رحمه الله د همام بن يحيى رواياتو سره اتفاق نه کولو مګر آخر دهغوی رائې د همام رحمه الله باره کښې بدله شوې وه. او يا بيا د خاموشئ اختيارولو سبب دا وو چه هغه د همام او ابن ابی عروبة دوارو اتفاق کتلو سره مطمئن شوې وو. [3] هم دغه شان د عفان رحمه الله نه نقل دی چه يحيى بن سعيد رحمه الله به د همام بن يحيى رحمه الله په رواياتو باندې اکثر اعتراض کولو خوچه بيا کله دمعاذ بن هشام آمد اوشو اومونږ دهغه کتاب اوکتلو نو په هغې کښې ئې دهغه رواياتونه اکثر دهمام موافق اوليدل په کومو چه به يحيى بن سعيد رحمه الله نکير کولو. نو چه کله نه يحيى بن سعيد رحمه الله ته دا معامله معلومه شوه نو هغوی په همام بن يحيى باندې کلام کول پريخودل. [4]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه د يحيى بن سعيد رحمه الله د همام بن يحيى رحمه الله رواياتو نه قبلولو وجه داوه چه د ځوانئ په عمر کښې يحيى بن سعيد رحمه الله په څه مسئله کښې ګواهي ورکړې وه مګر همام بن يحيى رحمه الله چه هغه وخت د قضاء په عهده باندې وو د يحيى بن سعيد رحمه الله د ګواهئ په حواله سره تعديل نه وو کړې. نو ددې خبرې د وجې نه يحيى بن سعيد رحمه الله په همام بن يحيى رحمه الله باندې کلام کول شروع کړه او د همام بن يحيى رحمه الله روايات به ئې هم نه قبلول. [5] هم دغه وجه ده چه عبد الرحمن بن مهدی رحمه الله فرمائی «ظلم يحيى بن سعيد همام بن يحيى، لم يكن له به علم ولا مجالسة، فقال فيه» [6]

خو ددې ټولو باوجود بعض ائمه نه دهغه د حافظې متعلق کلام موجود دې. چنانچه د ابوحاتم رحمه الله نه کله د همام او ابان العطار باره تپوس اوکړې شو چه په دوی کښې کوم يو مقدم دې؟ نو هغوی په جواب کښې اوفرمائيل «همام أحب إلی ما حدث من كتابه وإذا حدث من حفظه، فهما متقاربان في الحفظ والغلط» دغه شان

---

[1] تهذيب الكمال: ۳۰۸/۳۰ تهذيب التهذيب: ۶۹/۱۱.

[2] تهذيب الكمال: ۳۰۸/۳۰ تهذيب التهذيب: ۶۹/۱۱.

[3] سير أعلام النبلاء: ۲۹۹/۷.

[4] تهذيب الكمال: ۳۰۸/۳۰ تهذيب التهذيب: ۶۸/۱۱ سير أعلام لنبلاء: ۲۹۸/۷ الجرح والتعديل: ۱۳۳/۹.

[5] تهذيب الكمال: ۳۰/۳۰۸ سير أعلام لنبلاء: ۳۰۰/۷.

[6] تهذيب التهذيب: ۷۰/۱۱ سير أعلام لنبلاء: ۲۹۹/۷.

يزيد بن زريع رحمه الله فرمائي «همام حفظه رديئ وكتابه صالح» [1] ابن سعد رحمه الله فرمائي «كان ثقة، وبما غلط في الحديث» [2] ساجي فرمائي «صدوق سيئ الحفظ، ماحدث من كتابه فهو صالح وماحدث من حفظه فليس بشيء» [3]
ددې وجه دا وه چه همام بن يحيى رحمه الله به کتلوسره روايات نه نقل کول اونه به ئې روستو دخپل کتاب طرف ته رجوع کوله، خو چه کله هغه د يوې زمانې نه پس دخپل کتاب طرف ته رجوع اوکړه نوونې فرمائي «كنا نخطئ كثيراً فنستغفر الله تعالى» چنانچه عفان رحمه الله فرمائي «كان همام لا يكاد يرجع إلى كتابه ولا ينظر فيه وكان يخالف فلا يرجع إلى كتابه ثم رجع فنظر في كتبه، فقال: يا عفان! كنا نخطئ كثيراً فنستغفر الله تعالى» [4]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ددې تقاضاداده چه د همام بن يحيى رحمه الله هغه روايات چه د هغه نه په آخره کښې روايت کړې شوی دی هغه د هغه د پخوانو رواياتو په مقابله کښې زيات صحيح دی. [5]
لکه چه دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه په دې باندې نص هم موجود دې هغوی فرمائي: «ومن سمع من همام بآخرة، فهو أجود، لأن هماماً أصابه في آخر عمره زمانة، فكان يقرب عهده بالكتاب، فكان قل ما يخطئ» [6]
الحاصل همام بن يحيى رحمه الله يوثقه راوي دې اودهغوی په ثقاهت کښې د چاهم اختلاف نشته دې. هم دغه وجه ده چه ارباب صحاح سته دهغه درواياتو تخريج کړې دې. [7]
دهغوی تاريخ وفات کښې درې اقوال دی: ① امام بخاري رحمه الله د محمدبن محبوب نه دهغوی وفات ۱۶۳هجری نقل کړې. ② ابن حبان رحمه الله فرمائي دهغوی انتقال درمضان په مياشت کښې ۱۶۳هجری يا ۱۶۴هجری کښې شوې دې. ③ ابن النعمان رحمه الله فرمائي چه زما بصرې ته په راتلو کښې ۱۶۴يا ۱۶۵هجری کښې شوې وو اوزما د راتګ نه يوه هفته يا دوه هفتې وړاندې همام بن يحيى رحمه الله انتقال شوې وو. [8]
**قتادة**: دا قتاده بن دعامه بن قتاده بن عزيز سدوسي بصري رحمه الله دې. د دوی کنيت ابوالخطاب وو اودې د مور نه ړوند پيداشوې وو. ددوی تفصيلي حالات كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه لاندې تيرشوی دی. [9]
**معاذة**: دامعاذه بنت عبدالله العدويه البصريه رحمها الله ده. ددې کنيت ام الصهباء دې اودا د صله بن اشيم بي بي وه. [10] هغې دحضرت عائشه، حضرت علي، هشام بن عامر، ام عمرو بنت عبدالله بن الزبير رضي الله عنهم نه د حديث روايت کړې اود دې نه ابوقلابه، حضرت قتاده، يزيد الرشك، ايوب، عاصم

---

[1] تهذيب الكمال: ۳۰/۳۰۹ تهذيب التهذيب: ۱۱/۶۹ سير أعلام لنبلاء:۷/۳۰۰.
[2] تهذيب الكمال: ۳۰/۳۰۹ تهذيب التهذيب: ۱۱/۶۹ سير أعلام لنبلاء:۷/۳۰۰.
[3] تهذيب التهذيب: ۱۱/۷۰.
[4] تهذيب التهذيب: ۱۱/۷۰.
[5] تهذيب التهذيب: ۱۱/۷۰.
[6] الإكمال في تهذيب الكمال: ۱۲/۱۶۸.
[7] سير أعلام النبلاء: ۷/۳۰۱.
[8] تهذيب الكمال: ۳۰/۳۱۰ تهذيب التهذيب: ۱۱/۷۰ سير أعلام لنبلاء:۷/۳۰۱كتاب الثقات لابن حبان: ۷/۵۸۶.
[9] كشف الباري: ۲/۳.
[10] تهذيب الكمال: ۳۵/۳۰۸ تهذيب التهذيب: ۱۲/٤۰۱ دار الفكر. عمدة القاري: ۳/٤٤٥.

الاحول، سليمان بن عبدالله بصري، اسحاق بن سعيد او ام الحسن «د ابوبكر غدوى نيا» رحمهم الله وغيره حديث روايت كوى. ([1])

ابن معين رحمه الله فرمائى «ثقة صالح» ([2]) ابن حبان رحمه الله د دې ذكر كتاب الثقات كښې كړې دې. ([3])

حضرت معاذه بنت عبدالله ډيره عبادت كونكې ښځه وه. شپې به ئې د الله تعالى په عبادت كښې تيرولې. ددې باره كښې تردې پورې وئيلې شوى دى چه دا دخپل خاوند ابوالصهباء صله بن اشيم د انتقال نه پس كله هم نه ده اوده شوې. ([4])

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې د كرامت يوه واقعه نقل كولوسره ليكى چه د بصرې د يوشيخ ابو بشر وينا ده چه زه حضرت معاذه رحمها الله له راغلم نوهغې ماته دخپلې خيټې شكايت اوكړو اوونې خودل چه د دوائى دپاره راته نبيذالحر تجويز كړې شوې دى. شيخ فرمائى چه ما د دغه نبيذ يوه پياله راوړله اوهغې ته مې وړاندې كړه. نو هغې د الله تعالى نه دعااوكړه چه اې الله تاته ته ده كه حضرت عائشه رضي الله عنها ماته دا حديث فرمائيلې دې چه رسول الله ﷺ د نبيذ الحر نه منع فرمائيلې ده نوبيا ما ددې نه لرې اوساته. شيخ فرمائى چه دحضرت معاذه دعاكول وو اوهغه پياله د هغې نه اخوا شوه او څه چه په هغې كښې وو هغه ټول پريوتل او الله تعالى د هغې شكايت هم لرې كړو. ([5])

حضرت معاذه رحمها الله به وئيل «صحبت الدنيا سبعين سنة فما رأيت فيها قرة عين قط» ([6]) دحضرت معاذه رحمها الله انتقال په ۸۳هجرى كښې شوې. ([7])

## شرح حديث

**قوله: أن امرأة**: همام بن يحيى رحمه الله د سوال كونكې ښځې تصريح نه ده كړې بلكه دائې مبهم پريخودې. مگر شعبه رحمه الله په خپل روايت كښې عن قتاده په طريق سره ددې خبرې تصريح كړې ده چه سائله هم دغه معاذه بنت عبدالله عدويه رحمها الله ده اوددې روايت تخريج اسماعيلى رحمه الله هم كړې دې. دغه شان امام مسلم رحمه الله هم عاصم عن قتاده په طريق سره او د يزيد عن معاذه په طريق سره دحضرت معاذه بنت عبدالله رحمها الله د سائله كيدو تصريح كړې ده. ([8])

د امام مسلم رحمه الله د روايت الفاظ دادى: «.....عاصم عن معاذة قالت: سألت عائشة رضي الله عنها فقلت: مابال الحائض تقضي الصوم ولا تقضي الصلاة؟ فقالت: أحرورية أنت؟ قلت: بحرورية، ولكنى أسأل. قالت: كان يصيبنا ذلك، فتؤمر بقضاء الصوم ولا تؤمر بقضاء الصلاة» ([9])

---

[1]) تهذيب الكمال: ۳۰۸/۳۵ تهذيب التهذيب: ۴۰۱/۱۲ دارالفكر.

[2]) حواله بالا.

[3]) ۴۶۶/۵.

[4]) تهذيب الكمال: ۳۰۶/۳۵ تهذيب التهذيب: ۴۰۱/۱۲ دارالفكر.

[5]) تهذيب التهذيب: ۴۰۱/۱۲ دارالفكر.

[6]) كتاب الثقات لابن حبان: ۴۶۶/۵.

[7]) عمدة القارى: ۴۵/۳ شرح الكرمانى: ۱۹۳/۳.

[8]) فتح البارى: ۴۲۲/۱-۴۲۱ عمدة القارى: ۴۵/۳ إرشادالسارى: ۳۵۹/۱ التوشيح للإمام السيوطى: ۴۱۷/۱.

[9]) كتاب الحيض باب وجوب قضاء الصوم على الحائض دون الصلاة، رقم الحديث: ۷۶۳.

**قوله:: أتجزي:** تجزي: د تاء فتحه زاء كسره او آخره كښې ياء بغيرهمزه سره، اوبعض حضر اتو په آخره كښې همزه هم روايت كړې دې او په دواړو صورتونوكښې د "تقضى" په معنى كښې دې اودغه شان به "إحداناٴ" د تجزي دپاره فاعل شى او صلاتها به دمفعول كيدود وجې نه منصوب وى اومطلب دادې چه آيا مونږ به د پاكيدونه پس د خپلو مونځونو قضاء كوو؟ دغه شان دا لفظ "تجزء" دتاء په ضمه او په آخره كښې د همزه په ضمه سره هم روايت كړې شوې دې او په داسې صورت كښې به دا د "تكفى" په معنى كښې شى. (١)

مګر علامه برماوى رحمه الله په دې باندې رد كولوسره فرمائى چه په دغه ورخوكښې ښځو مونځ نه كوى بيا به دهغې دكافى كيدو سوالې ولې كولې شو؟ مګرحافظ ابن حجر رحمه الله او نورو حضراتو "تكفى" په صورت كښې ددې جملې معنى داسې بيان كړې ده. «تكفى المرأة الصلاة الحاضرة وهى طاهرة ولا تحتاج إلى قضاء الفائتة فى زمن الحيض؟» يعنى اوس به د طهردحالت مونځونه كافى شى اود حيض په حالت كښې دفوت شوې مونځونو د قضاء حاجت به پاتې نه شى؟ ددې معنى په اعتبارسره "تجزء" په معنى "تكفى" لوستل به صحيح شى او په دې صورت كښې به صلاتها د فاعل كيدو د وجې نه مرفوع شى ليكن مشهوره هم دغه ده چه دا لفظ "تجزي" دتاء فتحه زاء كسره سره اولوستلې شى. (٢)

**قوله:: أحرورية أنت؟** الحروري: حروراء (د حاء فتحه راء ضمه سره اود واؤ ساكنه نه پس بيا راء ده) طرف ته منسوب دې. دا لفظ الف ممدوده سره اود الف ممدوده نه بغير دواړه شان لوستلې شوې دې. مګر زيات مشهور الف ممدوده سره دې. (٣)

امام مبرد رحمه الله فرمائى چه حروراء طرف ته نسبت كولوسره حروراوى لوستل پكاردى اوهم دغه دهريوهغه لفظ دپاره قاعده ده دكوم په آخره كښې چه الف ممدوده وى ليكن ددې باوجود چه حرورى ونيلې شوې دې نوهغه زوائد حذف كولو سره وئيلې شوى دى. (٤)

حروراء دكوفې نه دوه ميله فاصله باندې واقع د يوكلى نوم دې. هم ددې كلى نه دټولو نه اول د خوارج فتنه راښكاره شوې وه. هروى رحمه الله فرمائى چه خوارج هم دلته راغلې وو او اسيدل ئې شروع كړې وو. اوهغوى په كافى شميركښې وو. په دې وجه ددغه خارجيانوته ددې ځائې په نسبت سره حورى ونيلې كيدل. نو چونكه د حرورية نه مراد خوارج دى په دې وجه دحضرت عائشه رضي الله عنها د كلام معنى داشوه «أخارجة أنت؟» يعنى ولې ته خارجيه يئې؟ ځكه چه خوارج په حائضه باندې دهغه مونځونو قضاء هم واجب ګرځوى كوم چه ددې نه په ايام حيض كښې فوت شوې وى اود خوارج دا مسئله د اجماع امت خلاف ده. (٥) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د خوارج په شان عقيده لرونكې هرسړې حرورى يادېږى

---

(١) فتح البارى: ٤٢٢/١ عمدة القارى: ٤٤٥/٣ شرح الكرمانى: ١٩٣/٣ منحة البارى: ٦٥٠/١.

(٢) فتح البارى: ٤٢٢/١ عمدة القارى: ٤٤٥/٣.

(٣) فتح البارى: ٤٢١/١ التوضيح: ١٠٩/٥ شرح الكرمانى: ١٩٣/٣ منحة البارى: ٦٥٠/١ عمدة القارى: ٤٤٦/٣.

(٤) فتح البارى: ٤٢١/١.

(٥) التوضيح: ١٠٩/٥ شرح الكرمانى: ١٩٣/٣ فتح البارى: ٤٢١/١ عمدة القارى: ٣/٤٤٦ منحة البارى: ٦٥٠/١ إرشاد السارى: ٣٥٩/١.

ځکه چه د خوارج فتنه چاچه دحضرت علي رضي الله عنه خلاف د بغاوت جهنډا اوچته کړه اول هم ددغه ښار حروراء نه اوچته شوې وه اوهم په دې نسبت سره دغه خلقو ته حروري هم وئيلې کيږي.(١)

د خوارجو ډير لوئي لوئي فرقې دي اوټول په دې عقيده باندې متفق دي چه صرف اوصرف قرآني احکام اخستل دي او احاديث وغيره مطلقاً نه اخستل. اودا خلق په حائضه باندې دمونځونو قضاء هم واجب ګرځوي ځکه چه په دې باره کښې قرآن کريم خاموش دې. اودعدم قضاء حکم د احاديثو نه مستنبط دې اواحاديث داخلق د سر نه مني نه. (٢)

او هم ددې وجې نه حضرت عائشه رضي الله عنها د استفهام انکاري په توګه سائله (حضرت معاذه) ته اووئيل ولې ته خارجيه يئې؟ ځکه چه هم دغه هغه خلق کښې داهل حق نه جداشوي دي اود سنت مکمل مخالفت کوي. چونکه دحضرت معاذه بنت عبدالله د سوال کولوپه انداز کښې څه ناڅه انکار او په دې حکم باندې دحيرانتيابوئي وو. په دې وجه حضرت عائشه رضي الله عنها په سختئي سره جواب ورکړو. خوچه کله حضرت معاذه بنت عبدالله تصريح اوکړه چه نه، نه زه د دغه ډله نه هيڅ کله نه يم اونه ما د څه عناد دوجې نه دا سوال کړې دې بلکه ماخو صرف دعلم دطلب په غرض سره ددې مسئلې تپوس کړې دې. لکه څنګه چه د صحيح مسلم د روايت په حواله اوس نيزدې تير شو نو حضرت عائشه رضي الله عنها ددې خبرې نه پس پوهه شوه چه او واقعي دابنځه د دليل طلبګاره ده. نو بيا هغې هم د دليل په توګه د رسول الله صلى الله عليه وسلم عملي ژوند پيش کولوباندې اکتفا اوکړه اودڅه قسم علت ئې هم بيان نه کړو.(٣)

**دحضرت عائشه رضي الله عنها په عدم قضاء صلوات باندې استدلال:** د روايت نه معلوميږي چه حضرت عائشه رضي الله عنها په عدم قضاء صلوات باندې دحضورپاک دطرف نه د قضا حکم نه کيدو سره استدلال کړې دې اوهم په دغه استدلال باندې هغوی اکتفاکړې ده. علامه ابن دقيق رحمه الله فرمائي چه په دې استدلال کښې دوه احتمالات دي:

① رومبې احتمال دادې چه حضرت عائشه رضي الله عنها دعدم قضاء صلوات حکم ددې خبرې نه اخذ کړوچه ادا خو ساقط ده لهذا قضا به هم ساقط وي په دې شرط چه ددې په مقابله کښې څه معارض نه وي لکه چه د روژې ادا ساقط ده مګر قضا ساقط نه ده ځکه چه د روژې په سلسله کښې د وجوب قضا حکم داحاديثو نه ثابت دې.

② دويم احتمال دادې چه پخپله ضرورت ددې خبرې تقاضا کوي چه ددې (مونځونود قضا) په سلسله کښې حکم موجود کيدل پکاردي ځکه چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مبارکه زمانه کښې به هم حيض عارضه پيښيده. خو چه کله ئې ددې باره کښې څه حکم اونه فرمائيلو نودا په دې خبره باندې دال دې چه دمونځونو قضابه واجب نه وي. اوبيا دې خبرې ته نور تقويت په دې خبره سره هم ملاويږي چه دې سره متصل د روژو د قضا حکم ورکړې شوې دې. لکه څنګه چه عاصم عن معاذة طريق سره امام مسلم رحمه الله روايت کړې دې.(٤) اودا دويم احتمال زيات بهتردې.(٥)

---

(١) فتح الباري: ٤٢١/١.

(٢) التوضيح: ١١٠/٥ فتح الباري: ٤٢١/١عمدة القاري: ٤٤٦/٣.

(٣) حواله بالا.

(٤) صحيح الإمام مسلم كتاب الحيض باب وجوب قضاء الصوم على الحائض دون صلاة، رقم الحديث: ٧٦٣.

(٥) التوضيح: ١١٠/٥عمدة القاري: ٤٢١/١.

**دحروريه تعارف:** علامه عيني رحمه الله ليكلي دي چه دحروريه شپږ لوني لوني فرقې اوډلې دی. ① ازارقه ② صفريه ③ نجدات ④ عجارده ⑤ اباضيه ⑥ ثعالبه اوباقي ټول ددې څانګې دی. دې خلقو دحضرت علي رضي الله عنه خلاف بغاوت کړې وو. ددې ټول متفقه عقيده ده چه د حضرت علي رضي الله عنه اوحضرت عثمان رضي الله عنه د براءت اعلان اوکړنی اودا عقيده دهغه خلقو په نيز په هرې يوه نيکئی باندې مقدم ده اوددې عقيدې نه بغيردا خلق تروادونوپورې نه کوی اونه نی ورکوی. دې خلقو دحضرت علي رضي الله عنه خلاف د بغاوت جهنډا هغه وخت اوچت کړې وه کوم وخت چه حضرت علي رضي الله عنه ابوموسی اشعري رضي الله عنه او حرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د خپل طرف نه حکم مقرر کړې وو خکه چه دغه خلق په دې فيصله باندې راضی نه وو اودې خلقو وئيل «شككت في أمرالله وحكمت عدوك» اودغه شان دا جګړه اوږده شوه اوچه کله د هغوی شمير اته زره ته اورسيدونودې خلقو بغاوت اوکړو. ددوی امير ابن الكواعبدالله وو. ددې په کتو سره اول حضرت علي رضي الله عنه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وراوليګلوچه داخلق پوهه کړې. ابن عباس رضي الله عنهما هغه خلقو له لاړو خبرې اترې ئې ورسره اوکړې اود خوارج نه دوو زرو کسانو توبه ويستله او رجوع ئې اوکړه. باقي چه کوم شپږ زره پاتې شوې وو نوبيا پخپله حضرت علي رضي الله عنه دهغوی طرف ته روان شو اوهغوی سره ئې جنګ اوکړو. (١)

شراح ليکلی دی چه دحضرت عائشه رضي الله عنها کلام په استفهام انکاري باندې مبني دې چه اې داخود خوارج طريقه ده اوډيره خرابه طريقه ده ولې ستاهم دغه طريقه ده؟ (٢)

"أحرورية؟"خبردې او "أنت" مبتداء دې چه مؤخر دې. شارحينوليکلی دی چه دلته دخبرمقدم کيدل اود مبتداء مؤخرکيدل دحصرد فائدې دپاره دی.يعنی مطلب دادې چه ته هم حروريه يئې؟ اوبعض حضراتودا لفظ منصوب هم روايت کړې دې اوېداسې صورت کښې په ترکيبي اعتبارسره به په ماقبل کښې ناصب مقدر وی او "أنت" به دتاکيد دپاره وی اوتقديری عبارت به داسې شی «كنت أو صرت حرورية أنت؟» (٣)

**قوله: مع النبي ﷺ:** د حضورپاك دمعيت نه مراد عهدنبوی دې اومقصد داخودل دی چه حضورپاك زمونږ ددې حيض دحالت نه خبر هم وو او دغه شان دحيض په حالت کښې په ايام حيض زمونږ د مونځ نه کولونه هم خبر وو مګر د دې باوجود حضورپاك کله هم د دغه مونځونود قضا راوړلو حکم نه دې ورکړې. که چرې ددې مونځونو قضا واجب وه نو ضرور به حضورپاك حکم فرمائيلو. (٤)

خکه چه په ترك واجب باندې خاموشي او سکوت جائزنه دې. (٥)

**قوله: فلا يأمرنا به:** يعنی حضورپاك ﷺ مونږ ته دمونځونود قضاحکم نه فرمائيلو بلکه حضورپاك به مونږ ته صرف د روژو د قضا راوړلو حکم راکولو. (٦)

---

(١) عمدة القاري: ٣/٤٤.

(٢) شرح الكرماني: ٣/١٩٣فتح الباري: ١/٤٢١عمدة القاري: ٣/٤٤٥ منحة الباري:١/٦٥٠.

(٣) شرح الكرماني: ٣/١٩٣ عمدة القاري: ٣/٤٤٥.

(٤) شرح الكرماني: ٣/١٩٣ عمدة القاري: ٣/٤٤٦ إرشادالساري: ١/٣٥٩.

(٥) شرح الكرماني: ٣/١٩٣ إرشادالساري: ١/٣٥٩.

(٦) عمدة القاري: ٣/٤٤٦ منحة الباري:١/٦٥٠إرشادالساري: ١/٣٥٩.

**قوله:: أوقالت فلا تفعله:** او د شك دپاره دي. علامه کرماني رحمه الله فرمائي په ظاهره دا شك روايه حضرت معاذه بنت عبدالله طرف ته واقع شوې دې. (۱)

داسماعيلي رحمه الله د روايت آخري كلمات داسې دي: «فلم نكن نقضي ولم نؤمربه» حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه «فلم نكن نقضي» سره دعدم وجوب قضاء صلوات باندې استدلال «فلم نؤمربه» په مقابله كښې زيات واضح دې ځکه چه «لم نؤمربه» يوعام دليل دې اودعام دليل نه استدلال كولو كښې مناقشه ممكن ده چه دعام دليل نه استدلال كولوباندې اكتفاكړې شوې ده په خلاف د «فلم نكن نقضي» ځکه چه داجمله په دې امركښې واضحه ده چه موږ ښځو به دهغه مونځونو قضا نه كوله. (۲)

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائي چه "تجزي" د تقضي په معنى كښې دې اود قيامت والا ورځې ته يوم الجزاء هم په دې وجه وائي چه په هغه ورځ به خلقو ته د هغوی د اعمالو بدله ور كولې شي. (۳)

شراح رحمهم الله فرمائي چه داحديث په دې مسئله كښې د اجماع امت بنياد اواصل دې چه حائضه ښځې به د ايام حيض فوت شوو مونځونو قضا نه كوي او په دې مسئله كښې د چا هم اختلاف نشته دې بغير د خوارج نه اوچونكه د خوارج په ګمراه كيدو باندې دټولو اتفاق دې اوهغوی د مسلمانانو د جماعت نه خارج دی په دې وجه دهغوی د اختلاف څه حيثيت هم نشته دې. چنانچه معمر رحمه الله دامام زهري رحمه الله نه نقل كوي چه حائضه به د روژو قضا خوكوي ولې دمونځونو قضابه نه كوي. په دې باندې معمر رحمه الله د امام زهري رحمه الله نه سوال اوكړو چه ددې دليل څه دې؟ نوامام زهري رحمه الله جواب وركړو چه ددې دليل اجماع امت دې ځکه چه په هره مسئله كښې قوي سند ملاويدل ممكن نه دی. (۴)

علامه نووي رحمه الله فرمائي: «أجمع المسلمون على أن الحائض والنفساء لا تجب عليهما الصلاة والصوم وعلىٰ أنه لا يجب عليهما قضاء الصلاة، وعلىٰ أنه عليهما قضاء الصوم» (۵) نور فرمائي «أجمعت الأمة على أنه يحرم عليها الصلاة فرضها ونفلها، وأجمعوا على أنه يسقط عنها فرض الصلاة، فلا تقضي إذا طهرت» او بيا د ابوجعفر بن جرير امام ترمذي او ابن المنذر رحمه الله په حواله سره په عدم قضاء صلوات او قضاء صوم باندې اجماع نقل كړې ده. (۶)

او علماء كرامو په دې دواړو كښې د فرق وجه دا بيان كړې ده چه مونځونه زيات هم وي اوهره ورځ مكرر هم وي ځکه چه د مونځونو په قضا كولوكښې مشقت اوحرج دې. خو روژې په ټول كال كښې يو ځل راځي په دې وجه ددې په قضا كولو كښې خاص مشقت نه وي. (۷) بعض حضرات فرمائي چه اسلاف

---

(۱) شرح الكرماني: ۱۹۳/۳ فتح الباري: ۴۲۱/۱ عمدة القاري: ۴۴۶/۳ منحة الباري: ۶۵۰/۱ إرشاد الساري: ۳۵۹/۱.

(۲) إرشاد الساري: ۳۵۹/۱.

(۳) فتح الباري: ۴۴۲/۱.

(۴) شرح الكرماني: ۱۹۳/۳ عمدة القاري: ۴۴۶/۳.

(۵) المجموع شرح المهذب: ۳۸۳/۲ عمدة القاري: ۴۴۶/۳.

(۶) المجموع شرح المهذب: ۳۸۳/۲ والجامع الترمذي، كتاب الحيض باب ماجاء في الحائض أنها لاتقضي الصلاة والإجماع لابي بكر محمدبن إبراهيم بن المنذر النيسابوري ص: ۳۹ مكتبة الفرقان، عجمان.

(۷) شرح الكرماني: ۱۹۳/۳ عمدة القاري: ۴۴۶/۳ منحة الباري: ۶۵۰/۱.

به حائضه ښځوته داحکم ورکولو چه هغوی دې دهرمونځ په وخت په اودس کښې قبلې ته مخ کړې اود الله تعالی ذکر دې کوی اودا عمل دغه حضرات دمسلمانانو ښځو طريقه او د عمل طرز ښائی اوهم دغه د عقبه بن عامر او مکحول رحمه الله نه نقل دی. (۱) عبدالرزاق رحمه الله فرمائی چه ماته داخبره رارسيدلې ده چه حائضه ښځوته به حکم ورکولې شو چه هغه دې د هرمونځ په وخت په اودس کښې کيږی.(۲)
د حضرت عطاء رحمه الله نه نقل دې چه ماته داسې هيڅ خبرنه دې رسيدلې مګر زما په نيزدا يوخوښ کړې شوې عمل دې. ليکن ابوعمر رحمه الله فرمائی چه حضرات فقهاء کرام داعمل مکروه ګڼړی اوهم داذغه خبره د سعيدبن عبدالعزيز رحمه الله نه هم نقل ده. او ابوقلابه رحمه الله وائی چه ددې سند هيڅ اصل ماته سره د لټون نه نه دې ملاؤشوې. البته د فقه حنفی کتاب منية المغني کښې ذکردی چه دحائضه دپاره مستحب دی چه هغه دې دهرمونځ په وخت کښې اودس کوی اود خپل کور په جومات کښې دې کينی او په څومره وخت کښې چه مونځ کولې شی هم دومره اندازه باندې دې دالله تعالی حمد اوثنا بيانوی، دې دپاره چه په داسې کولوسره دهغې د مونځ عادت باطل اوخراب نه شی.(۳)
صاحب د درايه فرمائی چه دحائضه دپاره په ايام حيض کښې دهرمونځ بدله کښې د هغې دپاره د هغې د ايام طهر د مونځونو ثواب ليکلې کيږی.(۴)
دحائضه متعلق يو سوال دا پيداکيږی چه آيا حائضه له د ترک صوم سره د قضاء صوم حکم ورکړې شوې دې يا داحکم خان له ورکړې شوې دې؟ نوجواب دادې چه د امر اول تعلق ترک صوم سره دې اود قضاء صوم حکم جدا ورکړې شوې دې. بعض حضرات فرمائی چه د حائضه د طرف ته هم د روژې حکم متوجه کيږی مګر په داسې معنی کښې چه هغه به دا روستو کولوسره ساتی لکه چه دمحدث طرف ته د مونځ حکم متوجه کيږی خوچه ترکومې حدث موجوددې دهغه مونځ به نه صحيح کيږی.
(۵)ليکن داخبره صحيح نه ده ځکه چه په ايام حيض کښې په ښځه باندې روژه څنګه واجب کيدې شی سره ددې چه په دغه ورځوکښې په حائضه باندې روژه ساتل حرام دی اوهغه هم دداسې سبب په وجه دکوم ختمول چه د ښځې د اختيارنه بهردی. دمحدث حدث خو يوداسې سبب دې دکوم ختمول چه د محدث په اختيارکښې دی. (۶)
**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت دحديث دټکړې «فلا يأمرنا به»، أي: لا يأمرنا بقضاء الصلاة په واسطه سره دې او په دوارو کښې دعدم قضاء صلوات حکم ذکر دې.(۷)

## ۲۱-باب: اَلنَّوْمِ مَعَ الْحَائِضِ وَهِيَ فِيْ ثِيَابِهَا

---

(۱) التوضيح: ۱۱۱/۵ عمدة القاري: ۴۴۶/۳.
(۲) مصنف عبدالرزاق كتاب الحيض باب وضوء الحائض عندوقت كل صلاة: ۳۱۹/۱رقم الحديث: ۱۲۲۲.
(۳) البحرالرائق: ۲۰۳/۲دارالمعرفة حاشية ابن عابدين، باب الحيض،مطلب: لوأفتى مفت بشيء من هذا الأقوال...... الخ: ۲۹۰/۱دارالفكر، عمدةالقاري: ۴۴۶/۳.
(۴) حواله بالا.
(۵) شرح الكرماني: ۱۹۳/۳ التوضيح: ۱۱۱/۵ عمدة القاري: ۴۴۶/۳ منحة الباري: ۶۵۰/۱.
(۶) شرح الكرماني: ۱۹۳/۳ التوضيح:۱۱۱/۵ عمدة القاري: ۴۴۶/۳.
(۷) عمدة القاري: ۴۴۶/۳.

**ماقبل سره ربط:** ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه په دواړوابواب حائضه سره متعلق په یو یوحکم باندې مشتمل دی.[1]

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله داحديث د باب من سمى النفاس حيضاً لاندې راوړې دې. اوس دلته ئې اعاده کوی او د دغه پورته عنوان باب: اَلنَّوْمِ مَعَ الْحَائِضِ وَهِيَ فِي ثِيَابِهَا ئې قائم کړو. اودبخاری رحمه الله مقصد داحکم مستنبط کول دی چه حائضه سره هم په يوه بستره کښې سملاستل جائزدی البته دا ضروری دی چه هغې دې کپړې اغوستې وی.[2]

شيخ الحديث زکريا رحمه الله فرمائی چه زما په نیز دامام بخاری رحمه الله مقصد په دې ترجمة الباب سره په هغه خبره باندې رد کول دی چه د امام ابوداؤد رحمه الله تخريج کړې شوې روايت سره متوهم اومترشح کیږی. دامام ابوداؤد رحمه الله تخريج کړې شوې روايت دادې: «عن عائشة أنها قالت: كنت إذا حضت نزلت عن المثال على الحصير، فلم نقرب رسول الله صلى الله عليه وسلم ولم ندن منه، حتى نطهر»[3]

ځکه چه د امام ابوداؤد رحمه الله دتخريج کړې شوی دې روايت نه معلوميږی چه دحيض په حالت کښې به ازواج مطهرات رسول الله صلى الله عليه وسلم ته نه نيزدې کيدې. حال دادې چه دا خبره د ډيرو صحيح رواياتو خلاف ده. په دې وجه په دې روايت تاويل کول ضروری دی. چنانچه يو تاويل داکړې شوې دې چه دا روايت منسوخ دې. بل دا چه په دې روايت کښې د قرب نه مراد جماع ده او ښکاره خبره ده چه دجماع مراد کيدو په صورت کښې په احاديثوکښې تضاد نه پاتې کيږی. او دريم تاويل داکړې شوې دې چه داعدم دنو اوعدم قرب به د ازواج د طرف ه کيدلو، د حضورپاک د طرف نه به نه کيدلو، بلکه حضورپاک به ازواج رانيزدې کولې لکه چه په ډيرو صحيح رواياتوکښې ذکر دی او په داسې موقعه باندې د ازواج د طرف نه عدم دنو او عدم قرب ځکه بعيدنه دې چه په داسې حالت کښې د ښځو مزاج خرابيږی اوخاوندته ورنيزدې کيدو ته ئې زړه نه کيږی.[4]

ابن رسلان رحمه الله فرمائی چه د سنن ابی داؤد روايت د ابن عباس رضي الله عنهما او ابوعبيدسليمان رحمه الله مستدل دې (ځکه چه ددې حضراتو په نيز حائضه سره په هيڅ توګه هم مباشرت جائزنه دې)، لکه څنګه چه امام نووی رحمه الله حکايت کړې دې مګر دا قول شاذدې.[5]

شيخ الحديث زکريا رحمه الله فرمائی چه د حائضه سره مباشرت په دريو طريقو باندې دې يا ددې درې صورتونه دی. هم ددې نه يوصورت دادې چه مباشرت د نامه نه پورته اود زنګونونه ښکته دبدن حصه کښې په لاس يا ذکر وغيره په ذريعه وی اودا صورت په اجماع سره جائز دی. البته علامه عينی رحمه الله فرمائی چه د ابوعبيدسليمان رحمه الله وغيره په نيز دا صورت هم ناجائز دی مګر داقول شاذ اومنکردې او احاديث صحيحه صريحه «في مباشرت النبي صلى الله عليه وسلم فوق الإزار» دوجې نه مردود دې.[6]

---

[1] عمدة القاري:۳/۷٤٤.

[2] فتح الباري لابن رجب: ۲/۱۳۶عمدة القاري: ۳/۱٤۷.

[3] سنن أبي داؤد كتاب الحيض باب في الرجل يصيب منها مادون الجماع رقم الحديث:۲۷۱.

[4] الكنزالمتواري: ۳/۲۸۷تعليقات على بذل المجهود: ۲/۲۹۲.

[5] الكنزالمتواري: ۳/۲۸۷تعليقات على بذل المجهود: ۲/۲۹۲.

[6] أوجزالمسالک: ۱/۵۸۰ الکنزالمتواري:۳/۲۸۷.

# الحديث الأول

[٣٢٨]- حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، حَدَّثَتْهُ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: حِضْتُ وَأَنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الخَمِيلَةِ، فَانْسَلَلْتُ فَخَرَجْتُ مِنْهَا، فَأَخَذْتُ ثِيَابَ حِيضَتِي فَلَبِسْتُهَا، فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَنُفِسْتِ» قُلْتُ: نَعَمْ، فَدَعَانِي، فَأَدْخَلَنِي مَعَهُ فِي الخَمِيلَةِ قَالَتْ: وَحَدَّثَتْنِي أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَانَ يُقَبِّلُهَا وَهُوَ صَائِمٌ» «وَكُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ مِنَ الجَنَابَةِ»[1]-[ر ٢٩٤]

**ترجمه**: دحضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې چه زه رسول الله ﷺ سره په څادر كښې ملاسته وو چه په ماحيض راغلو. په دې وجه زه په مزه يا غلې غونډې د څادر نه اووتلم او خپلې دحيض كپړې مې واغوستې. نومانه حضورپاك تپوس اوكړو آيا په تاحيض راغلې دې؟ نوما عرض اوكړو اوجی! بيا حضورپاك زه راؤغوښتم او خپل خان سره ئې په څادر كښې پټه كړم. د ام سلمه رضي الله عنها داهم بيان دې چه نبی كريم ﷺ به د روژې په حالت كښې هم ښكلول كول اوما او حضورپاك به هم په يولوښي د جنابت غسل كولو.

## تراجم رجال

**سعدبن حفص**: دا سعد بن حفص الطلحي رحمه الله دې. ددوى كنيت ابومحمد دې. جمال الدين مزي رحمه الله ددوى صرف د شيبان بن عبدالرحمن رحمه الله نه روايت كول لكلى دى.[2] د دوى احوال كتاب الوضوء باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين من القبل والدبر لاندې تيرشوى دى.

**شيبان**: دا شيبان بن عبدالرحمن تيمي نحوي بصري مؤدب رحمه الله دې ددوى كنيت ابومعاويه دې. ددوى حالات كتاب العلم باب كتابة العلم لاندې تيرشوى دى.[3]

**يحيى**: دا مشهور امام يحيى بن ابى اكثيرطائى يمامى رحمه الله دې. ددوى كنيت ابومعاويه دې. ددوى حالات كتاب العلم باب كتابة العلم لاندې تيرشوى دى.[4]

**أبوسلمة**: دا حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه خوئى دمدينې منورې د فقهاء سبعه نه يوفقيه او مشهور تابعى دې.[5] امام مالك رحمه الله فرمائى چه ددوى هم داكنيت ددوى نوم دې.[6] خو بعض حضراتو ددوى نوم عبدالله خودلې دې او څه نورو حضراتو ددوى نوم اسماعيل خودلې دې.[7] امام نووى رحمه الله

---

[1]) قوله: أم سلمة: الحديث، مرتخريجه فى كتاب الحيض فى باب من سمى النفاس حيضاً رقم الحديث: ٢٩٨.

[2]) تهذيب الكمال: ٢٦٠/١٠.

[3]) كشف البارى: ٢٦٣/٢.

[4]) كشف البارى: ٢٦٧/٤.

[5]) تهذيب الأسماء واللغات: ٢٤٠/٢.

[6]) تذكرة الحفاظ: ٦٣/١ تهذيب الكمال: ٢٣/٣٧٥.

[7]) تهذيب الكمال: ٣٧١/٣٣سير أعلام النبلاء: ٢٨٧/٤.

فرمائی ((والصحيح المشهور هو الأول)) (۱) د دوی حالات كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابًا من الإيمان لاندې تير شوی دی. (۲)

**زينب بنت أبي سلمة:** داد حضورپاك ﷺ ربيبه حضرت ام سلمه رضي الله عنها لور زينب بنت ابی سلمه عبدالله بن عبدالاسد بن هلال مخزوميه قرشيه رضي الله عنها ده. ددې نوم بره وو حضورپاك په زينب باندې بدل كړو. (۳) د دوی خالات كتاب العلم باب الحياء في العلم لاندې تيرشوی دی. (۴)

**أم سلمة:** دا ام المؤمنين ام سلمه هندبنت ابی اميه رضي الله عنها ده. (۵) د دوی حالاتِ كتاب العلم باب العلم والعظة بالليل لاندې تيرشوی دی. واضحه دې وی چه په سندكښې دوه ابوسلمه دی اول ذكرشوې ابوسلمه تابعی دې اودويم ذكرشوې ابوسلمه صحابی رسول ﷺ اود حضرت ام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها رومبې خاوند اودحضرت زينب بنت ام سلمه رضي الله عنها پلاردې. (۶)

## شرح حديث

ددې باب لاندې چه امام بخاري رحمه الله كوم حديث راوړې دې هغه په دريو احكامو باندې مشتمل دې كوم چه دادی: ① حائضه سره د سملاستو او اوده كيدو جواز. ② د روژې په حالت كښې د بی بی ښكلولوجواز. ③ د خاوند اوښځې په يولوښی سره غسل كولو جواز.

ددې پورته ذكرشوو احكامو نه د رومبی حكم سره متعلق ټول ابحاث باب من سمی النفاس حيضاً لاندې تيرشوی دی.

**قوله: خميلة:** دلته په روايت كښې د خميلة لفظ راغلې دې خو باب من سمی النفاس حيضاً كښې هم په دې روايت كښې خميصة لفظ راغلې وو. خميصة نقش والا څادر ته وائی اوخميلة جاليدار څادر ته وائی اوس په دواړو كښې صحيح كوم يودې؟ علامه كرمانی رحمه الله وائی چه په دواړو كښې هيڅ منافات او تضاد نشته دې. خميلة په نسبت د خميصة زيات اعم دې لهذا عين ممكن دی چه هغه څادر هم دواړه شان وی يعنی جاليدار هم وی اومنقش هم. (۷)

**قوله: معه:** معه ظرف حال واقع دې او په داسې صورت كښې به معنی داسې شی پس زه حضورپاك په څادر كښې كړم حال دادې چه زه د حضورپاك په معيت كښې ووم يا ماته د حضورپاك معيت حاصل وو. (۸) په روايت كښې خميلة دوه ځل راغلې دې اود دويم ځل نه هم عين اول مراد دې يعنی په شروع كښې چه هغه رضي الله عنها وه واپس راتلوسره حضورپاك هغه رضي الله عنها هم په هغه څادر كښې كړې وه ځكه چه

---

(۱) تهذيب الأسماء واللغات: ۲/ ۲٤۰.
(۲) كشف الباری: ۲/ ۳۲۳.
(۳) تهذيب الكمال: ۳۵/ ۱۸۵ معرفة الصحابة لأبی نعيم: ۵/ ۲۳۹ رقم الترجمة: ۳۸۸٤.
(۴) كشف الباری: ٤/ ٦۱۰.
(۵) كشف الباى: ٤/ ۳۹۳.
(۶) شرح الكرمانی: ۳/ ۱۹٤ عمدة القاری: ۳/ ٤٤۷.
(۷) شرح الكرمانی: ۳/ ۱۹٤.
(۸) حواله بالا.

معرفه كله معرفه راواپس كړې شي نود ثاني معرفه نه مراد عين هم هغه اول وي.(١) اوكوم لفظ غسله چه اول ذكرشوې په هغې كښې موجود الف لام كښې دوه احتمالات دي. الف لام دعهد ذهني هم كيدې شي او دجنس دپاره هم كيدې شي. (٢)

**قوله:: قالت**: شراح كرامو ليكلي دي چه د **قالت** فاعل حضرت زينب بنت ابوسلمه رضي الله عنها ده او د ظاهرى الفاظونه سره ددې چه دا معلوميږي چه داتعليق دې مګر سياق كلام دې طرف ته مشير دې چه دادسند مذكورلاندې داخل دې اومعلق روايت نه دې. (٣)

**قوله:: وحدثتني**: ددې جملې معطوف عليه مقدر دې كوم چه د **قالت** قول دپاره مقوله جوړيږي او تقديري عبارت ئې داسې دې ((**قالت (زينب): هذا القول وحدثتني أم سلمة**)) (٤)

**قوله:: وكنت**: علامه كرماني رحمه الله فرماني چه د **كنت** عطف په **قالت** باندې كول صحيح نه دي. (ځكه چه **قالت** ضمير زينب بنت ابى سلمه رضي الله عنها طرف ته راجع دې او په **كنت** كښې داسې هيڅ مرجع نشته لهذا دعطف كولو په صورت كښې به په معنى كښې خرابي لازم راځي) اونه ددې عطف په **حدثتني** باندې كول صحيح دي (ځكه چه په دې صورت كښې به هم معنوى خرابي لازمې راځي). هغه فرمائي چه زما په نيز ددې عطف "**أن النبي**" باندې دې چه د**حدثتني** دپاره مفعول به واقع كيږي اوداسې هيڅ قسم خرابي نه لازمې كيږي(٥)خو علامه عيني رحمه الله فرماني د **كنت** عطف په **حدثتني** باندې په تقدير **قالت** دې اوځنګه چه **حدثتني** مقوله جوړيږي د**قالت** دپاره هم دغه شان داجمله هم د **قالت** دپاره مقوله جوړيږي اوتقديري عبارت به ئې داسې شي ((**قالت (زينب): وحدثتني (أم سلمة) وقالت (أم سلمة): كنت أغتسل**))(٦)

**قوله:: أغتسل أنا والنبي**: دلته د **أغتسل** نه پس د ضمير منفصل اظهاركړې شوې دې دې دپاره چه پدې دلفظ "**النبي**" عطف صحيح وي. نور "**النبي**" بربناء مفعول معه منصوب لوستل هم صحيح دي(٧)

**قوله:: من إناء واحد من الجنابة**: دمن ابتدائيه تعلق په دواړو مقاماتوكښې **أغتسل** سره دې. په دې باندې دې دا اشكال نه وي چه د دوو كلمات ابتدائيه تعلق يوفعل سره ځنګه ممكن دې؟: ځكه چه ددوو ابتدائيه كلماتو تعلق يوفعل سره هغه وخت ممتنع وي كله چه دواړه د يوجنس نه وي. لكه د دوو ځايونونه ابتدا كول اوداسې وينا كول ((**خرجت من البصرة من الكوفة**)) يا د دوو زمانونه ابتداكول او داسې وئيل ((**ما رأيت زيدا من شهر من سنة**)) نودا وئيل جائزنه دى ځكه چه جنس يودې. خوكه چرته جنس

(١) شرح الكرماني: ١٩٤/٣عمدة القاري: ٤٤٧/٣.
(٢) شرح الكرماني: ١٩٤/٣.
(٣) شرح الكرماني: ١٩٤/٣عمدة القاري: ٤٤٧/٣.
(٤) شرح الكرماني: ١٩٤/٣عمدة القاري: ٤٤٧/٣.
(٥) شرح الكرماني: ١٩٤/٣فتح البارى: ٤٢١/١.
(٦) عمدة القاري: ٤٤٧/٣.
(٧) شرح الكرماني: ١٩٤/٣عمدة القاري: ٤٤٧/٣.

يو نه وى نوددوو كلمات ابتدائيه هم يوفعل سره تعلق كيدې شى لكه چه «من إناءٍ واحدٍ من الجنابة» كښې چه دې. د اول تعلق عين سره اوددويم تعلق معنى (جنابت) سره دې. [1]

علامه زكريا انصارى رحمه الله فرمائى چه ددواړو كلمه د "من" تعلق أغتسل سره دې رومبې كلمه "من" ابتدائيه ده اودويمه كلمه د"من" تعليليه ده. [2] اوبيائى دويم احتمال هم ذكركړو په كوم كښې چه "من" دواړو خايونوكښې ابتدائيه ګرځولې شوې دې. [3]

## قوله: كان يقبلها وهوصائم:

**دروژې په حالت كښې د بى بى دښكلولوحكم اود فقهاؤ اختلاف:** ابن المنذر رحمه الله فرمائى چه د فقهاؤ په دې مسئله كښې اختلاف دې چه په روژه كښې د بى بى ښكلول څنګه دى؟ بعض ددې رخصت وركړې او هم دغه خبره حضرت عمر، حضرت ابوهريره، حضرت ابن عباس اوحضرت عائشه صديقه رضي الله عنهم نه نقل ده. [4] اود تابعين نه حضرت عطاء، امام شعبى اوامام حسن رحمهم الله هم دغه مذهب دې. [5]. اوهم داد امام احمد رحمه الله او امام اسحاق رحمه الله هم قول دې. قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه صحابه كرام رضي الله عنهم او تابعين رحمهم الله يولوئى جماعت د خاوندپاره د روژې په حالت كښې ښځه ښكلول مباح ګرځولى دى [6] اود سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه هم دغه مذهب وو [7] ابن ابى شيبه رحمه الله دا مباح ګرځونكو كښې حضرت على حضرت عكرمه حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن اومسروق بن الاجدع رحمهم اله نومونو اضافه هم كړې ده. [8]

**د امام شافعى رحمه الله مذهب:** علامه نووى رحمه الله د امام شافعى رحمه الله مذهب نقل كولوسره فرمائى چه كه روژه دار ته د خپل شهوت د راؤچتيدو انديښنه نه وى نودهغه دپاره سره ددې چه خپله ښځه ښكلول حرام نه دى ليكن اولى اوبهتر هم دغه دى چه په روژه كښې دې ښكلول نه كوى البته د ښكلولو په صورت كښې به داسې هم نه شى وئيلې چه دا فعل مكره دې څكه چه پخپله دحضورپاك نه دخپلو بيبيانو ښكلول د روژې په حالت كښې ثابت دى. اوباوجود رسول اكرم صلى الله عليه وسلم ددې فعل د ثبوت دې ته

---

[1]) شرح الكرمانى: ۱۹٤/۳عمدة القارى: ٤٧/۳أرشاد السارى: ۳٥۹/٤منحة البارى: ٦٥۲/۱.

[2]) منحة البارى: ٦٥۲/۱-٦٥۱.

[3]) منحة البارى: ٦٥۲/۱.

[4]) رواه عن عمر مالک فى المؤطا ص: ۱٤٨وعبدالرزاق فى المصنف: ۱٨٥/٤(٧٤۲۰) وابن أبى شيبة:۲٤۲/٦ (۹٥۰۰) ورواه عن أبى هريرة مالک فى المؤطا:ص: ۱٤٨ وعبدالرزاق فى المصنف: ٤/۱٨٦-۱٨٥(٧٤۲۲-٧٤۲۱) وابن أبى شيبة: ۲۳۹/٦ (۹٤۹۰) ورواه عن ابن عباس، عبدالرزاق: ٤/۱٨٥-۱٨٤(٧٤۱۳، ٧٤۱٦) وابن أبى شيبة:۲٤۹/٦ (۹٤۹۳-۹٤۹۲) ورواه عن عائشة مالک فى المؤطا ص: ۱٤٨وعبدالرزاق: ۱٨۳/٤ (٧٤۱۱) والطحاوى فى شرح م عانى الأثار: ۹۳/۲والتوضيح لابن ملقن:۱٨٨/۱۳.

[5]) رواه ابن أبى شيبة عن عكرمة والنعبى:۲٤۰/٦ (۹٤۹٤)التوضيح: ۱٨٨/۱۳

[6]) إكمال المعلم: ٤۳/٤.

[7]) رواه عنه مالک فى المؤطا ص: ۱٤٨ وابن أبى شيبة:۲۳٨/٦ (۹٤٨٦)والتوضيح لابن ملقن:۱٨٨/۱۳.

[8]) المصنف لابن أبى شيبة: ۲٤۲/٦-۲۳٨(۹٤٨٤، ۹٤٨٥، ۹٥۰۱).

د خلاف اولى ونيلو وجه داده چه حضورپاك ددې خبرې نه مامون وو چه د حدنه به نى تجاوز كولو خود حضورپاك نه علاوه خلقو په حق كښې د تجاوز كولو خطره او انديښنه شته. په دې وجه داخلاف اولى گرځولې شوى دى. اوكه چرته روژه دار ته دخپل شهوت د راؤچتيدو انديښنه وى نو په داسې صورت كښې د شوافع په نيزد ښې ښې ښكلول حرام دى.(۱)

**دابن قدامه رحمه الله كلام:** ابن قدامه رحمه الله فرمائى چه ښكلونكې د دريو حالونه خالى نه دې: ① ښكلول ئى اوكړه اوانزال نه شو نو روژه به ئى نه فاسد كيږى او په دې كښې د چا اختلاف نشته دې. ځكه چه د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه حضورپاك به د روژې په حالت كښې ښكلول كول اوحضورپاك په خپل ځان باندې د ټولو نه زياته قابولرونكې وو.(۲) اوهم دغه شان د حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت دې يوه ورځ ما د روژې په حالت كښې ښكلول اوكړه نود حضورپاك په خدمت كښې حاضرشوم عرض مې اوكړو. نن زما نه ډيره لويه گناه شوې اوهغه دا چه ما د روژې په حالت كښې ښكلول كړى دى. نوحضورپاك اومائيل: ((أرأيت لو تمضمضت من إناء وأنت صائم)) آيا ستا په دې باره كښې څه خيال دې چه كه ته چرې د روژې په حالت د يولوښى نه په خله كښې اوبه واچوې؟ ما جواب وركړو ((لابأس به)) يعنى په دې كښې هيڅ حرج نشته. نو په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل ((فمه)) يعنى بياخود روژې په حالت كښې ښكلول هم دغه شان دى.(۳)

په دې روايت كښې ښكلول خله كښې اوبواچولوسره تشبيه وركړې شوې ده لكه څنگه چه په خله كښې اوبه اچولوسره دحلق نه ښكته تللو انديښنه ده هم دغه شان په ښكلولوكښې هم د شهوت انديښنه ده. خو چه څنگه په خله كښې اوبو اچولوسره دحلق نه نه تيريږى نو روژه نه فاسد كيږى هم دغه شان په ښكلولو كښې كه چرې دمنى خروج نه وى نو روژه نه فاسد كيږى گنى روژه به فاسدشى.

② چه ښكلول ئى اوكړه او انزال شو نوبغيرد څه اختلاف نه به روژه سد شى.

③ دريم صورت دادې چه په ښكلولوسره مذى خارج شى نو په دې صورت كښې به زمونږ دحنابله او مالكيه په نيز روژه فاسديږى خوداامام ابوحنيفه رحمه الله اوامام شافعى رحمه الله په نيز روژه نه فاسديږى او هم داد امام حسن رحمه الله امام شعبى رحمه الله او امام ازاعى رحمه الله مذهب دې.(۴)

ددې دريوارو صورتونو دذكركولونه پس فرمائى كه روژه دار د شهوت والاد اودهغه غالب گمان داوى چه ښكلول ئى اوكړه نو انزال به شى نودهغه دپاره ښكلول حلال نه دى بلكه حرام دى ځكه چه داسې ښكلول د روژې دپاره مفسد دى. او كه چرې هغه د شهوت والاخودې مگر غالب گمان نى دا نه دې چه منى به ترې اوځى نو ښكلول مكروه دى ځكه چه خطره ده چه روژه ئى فاسدشى. چنانچه

---

(۱) شرح للنووى على صحيح مسلم كتاب الصيام باب بين أن القبلة فى الصوم: ۲۱۵/۷دار إحياء التراث العربى، الحاوى فى فقه الإمام الشافعى كتاب الصوم باب النية فى الصوم: ۴۳۹/۳-۴۳۸دارالكتب العلمية.

(۲) رواه الإمام البخارى فى الصوم باب المباشرة للصائم رقم الحديث: ۱۹۲۷ومسلم فى الصيام باب بيان أن القبلة فى الصوم رقم الحديث: ۲۵۷۳......۲۵۷۹.

(۳) سنن أبى داؤد كتاب الصوم باب القبلة للصائم رقم الحديث: ۲۳۸۵.

(۴) المغنى لابن قدامة: ۳۶۱/۴-۳۶۰.

دحضرت عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه ما رسول الله ﷺ په خوب کښې اولیدلو نو حضورپاك زما نه وډه اوکره. ما تپوس اوکړو چه داسې ولې اوشو؟ نوحضورپاك اوفرمائیل: «إنك تقبل وأنت صائم»(۱)
البته ښکلولو ته حرام هم نه شي وئیلی ځکه چه په روایت کښې راځي. یوصحابي خپله بي بي ښکل کړه او بیائې خپله بي بي رسول الله ﷺ له اولیګله چه ددې مسئلې د حکم تپوس اوکړه راشه. هغه ښځه راغله نو حضورپاك اوفرمائیل چه هغه (حضورپاك) هم دخپلو بیبیانونه د روژې په حالت کښې کله کله خله اخلي. بیاچه کله هغه ښځې د رسول الله ﷺ ددې ارشاد خپل خاوند ته خبر ورکړو نوهغه اونه منل چه حضورپاك زمونږ په شان نه دې. دهغوی دپاره خو دهغوی وړاندې او روستو ټول ګناهونه معاف کړې شوی دی. چنانچه هغه خپله بي بي واپس ورواولیګله. ښځه راغله او نبي علیه السلام ته ئې دخپل خاوند د کلام خبر ورکړو نو حضورپاك اوفرمائیل: «إني لأخشاکم الله، أعلمکم بما أتقی»(۲)
دامام نووي رحمه الله اوعلامه ابن قدامه رحمه الله د کلام حاصل دا راوځي چه دامام شافعي رحمه الله امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز که روژه دارته دخپل شهوت نه راوچتیدو تسلي وي نودهغه دپاره ښکلول جائز دی سره ددې چه خلاف اولی دی اوکه چرې د شهوت د راوچتیدو خطره وي اود شهوت دغالب راتلو ویره یوی نو په داسې صورت کښې خله اخستل حرام دی. البته که خله ئې واخسته او مذي ترې لاړه نوبیا د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله مذهب جداجدا دې اود امام احمد بن حنبل رحمه الله مذهب جدادې. د احناف او شوافع په نیز به روژه نه فاسدیږی اود امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز به روژه فاسدیږي. لهذا د شیخ فاني دپاره اوداسې سړی دپار ه چه دهغه شهوت په خله اخستوسره په حرکت کښې نه راځي. د روژې په حالت کښې دخپلې بي بي نه خله اخستل جائز اوغیرمکروه دی. اود ځوان سړی دپاره مکروه دی ځکه چه د ځوان سړی د شهوت راوچتیدلو قوي اندیښنه ده. چنانچه دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه حضورپاك د بوډا سړی دپاره ددې اجازت ورکړې اوځوان ئې منع کړې دې. او علت ئې دا بیان کړې دې چه بوډا په خپل نفس باندې زیات قابولرونکې دې.(۳) دغه شان دعبدالله بنت عمرو بن العاص، حضرت ابوایوب انصاري او ابن عباس رضی الله عنهم نه هم روایت نقل دې.(۴)
**دامام مالك رحمه الله مذهب**: امام مالك رحمه الله په روژه کښې د بي بي نه خله اخستل علی الاطلاق مکروه ګرځولی دی.(۵)
**دعلامه عیني رحمه الله تحقیق**: علامه عیني رحمه الله په دې مسئله کښې د علماؤ اوفقهاؤ اختلاف په څلور مذاهب باندې تقسیم کړې دې:

---

(۱) أخرجه البیهقي في کتاب الصیام باب کراهیة القبلة لمن حرکت شهوته، وابن أبي شیبة، کتاب الصیام، باب من کره القبلة للصائم ولم یرخص فیها، رقم الحدیث: ۹۵۰۲.
(۲) ورواه الإمام المسلم بمعناه في الصیام باب بیان أن القبلة في الصوم رقم الحدیث: ۲۵۸۸وأخرجه الإمام مالك (بروایة محمدبن الحسن) في الصیام باب القبلة للصائم رقم الحدیث: ۳۵۱ دارالقلم، المغني لابن قدامة: ۳۶۱/٤.
(۳) سنن أبي داؤد کتاب الصیام باب کراهیته للشاب رقم الحدیث: ۲۳۸۷.
(٤) المدونة الکبری کتاب الصیام باب في القبلة والمباشرة..... الخ: ۲۶۸/۱دراالکتب العلمیة.
(۵) المغني لابن قدامة: ۳۶۱/٤التوضیح: ۱۸۹/۱۳شرح النووي: ۲۱۵/۷دارإحیاء التراث العربي.

① رومبي مذهب دادي چه د روژې په حالت كښې ښځه ښكلول اودهغې نه خله اخستل مطلقًا جائزدى او هم دغه د حضرت عمر، سعد بن ابى وقاص، حضرت ابوهريره او حضرت عائشه رضي الله عنهم مذهب دې اود تابعينونه حضرت عطاء، امام شعبى او حسن بصرى رحمهم الله دا قول اختياركړې دى. او هم دغه دامام احمد، امام اسحاق، امام داؤد او علامه ابن عبدالبررحمهم الله هم مسلك دې.

② دويم مذهب دادې چه د روژې په حالت كښې ښځه ښكلول مطلقًا مكروه دى اوهم دغه دحضرت عبدالله بن مسعود او ابن عمر رضي الله عنهم مذهب دې.

③ دريم مذهب دادې چه په روژه كښې ښځه ښكلولوكښې بوډا اوځوان كښې فرق دې. د بوډا دپاره ښكلول جائز او د ځوان د پاره ناجائز دى. د چا د شهوت راؤچتيدو چه خطره وى دهغه دپاره ناجائز دې اود چا د شهوت چه د راؤچتيدو خطره نه وى د هغه دپاره جائز دى. هم دا دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما مذهب دې. دغه شان دامام ابوحنيفه رحمه الله اود هغه د اصحاب او سفيان ثورى اوامام شافعى رحمهم الله هم دغه مذهب دې.

④ څلورم مذهب دددې چه د فرضى اونفلى روژوپه اعتبار سره فرق دې. فرض روژو كښې مطلقاً مكروه دى او نفلى روژو كښې جائزدى اودا د امام مالك رحمه الله مذهب دې.(١) حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائى چه كه په روژه كښې ئې خله واخسته نودهغه ورځې د روژې قضابه كوى لكه دهغه په نيز روژه فاسديږى. امام ثورى رحمه الله فرمائى «هذالانأخذبه» يعنې د ابن مسعود رضي الله عنه قول نه شى اختيارولې.(٢) امام طحاوى رحمه الله فرمائى چه تركومې د ابن مسعود رضي الله عنه دقضاكولو حكم نقل دې نوبل طرف ته هم دهغوى نه ددې خلاف هم نقل دى. حضرت جابر رضي الله عنه د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت كوى چه هغه به د روژې په حالت كښې خپلې بى بى سره مباشرت (ښكلول راښكلول) كولو. بل د سعيد بن المسيب رحمه الله نه هم نقض صوم نقل دې ليكن ښكاره خبره ده چه د سعيد بن المسيب رحمه الله د قول په مقابله كښې د حضورپاك روايت چه، حضورپاك به د روژې په حالت كښې ښكلول كول، اولى او افضل دې.(٣)

**قوله: :وكنت أغتسل أنا والنبي صلى الله عليه وسلم من إناء واحد من الجنابة**: دحديث دا الفاظ دكتاب الغسل لاندې تيرشوى دى اودې سره متعلق ټول مباحث هم هلته دى. **باب الغسل الرجل مع امرأته** لاندې تيرشوى دى.

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت**: دحديث ترجمة الباب سره مناسبت په حديث كښې ذكركړې شوى رومبى حكم سره دې چه په دوارو كښې حائضه سره د اوده كيدو او سملاستو جواز بيان كړې شوې دې.(٤)

## ۲۲-باب: مَنْ أَخَذَ ثِيَابَ الْحَيْضِ سِوَى ثِيَابِ الطُّهْرِ.

(١) البنايه شرح الهداية كتاب الصوم باب مالا يفطر الصائم حكم التقبيل والمباشرة للصائم: ٤/٤٥-٤٤.
(٢) لمصنف العبدالرزاق كتاب الصيام باب القبلة للصائم: ٤/١٨٦رقم الحديث:٧٤٢٦ التوضيح: ١٣/١٨٩، ٤/١٨٦.
(٣) شرح معانى الآثار كتاب الصيام باب القبلة للصائم: ٢/٩٠-٨٨عالم الكتب، التوضيح: ١٣/١٨٩.
(٤) عمدة القارى: ٣/٤٤٧.

**ماقبل سره ربط:** په دواړوابواب کښې مناسبت هم په دې سره واضح دې چه په دواړو کښې هم یو حدیث ذکر دې.(۱)

**د ترجمة الباب مقصد:** دامام بخاری رحمه الله مقصد په دې ترجمة الباب سره د ښځې دپاره په ایام حیض کښې جداکپړې ساتلو د جواز بیانول دې.(۲) لیکن شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه دښځې دپاره په ایام حیض کښې جدا کپړې ساتلو جواز باندې دحدیث باب نه استدلال په دې خبره باندې موقوف دې چه په حدیث کښې ذکر شوې دحضرت ام سلمه رضي الله عنها قول: ((فأخذت ثیاب حیضتی)) نه مراد هغه کپړې وی کومې چه انسان د لباس په توګه اغوندی ځکه چه ((ثیاب حیضتی))کښې یوبل احتمال هم دې اوهغه دادې چه ((ثیاب حیضتی)) نه مراد هغه مالوچ وی کوم چه حائضه د حیض په شروع کښې فرج کښې ایږدی.(۳)

**د شیخ الحدیث زکریا رحمه الله رائې:** شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فر مائی چه زما په نیز ددې ترجمة الباب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد یووهم لرې کول دی. کوم چه ((باب هل تصلی المرأة فی ثوب حاضت فیه)) لاندې ذکرکړې شوې حدیث د حضرت عائشه رضي الله عنها الفاظ ((ماکان لإحدانا إلاثوب واحد)) نه پیداکیږی چه کیدې شی د ایام حیض دپاره جدا کپړې ساتل په اسراف کښې داخل دی. نو دا وهم ئې په ترجمة الباب سره ختم کړو چه دایام حیض دپاره دجدا کپړو بندوبست کول په اسراف کښې داخل نه دی بلکه پخپله دحضورپاك په ژوند مبارك کښې دحضورپاك ازواج مطهرات نه داعمل ثابت دې.(۴)

د کشمیهنی رحمه الله په روایت کښې دأخذ په ځائې باندې أعد الفاظ دی.(۵)

## الحدیث الأول

[۳۱۷]- حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: بَيْنَا أَنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُضْطَجِعَةٌ فِي خَمِيلَةٍ حِضْتُ، فَانْسَلَلْتُ، فَأَخَذْتُ ثِيَابَ حِيضَتِي، فَقَالَ: ((أَنُفِسْتِ))، فَقُلْتُ: نَعَمْ فَدَعَانِي، فَاضْطَجَعْتُ مَعَهُ فِي الْخَمِيلَةِ"(۶)-[ر ۲۹۴]

**ترجمه:** دحضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دې چه په هغه دوران چه زه حضورپاك سره په څادرکښې ملاسته ووم په ما حیض شروع شو. زه په مزه شان پاسیدم اود حیض کپړې مې واخستې. حضورپاك اوفرمائیل چه آیا په تا حیض شروع شوې دې؟ نوما عرض اوکړو اوجی! بیا حضورپاك زه راؤغوښتم او حضورپاك سره په څادر کښې سملاستم.

---

(۱) عمدة القاری:۳/ ۴۴۷.

(۲) عمدة القاری: ۳/ ۴۴۷.

(۳) شرح التراجم ابواب البخاری: ۲۰ الأبواب والتراجم: ۶۶

(۴) الکنزالمتواری: ۳/ ۲۸۸تقریر بخاری: ۲/ ۱۰۲.

(۵) فتح الباری: ۱/ ۴۲۳عمدة القاری:۳/ ۴۴۷ إرشادالساری: ۱/ ۵۶۴.

(۶) قوله: أم سلمة: الحدیث، مرتخریج هذه الروایة فی کتاب الحیض باب من سمی ألنفاس حیضاً رقم الحدیث: ۲۹۸.

## تراجم رجال

**معاذ بن فضالة**: دا ابوزید معاذ بن فضاله بصری رحمه الله دي. د دوی حالات کتاب الوضوء باب النهی عن الستنجاء بالیمین لاندې تیرشوی دی.

**هشام**: دا ابوبکر هشام بن ابی عبدالله دستوائی رحمه الله دي. د دوی حالات کتاب الایمان باب زیادة الایمان ونقصانه لاندې تیرشوی دی.(١)

**یحیی بن أبي کثیر**: دا مشهورامام یحیی بن ابی کثیر طائی یمامی رحمه الله دي. د دوی حالات کتاب العلم باب کتابة العلم د دویم حدیث لاندې تیرشوی دی.(٢)

**أبوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف**: دادحضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه خوئی، د مدینې منورې د فقهاء سبعه نه یو لوئی فقیه اومشهور تابعی اومحدث دي. د دوی حالات کتاب الایمان باب صوم رمضان احتساباًمن الایمان د رومبی حدیث لاندې تیرشوی دی.(٣)

**زینب بنت أم سلمة**: داد حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ربیبه، حضرت ام سلمه رضی الله عنها لور، زینب بنت ابی سلمه عبدالله بن عبدالاسدبن هلال مخزومیه قرشیه رضی الله عنها ده. ددې نوم بره وو حضورپاك په زینب سره بدل کړو(٤)ددوی حالات کتاب العلم باب الحیاء فی العلم لاندې تیرشوی دی.(٥)

**أم سلمة**: دا ام المؤمنین ام سلمه هندبنت ابی امیه رضی الله عنها ده. (٦)ددوی حالات کتاب العلم باب العلم والعظة باللیل لاندې تیرشوی دی.

## شرح حدیث

**دحدیث عائشه اوحدیث ام سلمه k په مینځ کښې تعارض**: په ظاهره ذکرشوې حدیث اوشاته ذکر شوې حدیث د حضرت عائشه رضی الله عنها قول «ماکان لاحدانا الا ثوب واحد» په مینځ کښې تعارض دې. خکه چه په دې حدیث سره پته لګی چه ازواج سره د طهر دحالت جدا لباس وو او دایام حیض دپاره جدا. خود حضرت عائشه رضی الله عنها د قول نه معلومیږی چه هغې سره به داغوستلودپاره هم یوه کپړه او جوړه وه.

**دتعارض جواب**: جواب دادې چه د حضرت عائشه رضی الله عنها دقول تعلق داسلام دشروع زمانې سره دې کوم وخت چه ایام د سختئی اوتنګدستئی وې اودغه وخته پورې فتوحات نه وو شوی. او حضرت ام سلمه رضی الله عنها دهغه وخت خبر ورکوی کوم وخت چه فتوحات شوی ووغنائم حاصل شوی وواوسختئی لرې

(١) کشف الباري: ٤٥٦/٢.
(٢) کشف الباري: ٢٦٧/٤.
(٣) کشف الباري: ٣٢٣/٢.
(٤) تهذیب الکمال: ١٨٥/٣٥معرفة الصحابة لأبی نعیم: ٢٣٩/٥رقم الترجمة: ٣٨٨٤.
(٥) کشف الباري: ٦١٠/٤.
(٦) کشف الباي: ٣٩٣/٤.

شوې وي. او ازواج د خپل ځان دپاره د ایام حیض جدا کپړې تیارې کړې وي. لهذا دغه شان په دواړو احادیثو کښې تعارض پاتې نه شو.(۱)

**د شیخ زکریا رحمه الله جواب:** شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه زما په نیز دعدم تعارض یو احتمال داهم دې چه په دواړو احادیثوکښې د دوو جدا جدا بیبیانوبیان دې. د حضرت عائشه رضي الله عنها عادت د کثرت صدقات په حواله سره معروف اومشهوردې چه هغې به په کثرت سره صدقات ورکول. تردې چه په کورکښې به ئې هیڅ نه پریخودل نود عائشه صدیقه رضي الله عنها قول «ماکان لإحدانا إلا ثوب واحد» دهغې دخپل ذات په اعتبارسره دې اود حضرت ام سلمه رضي الله عنها خبره دهغې د خپل ذات په اعتبارسره ده.(۲)

دې حدیث سره باقي ټول مباحث «باب من سمی النفاس حیضاً» لاندې تیرشوی دی.

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې چه په دواړو کښې د ښځې دپاره دایام حیض جدا کپړو ساتلو ذکر دې.(۳)

## ۲۳-باب: شُهُودِ الْحَائِضِ الْعِيدَيْنِ وَدَعْوَةَ الْمُسْلِمِينَ، وَيَعْتَزِلْنَ الْمُصَلَّى.

**ماقبل سره ربط:** په دواړوابواب کښې مناسبت دا دې چه په دواړو کښې د حائضه سره متعلق د یوې یوې مسئلې ذکرې دې.(۴)

ترجمة الباب کښې موجود لفظ "یعتزلن" دجمع صیغې سره ذکرکول (حال دادې چه حائض مفرد مذکور دې) حائض داسم جنس کیدو په اعتبارسره دې یابه بیا دلته محذوف منلې شی اوتقدیری عبارت بهٔ داسې شی «ويعتزلن الحيض».(۵)

**د ترجمة الباب مقصد:** په دې ترجمة الباب کښې دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه دحائضه دپاره په عیدین کښې شکرت کول، دخیروبرکت او وعظ ونصیحت په مجالس کښې شرکت کول ټول جائز اوصحیح دی. مګر دومره خبره ضرور ده چه حائضه ښځې دې دعیدګاه نه جدا وی. په دې وجه نه چه دعیدګاه حکم د مسجد دې بلکه په دې وجه چه کله داحائضه ښځې مونځ نه کوی نوبیامونځ ګذارو سره په یوځائی ملاویدل او رحمه الله رائې: هم دا غرض حضرت شیخ الحدیث زکریا رحمه الله په یو بل طرز سره ذکر کړې دې هغوی فرمائی زما په نیزدامام بخاری رحمه الله غرض ددې ترجمة الباب نه دا خبره بیانول دی چه عیدګاه دحائضه ښخود داخلې ممنوع کیدو کښې دمسجد په حکم کښې نه دې لکه څنګه چه

---

۱) عمدة القاري: ۴۴۷/۳ إرشادالساري: ۵۶۴/۱ الکنزالمتواري: ۲۸۸/۳.

۲) الکنزالمتواري: ۲۸۸/۳.

۳) عمدة القاري: ۴۴۷/۳.

۴) عمدة القاري: ۴۴۷/۳.

۵) فتح الباري: ۴۲۲/۱.

جماتونوته د حائضه ښځوتللمنع دی هم دغه شان په عيدګاه کښې هم دحائضه ښځو داخليدل منع دی. اوهم دغه دجمهور حضراتو مذهب دی (لکه چه دامام بخاري رحمه الله مقصد د جمهورو تائيد کول دی) خود نورو حضراتو رائې داده چه عيدګاه چونکه د جمات په حکم کښې دې اودحائضه ښځې جمات ته داخليدل جائزنه دی په دې وجه داښځې عيدګاه ته هم نه شی داخليدلې.(1)

ليکن سوال دا پيداکيږی چه کله عيدګاه د جمهورو په نيزد جمات په حکم کښې نه ده نوبيادتته دتللو ممانعت ولې دې؟ نوددې جواب دادې چونکه حائضه ښځې مونځ نه کوی او دتته تلوسره بغيرد صفونو دماتيدو دسبب جوړيدو نه به نور هيڅ حاصل نه شی په دې وجه دوی دتته تلونه منع کړې شوی دی.(2)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه داحکم استحبابی دې چه بغيرد څه وجې سړو سره ګډوډوالې اونه شی.(3)

**د شيخ الحديث زکريا رحمه الله دويمه رائې:** شيخ الحديث رحمه الله يو بل احتمال هم ذکرکړې دې اوهغه دادې چه د امام بخاري رحمه الله مقصد د يووهم ازاله کول دی اوهغه وهم دادې چه کله حائضه ښځې مونځ نه شی کولې نوبياد عيدګاه طرف ته دهغوی د بوتلو څه فائده ده؟ نوجواب دادې چه دهغوی د عيدګاه طرف ته وتل دبرکت حاصلولو او دعاډپاره دی اودويمه خبره داهم ده په دې سره د مسلمانانو دکثرت اوشان اوشوکت مظاهره هم کيږی.(4)

**فائده:** شراح کرام ليکلی دی چه اعتزال عن المصلي (دعيدګاه نه جداکيدلو) حکم هغه وخت دې چه د عيدګاه ديوالو نه وغيره د جمات په طرز باندې نه وی جوړکړې شوی صرف خالی ميدان وی لکه څنګه چه دحضورپاك په زمانه کښې وو. خو اوس په موجوده زمانه کښې مناسب دادی چه عيدګاهونه د جماتونو په حکم کښې وی ځکه چه نن صبا دا د جماتونو په شکل کښې جوړولې شی.(5)

## الحديث الأول

[۳۱۸]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ هُوَ ابْنُ سَلاَمٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ الوَهَّابِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ حَفْصَةَ، قَالَتْ: كُنَّا نَمْنَعُ عَوَاتِقَنَا أَنْ يَخْرُجْنَ فِي العِيدَيْنِ، فَقَدِمَتِ امْرَأَةٌ، فَنَزَلَتْ قَصْرَ بَنِي خَلَفٍ، فَحَدَّثَتْ عَنْ أُخْتِهَا، وَكَانَ زَوْجُ أُخْتِهَا غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ غَزْوَةً، وَكَانَتْ أُخْتِي مَعَهُ فِي سِتٍّ، قَالَتْ: كُنَّا نُدَاوِي الكَلْمَى، وَنَقُومُ عَلَى المَرْضَى، فَسَأَلَتْ أُخْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَعَلَى إِحْدَانَا بَأْسٌ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا جِلْبَابٌ أَنْ لاَ تَخْرُجَ؟ قَالَ: «لِتُلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا وَلْتَشْهَدِ الخَيْرَ وَدَعْوَةَ المُسْلِمِينَ»، فَلَمَّا قَدِمَتْ أُمُّ عَطِيَّةَ، سَأَلْتُهَا أَسَمِعْتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَتْ: بِأَبِي، نَعَمْ، وَكَانَتْ لاَ تَذْكُرُهُ إِلَّا قَالَتْ: بِأَبِي،

---

(1) الکنز المتواری:۲۸۹/۳الأبواب والتراجم: ۶۷تقرير بخاری: ۱۰۳/۲.
(2) تقريربخاری:۱۰۳/۲.
(3) إرشاد الساری: ۳۶۰/۱فتح الباری:۵۰۳/۱.
(4) الکنز المتواری:۲۸۸/۳الأبواب والتراجم: ۶۷فيض الباری: ۵۰۳/۱.
(5) فيض الباری: ۵۰۲/۱إيضاح البخاری: ۱۲۹/۱۱.

سَمِعْتُهُ يَقُولُ: «يَخْرُجُ الْعَوَاتِقُ وَذَوَاتُ الْخُدُورِ، أَوِ الْعَوَاتِقُ ذَوَاتُ الْخُدُورِ، وَالْحُيَّضُ، وَلْيَشْهَدْنَ الْخَيْرَ، وَدَعْوَةَ الْمُؤْمِنِينَ، وَيَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ الْمُصَلَّى»، قَالَتْ حَفْصَةُ: فَقُلْتُ الْحُيَّضُ، فَقَالَتْ: أَلَيْسَ تَشْهَدُ عَرَفَةَ، وَكَذَا وَكَذَا.(١) [٣٤٤، ٩٢٨، ٩٣١، ٩٣٧، ٩٣٨، ١٥٢٩]

ترجمه: حضرت حفصه رحمها الله فرمائي چه مونږ ښځې به دعيدګاه دتلو نه منع کولې شوې. بيا يوه ښځه راغله اود بنی خلف په محل کښې کوزه شوه. هغې دخپلې خور په حواله سره نقل کړل چه دهغې د خور خاوند نبی کريم ﷺ سره دوولس غزوات کښې شريك شوې وو او پخپله دهغه خور خپل خاوند سره په شپږو غزواتوکښې تلې وه. هغې بيان اوکړو چه مونږ به د زخميانو مرهم پټنې کولې اود بيمارانو خيال به موساتلو. زما خور يوځل د نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړو که چرته مونږ کښې چاسره څادر (چه د برقعې په توګه نې ښځې بهر وتلو دپاره استعمالوی) نه وی نو آيا دهغې دپاره په دې کښې څه حرج شته چه هغه بهر اونه ځي. حضورپاك اوفرمائيل چه دهغې ملګرې له پکاردی چه د خپل څادر څه حصه په هغې باندې هم راواچوی اوبيا هغه دخير په مواقع باندې دمسلمانانو په دعاګانوکښې شريکه وی. بيا چه کله حضرت ام عطيه رضي الله عنها راغله نوما دهغې نه هم دغه سوال اوکړو نوهغې اوئيل زما پلاردې په تاباندې قربان شی او. هغوی دا فرمائيلې وو او حضرت ام عطيه رضي الله عنها چه به کله هم دهغوی ذکرکولو نودا به ئې ضرور فرمائيل چه زما پلار دې په تا قربان شی. (هغوی اوونيل) ما هغوی دې ويناکولوسره اوريدلی وو چه ځواناني جينکئې پردې والا ښځې او حائضه ښځې دې بهر اوځی اود خير په مواقع کښې اود مسلمانانو په دعاګانې کښې دې شريکې وی اوحائضه ښځې دې د عيدګاه نه جداشي. حضرت حفصه فرمائي چه ما تپوس اوکړو حائضه ښځې هم عيدګاه ته تلې شی نو هغوی اوفرمائيل چه آيا هغوی عرفه کښې او فلانکی فلانکی ځائی ته نه ځی؟ يعنی مزدلفه منی او د استسقاء مونځ کښې.

## تراجم رجال

**محمدبن سلام:** دا ابوعبدالله محمدبن سلام بن الفرج السلمی البيکندی رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب الإيمان باب قول النبی صلی الله عليه وسلم: «أنا أعلمكم بالله» لاندې تيرشوی دی.(٢)

---

(١) قوله: ام عطية، الحديث رواه البخاری فی العيدين باب خروج النساء والحيض إلی المصلی، أيضاً تحت رقم الحديث ٩٧٤ وفی باب إذا لم يكن لها جلباب فی العيد رقم الحديث: ٩٨٠ وفی باب التكبير أيام منی وإذا غدا إلی عرفة رقم الحديث: ٩٧١ وفی باب اعتزال الحيض المصلی رقم الحديث: ٩٨١ وفی الصلاة باب وجوب الصلاة فی الثياب رقم الحديث: ٣٥١ وفی الحج باب تقضی الحائض المناسك كلها إلا الطواف بالبيت، رقم الحديث: ١٦٥٢ ومسلم فی صلاة العيدين باب ذكر إباحة خروج النساء فی العيدين إلی المصلی وشهود الخطبة رقم الحديث: ٢٠٥٦-٢٠٥٤ وأبود اؤد فی الصلاة باب خروج النساء فی العيد رقم الحديث: ١١٣٩-١١٣٦ والترمذی فی الصلاة باب ماجاء فی خروج النساء فی العيدين رقم الحديث: ٥٤٠-٥٣٩ والنسائی فی العيدين باب خروج العواتق وذوات الخدور فی العيدين رقم الحديث: 1559 وابن ماجه فی الصلاة باب ماجاء فی خروج النساء فی العيدين رقم الحديث: ١٣٠٨ وجامع الأصول فی أحاديث الرسول: ١٤٨/٦ رقم الحديث: ٤٢٦٣.

(٢) كشف الباری: ٩٣/٢.

**عبدالوهاب**: داعبدالوهاب بن عبدالمجيدبن الصلت ثقفی بصری رحمه الله دي. د دوی حالات هم کتاب الایمان باب حلاوة الایمان لاندې تیرشوی دی.[1]
**أیوب**: دا ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی بصری رحمه الله دي. ددوی کنیت ابوبکردي. ددوی حالات هم کتاب الایمان باب حلاوة الایمان لاندې تیرشوی دی.[2]
**حفصة**: دا ام الهذیل حفصه بنت سیرین انصاریه بصریه رحمهاالله ده. دادمحمدبن سیرین رحمه الله خورده. د دې حالات کتاب الوضوء باب التیمن في الوضوء والغسل لاندې تیرشوی دی.

## شرح حدیث

**دعواتق تفسیر**: **عواتق** د **عاتق** جمع ده اوعواتق هغه ځوانانو جینکوته وائی چه نیزدې بلوغت ته رسیدلې وی اودغه وخت خپل موروپلارسره په پرده کښې وخت تیره وی اوتر دغه وخته دهغوی واده نه وی شوې. او دوی ته عواتق هم په دې وجه وائی چه دوی د وروکوالی د ژوند دمور پلاردخدمت اود کور د کارونوروزګارونونه خو آزادې شوی وی خوتردغه وخته پورې دهغوی ودونه نه وی شوې.[3]
ابوزید رحمه الله فرمائی چه **عاتق** هغه ځوانې جینئی ته وائی چه قریب البلوغ وی اودهغې واده نه وی شوې.[4] دغه شان دې لفظ سره متعلق نور هم اقوال مختلف دی مګر دټولو حاصل هم دغه راوځی چه عاتق ځوانې پیغلې جینئی ته وائی که بلوغت ته رسیدلې وی اوکه قریب البلوغ وی. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله ددې لفظ اطلاق په دواړو باندې فرمائیلې دې. هغوی فرمائی: «وهی من بلغت الحلم أو قاربته أو استحقت التزویج أو هی الکریمة علی أهلها أو التی عتقت عن الامتهان فی الخروج للخدمة»[5] ددې نه هم معلومیږی چه په هغه زمانه کښې هم ځوانانې جینکئی دکورونودوتو نه منع کولې شوې. اګرچه دوصال نبوی نه فوراً پس حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم دصدې خاص لحاظ نه دې کړې بلکه دښځو دوتلو مسئلې ئې د حضورپاک دزمانې نه راتلونکې حکم باندې پریخودې. خو بیا روستو ښځې د بهروتلونه د زمانې د فساد د وجې نه منع کړې شوې.[6]
**قوله: فقدمت امرأة**: شراح کرام لیکلی دی چه ددغه ښځې نوم معلوم نه شو.[7]

---

[1]) کشف الباری:۲/۲۶.
[2]) کشف الباری:۲/۲۶.
[3]) تهذیب اللغة للأزهری: ۱/۲۱۰المؤسسة المصریة العامة. النهایة لابن الأثیر: ۳/۱۷۹-۱۷۸مؤسسة التاریخ الإسلامی. الفائق فی غریب الحدیث والأثر: ۲/۳۸۹دارالمعرفة. لبنان.عمدة القاری: ۳/۴۵۰-۴۴۹دارالکتب العلمیة التوضیح لابن ملقن: ۵/۱۱۶فتح الباری: ۱/۴۲۲إرشادالساری: ۱/۶۰منحة الباری: ۱/۶۵۳شرح الکرمانی: ۳/۱۹۶.
[4]) عمدة القاری: ۳/۴۴۹.
[5]) فتح الباری: ۱/۴۲۲.
[6]) فتح الباری: ۱/۴۲۲.
[7]) فتح الباری: ۱/۴۲۲عمدة القاری: ۳/۴۵۰.

**قوله: قصر بني خلف**: شارحين حضرات فرمائي چه دا قصر بني خلف په بصره كښې واقع وو اودا د طلحه بن عبدالله بن خلف خزاعي طرف ته منسوب دې چه د طلحة الطلحات په نوم سره مشهور وو اودې د سجستان والي هم پاتې شوې وو. (1) علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دا قصر د بني خلف طلحه طرف ته منسوب نه دې بلكه د طلحه نيكه خلف طرف ته منسوب دې. ځكه چه په يوروايت كښې په واضحه انداز كښې دي دا د طلحه د نيكه خلف طرف ته منسوب كړې شوې دې. (2)

**قوله: فحدثت عن أختها**:

**داخت نه څوک مراددي؟**: بعض حضرات فرمائي چه داخت نه مراد ام عطيه رضي الله عنها ده اوبعض حضرات وائي چه دا ام عطيه رضي الله عنها نه څوک بله ده اوهم داقول علامه كرماني رحمه الله اختياركړې دې. او كه چرې اخت نه مراد ام عطيه رضي الله عنها كيدل هم تسليم كړې شي نوبيا هم دهغې د خاوند نوم معلوم نه دې اوړاندې ددغه اخت د خاوند هم تذكره ده. (3)

**قوله: ثنتي عشرة**: دصيلي په روايت كښې «ثنتي عشرة غزة» دې. عشرة د شين سكون سره لوستلې كيږي او تميمي داد شين په كسره سره لولي. (4)

**قوله: وكانت أختي**: داعبارت محذوف دې او تقديري عبارت داسې دې: «قالت المرأة المحدثة: وكانت أختي» اوددې تقدير ضرورت په دې وجه پيداشو دې دپاره چه معنى صحيح او ټيک پاتې شي. (5)

**قوله: معه**: دخپل خاوندمعيت اوملګرتيا تذكره كوي. يابيادحضورپاك معيت هم مرادكيدې شي. (6)

**قوله: ست**: أي: في ستِ غزوات، امام طبراني رحمه الله ذكركړې دې چه هغې په اووه غزوات كښې شركت كړې. (7)

**قوله: قالت**: دلته دقالت فاعل اخت دې نه چه مرأة. (8)

**قوله: كنا**: د جمع صيغې سره ئې تعبيرځكه اختياركړو دې دپاره چه د نورو ښځو هم په غزوات كښې د شركت بيان اوشي. (9)

---

(1) فتح الباري: ۴۲۲/۱ عمدة القاري: ۴۵۰/۳.

(2) عمدة القاري: ۴۵۰/۳ التوضيح: ۱۱۵/۵.

(3) فتح الباري: ۴۲۲/۱ التوضيح: ۱۱۵/۵ شرح الكرماني: ۱۹۶/۳.

(4) فتح الباري: ۴۲۲/۱ عمدة القاري: ۴۵۰/۳.

(5) فتح الباري: ۴۲۲/۱ عمدة القاري: ۴۵۰/۳.

(6) شرح الكرماني: ۱۹۶/۳ عمدة القاري: ۴۵۰/۳ إرشادالساري: ۳۶۰/۱.

(7) التوضيح: ۱۱۵/۵ عمدة القاري: ۴۵۰/۳ إرشادالساري: ۳۶۰/۱ المعجم الكبير للطبراني: ۵۵/۲۵ رقم الحديث ۱۲۱ مكتبة العلوم والحكم.

(8) فتح الباري: ۴۲۲/۱ عمدة القاري: ۴۵۰/۳ شرح الكرماني: ۱۹۶/۳ إرشادالساري: ۳۶۰/۱.

(9) عمدة القاري: ۴۵۰/۳ شرح الكرماني: ۱۹۶/۳ إرشادالساري: ۳۶۰/۱.

**قوله::الكلمى** كلمىٰ د كلمه جمع ده اومفعول يعنى د جريح په معنى كښې دې اومرضىٰ هم د كلمىٰ په شان دې يعنى مرضى دمريض جمع ده اوداسم مفعول په معنى كښې دې اوداد قياس موافق دې.(١)

**قوله::بأس** :يعنى په دې كښې هيڅحرج يا گناه نشته دې.(٢)

**قوله::جلباب**::

**د جلباب تفسير:** دالفظ د جيم په كسره اولام په سكون سره لوستلې كيږى اوددې په تفسيركښې مختلف اقوال دى:

① دښځو د پړونى په شان ارته لوپټه په كوم كښې چه ښځه خپل سر اوسينه پټوى. ② جلباب قميص ته وائى. ③ د پړونى نه لږ شان وړه كپړه كومه چه ښځه په اچولو كښې استعمالوى. ④ د پړونى په شان يوه كپړه په كوم سره چه ښځې خپل لباس پټوى. ⑤ جلباب لوپټې اوپړونى ته وائى. ⑥ جلباب د ملحفة په معنى كښې دې يعنى د ښځې د اغوستلو څادر. ⑦كولاؤ كپړه چه دڅادر نه لږه شان وړه وى. ⑧ د جلباب معنى الملاءة يعنى د ښځو داغوستو څادر چه ډبل وى. ⑨ پړونې چه د لوپټې نه وړوكې وى خو كولاؤ وى. ⑩ داسې كپړه چه د څادر نه لږه شان وړه وى او ښځه په دې سره خپله ملا او سينه پټوى.(٣)

**قوله::لتلبسها**::

**د څادرو وغيره اچولونه څه مراددې؟:** ددې په تفسيركښې درې احتمالات دى:

① رومبې احتمال دادې چه دې نه جنس مراد وى اومعنى داسې وى چه دويم ملگرې دې ملگرى ته څادر وغيره دكوم چه دغه وخت دې ته ضرورت نه وى عارية وركړى. په دې صورت كښې كلمه من زائده هم كيدې شى اوتبعيضيه هم كيدې شى اوددې احتمال تائئد دترمذى شريف د يو روايت نه هم كيږى. ځكه چه دغه روايت كښې يولفظ جلباب جمع سره ذكر دې اودوين په دې روايت عاريةً د وركولوتصريح ده. دروايت الفاظ دادى: «فلتعرها أختها من جلابيبها» (٤)

② دويم احتمال دادې چه معنى داسې وى، دويم ملگرې دا ملگرې خپل خان سره په څادر كښې شريك كړى. په دې صورت كښې به من تبعيضيه وى. ليكن دا احتمال په دې باندې مبنى دې چه هغه څادر يا هغه كپړا زياته لويه وى تردې چه په هغې كښې دوه جينكئ راشى. ددې احتمال تائيد د ابوداؤد په روايت سره كيږى دكوم الفاظ چه دادى: «تلبسها صاحبتها طائفةً من ثوبها» (٥)

---

(١) التوضيح:١١٦/٥فتح البارى:٤٢٣/١ عمدة القارى: ٤٥٠/٣إرشادالسارى: ٣٦٠/١شرح الكرمانى: ١٩٧/٣منحة البارى:٦٥٣/١

(٢) عمدة القارى: ٤٥٠/٣.

(٣) التوضيح:١١٦/٥فتح البارى:٤٢٣/١ عمدة القارى: ٤٥٠/٣ منحة البارى:٦٥٣/١.

(٤) جامع الترمذى أبواب العيدين باب خروج النساء فى العيدين رقم الحديث: ٥٣٩.

(٥) سنن أبى داؤد كتاب الصلاة باب خروج النساء فى العيدين رقم الحديث: ١١٣٦.

③ اودريم احتمال دا دې چه د حضورپاك دا ارشاد په مبالغه باندې محمول كړې شي يعنى دا ښځې هم ضرور شركت اوكړى كه په يويو كپړا اويويو څادر كښې دوه دوه اوځى. [1]

**قوله:: دعوة المسلمين:** دكشميهنى رحمه الله په روايت كښې مؤمنين لفظ راغلې دې اوهم دغه دحضرت ام عطيه رضي الله عنها د روايت موافق دې اومراد دا دې چه دمسلمانانو دعائيه ګنړې لكه د استسقاء د مونځ دپاره راغونډيدل وغيره كښې حاضر وى. [2]

**قوله:: ويشهدن الخير:** يعنى دخير په مجالس كښې شركت كولې شى لكه دحديث داوريدو مجلس، يا د بيمارد تپوس وغيره دپاره هم تلې شى. [3]

**قوله:: وكانت لاتذكره إلاقالت: بأبي:** يعنى ام عطيه رضي الله عنها چه به كله هم د حضورپاك تذكره كوله نو ورسره به ئې "بأبي" ضرور فرمائيل دكوم مطلب چه دادې زما پلاردې په تاسو قربان شى. [4]

**د لفظ"بابي" تحقيق:** "بأبي" محذوف سره متعلق دې چه مبتداء جوړيږى اوددې مابعد په محل رفع كښې واقع كيدو سره ددې دپاره خبر جوړيږى اوتقديرى عبارت داسې دې: «أنت مفدي بأبي» اودا هم جائز دى چه ددې متعلق فعل محذوف اوباسى اوتقديرى عبارت داسې وى: «فديتك بأبي» اود فعل محذوف مابعد محل دنصب كښې شى اودا حذف اوتقدير د تخفيف په غرض سره دې ځكه چه د داسې كلماتو استعمال په كثرت سره كيږى. [5]

بل يو احتمال داهم دې چه دكلمه دقسم وى يعنى أقسم بأبي په معنى كښې وى. [6] ليكن رومبې صورت او رومبې احتمال سياق ته زيات زيندې دې او اظهر اواولى هم دې. [7]

"بأبي" دې لفظ سره متعلق څلور لغات دى: ① **بأبي بكسر الباء فى الموضعين وفتح الهمزة.** ② **بأبا بكسر الباء الأولى وفتح الثانية وفتح الهمزة وفى آخره ألف.** ③ **بيبي بكسر الباء فى الموضعين وفتح الباء الأولى وسكون الثانية.** ④ **بيبا بكسر الباء الأولى وفتح الثانية وفتح الباء وفى آخره ألف.**

آخرى ذكركړې شوى دريواړه لغاتو اصل بأبي دې. چنانچه په دويم لغت كښې ياء اخيره په الف سره بدله كړې شوې ده اوهم ددې الف په مناسبت سره دماقبل حركت هم په فتحه كښې بدل كړو اوپه دريم لغت كښې همزه په ياء سره بدل كړې شوې دې. او په آخرى لغت كښې همزه په ياء سره اوياء په همزه

---

[1] التوضيح:۱۱۶/۵فتح البارى:۴۲۴/۱ عمدة القارى: ۴۵۰/۳إرشادالسارى: ۳۶۰/۱ منحة البارى:۶۵۴/۱
[2] شرح الكرمانى: ۱۹۷/۳فتح البارى:۴۲۴/۱ عمدة القارى: ۴۵۰/۳إرشادالسارى: ۳۶۰/۱
[3] شرح الكرمانى: ۱۹۷/۳ عمدة القارى: ۴۵۰/۳إرشادالسارى: ۳۶۰/۱
[4] شرح الكرمانى: ۱۹۷/۳فتح البارى:۴۲۴/۱.
[5] عمدة القارى: ۴۵۱/۳.
[6] شرح الكرمانى: ۱۹۷/۳عمدة القارى: ۴۵۱/۳.
[7] عمدة القارى: ۴۵۱/۳.

سره بدل کړې شوې دې. په دې څلورو واړو لغاتو کښې اولنۍ اودریم لغت زیات مشهوردې او هم دغه دواړه فصیح هم دی.(١)

**قوله: أسمعت النبی صلی الله علیه وسلم:** همزه استفهامیه دې اودسمعت باره کښې دحویانو اختلاف دې.بعض وائی دا دومفعول طرف ته متعدی کیږی اوبعض وائی ددومفعول طرف ته نه متعدی کیږی.په اول صورت کښې به تقدیری عبارت داسې وی«أسمعت النبی صلی الله علیه وسلم المذکور»اودویم صورت کښې به تقدیری عبارت داسې وی«أسمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول المذکور اوآخری جمله به حال واقع کیږی.(٢)

**قوله: سمعته** : دادمستثنٰی تتمه نه ده خکه چه شاته ذکرشوې "بأبی نعم" په دې باندې دال اوقرینه ده حصر په "بأبی" کښې دننه دې لهذا د سمعته ددې مستثنٰی سره څه تعلق نشته دې.(٣)

**قوله: یخرج العواتق وذوات الخدور......أو......العواتق ذوات الخدور:**

**د روایاتو اختلاف:** په دې کښې درې روایتونه دی. رومبې روایت واؤ عاطفه سره دې یعنی د لفظ عواتق اولفظ ذوات په مینځ کښې واؤعاطفه دې. دویم روایت د واؤ عاطفه نه بغیردې او په دې صورت کښې ذوات الخدور به د عواتق دپاره صفت جوړیږی. اودریم روایت ذوات الخدور سره دې یعنی لفظ ذات مفرد ذکردې. شرح الکرمانی:۱۹۷/۳فتح الباری:۴۲۳/۱عمدة القاری:۴۵۱/۳.

**دلفظ خدر تحقیق:** خدور دخدر جمع ده اودا لفظ خدر دخاء کسره اودال سکون سره لوستلې کیږی. خدر هغه پردې ته وائی چه دپیغلې جینئی دپاره دکور په یوگوټ کښې لگولې شی دکومې شاته چه پیغله جینئی کینی.(٤)

ابن سیده فرمائی چه خدر هغه پردې ته وائی چه دپیغلې جینئی دپاره دکور په یوگوټ کښې راښکلې شی. اوبیاددې لفظ استعمال دهر هغه څیز دپاره شروع شوکوم چه پټولې شی.(٥) بعض وئیلی دی چه د خدر معنی هودج (ډولئی) ده. بعض خدر ته بیت یعنی دکور په معنی کښې اخلی.(٦)

علامه ملقن رحمه الله فرمائی خدر دبیت په معنی کښې اخستل ډیره لرې خبره ده(٧) د خدر جمع خدور نه علاوه أخدار هم مستعمل ده اوجمع الجمع أخادیر ده.(٨)

---

(١) النهایة لابن الأثیر: ۳۵/۱ دارالمعرفة التوضیح: ۱۱۷/۵ فتح الباری: ۴۲۳/۱ شرح الکرمانی: ۱۹۷/۳منحة الباری: ۶۵۴/۱عمدة القاری: ۴۵۱/۳.

(٢) شرح الکرمانی: ۱۹۷/۳ عمدة القاری: ۴۵۱/۳.

(٣) شرح الکرمانی: ۱۹۷/۳منحة الباری: ۶۵۴/۱عمدة القاری: ۴۵۱/۳.

(٤) النهایة لابن الأثیر: ۳۳/۱ ،لمکتبة العلمیة بیروت التوضح: ۱۱۷/۵فتح الباری: ۴۲۳/۱.

(٥) المخصص لابن سیده: ۳۸۸/۱دارإحیاء التراث العربی، المحکم والمحیط الأعظم: ۱۳۳/۵دارالکتب العلمیة عمدة القاری: ۴۵۱/۳.

(٦) المخصص لابن سیده: ۳۸۸/۱دارإحیاء التراث العربی، المحکم والمحیط الأعظم: ۱۳۳/۵دارالکتب العلمیة عمدة القاری: ۴۵۱/۳التوضیح:۱۱۷/۵.

(٧) التوضیح: ۱۱۷/۵.

**قوله:: ويعتزل الحيض المصلى**:: داخبر په معنی دامر دي او په يوروايت کښې ((ويعتزلن الحيض المصلى)) راغلې دې او داهم داسې دې لکه چه ((أكلوني البراغيث)) ونيلی شی.

**دحائضه ښځو دپاره دعيدګاه نه جدا پاتې کيدو حکم اودهغې حکمت**: جمهور حضراتود حائضه ښځې دپاره د عيدګاه نه جدا اپاتې کيدو حکم په استحباب باندې محمول کړې دې د کوم وجه چه داده عيدګاه د جمات په حکم کښې نه دې چه حائضه ښځې په دې کښې دداخليدونه منع کړې شی. البته د جمات په حکم کښې د نه کيدو نه باوجود هم دمنع کولووجه داده چه هسې هيڅ بې وجې د ښځودسرو سره ګډوډوالې اونه شی. ځکه چه دغه حائضه ښځې خو هسې هم مونځ نه کوی نو په عيدګاه کښې دداخليدو هم څه ضرورت نشته دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانی په دې مسئله کښې علامه کرمانی رحمه الله ډيره بعيدخبره کړې ده. چنانچه هغوی اول دعيدګاه نه لرې پاتې کيدو حکم ته واجب ونيلې اودعيدين دپاره وتلوته اوهلته حاضريدوته ئی مندوب ونيلې اوبيا روستو پخپله داامام نووی رحمه الله په حواله دعيدګاه نه د لرې پاتې کيدوحکم دعدم وجوب قول نقل کړې دې. اوددې تصويب ئی اوکړو. ((دا دعلامه کرمانی رحمه الله په کلام کښې واضح تضاددې چه هم يوه مسئله ئی دوو متضاد حکمونوسره متصف کړه)).(²)

ابن منير رحمه الله فرمانی چه دحائضه ښځودعيدګاه نه په جداپاتې کيدوحکمت دادې که چرې داښځې هم هلته حصارې شی سره ددې چه دوی له دمونځ ګذارو ښځوسره مونځ نه کول دی نو په دې کښې به ددغه حائضه ښځو سپکاوې اوتذليل کيږی. په دې وجه ددوی دپاره مستحب دادی چه د عيدګاه نه جدا لرې کينی.(³)

**قوله:: فقلت الحيض؟**: داهمزه د استفهام سره دې اوداد حضرت حفصه رحمها الله نه د حائضه ښځو په وتلوبندې دتعجب اظهاردې.(⁴)

**قوله:: وليشهدن الخير**: ددې جملې عطف ((تخرج العواتق)) باندې دې. په دې باندې دې دا اشکال نه وی چه امر په خبر باندې څنګه عطف کړې شو دا خوجائزنه دې؟ ځکه چه کله خبردشارع دطرف نه وی اويوشرعی حکم بيانولې شی نوداسې خبر طلب او په امر باندې محمول کيږی. لهذاپه دې وجه ددې امر عطف ((تخرج العواتق)) باندې صحيح او ټيک دې. ځکه چه ((تخرج العواتق)) هم ((لتخرج العواتق)) د امر په معنی کښې دې.(⁵)

**قوله:: أليس يشهدن**: همزه استفهاميه دې. د کشميهنی رحمه الله په روايت کښې ((ألست يشهدن؟)) لفظ ليس کښې تاء تانيث سره دې. اوداصيلی رحمه الله په روايت کښې ((ألس يشهدن؟)) لفظ ليس کښې

---

¹) المخصص لابن سيده: ۳۸۸/۱دارإحياء التراث العربی، المحکم والمحيط الأعظم: ۱۳۳/۵.
²) شرح کرمانی: ۱۹۸/۳فتح الباری: ۴۳۳/۱.
³) فتح الباری: ۴۳۲/۱.
⁴) شرح الکرمانی:۱۹۷/۳ عمدة القاری:۴۵۱/۳.
⁵) حواله بالا.

نون جمع سره دي.(۱) او په یو روایت کښې لیس (په حذف دهمزه استفهام) دي او د لیس اسم په دې تولو صورتونوکښې ضمیر شان دی.(۲)

**قوله:: وعرفة**: ولې حائضه ښځې دعرفات په ورځ په عرفات کښې نه حاضریږي؟ لهذا مضاف محذوف دی. **أي: یوم عرفة في عرفات**.(۳)

**قوله:: کذا وکذا**: **أي: نحو المزدلفة ونحو صلاة الاستسقاء**، یعنې دعرفات په شان مقام مزدلفه او د استسقاء د مونځ دپاره هم حاضریږي.(۴)

**احکام اومسائل**: ددې حدیث نه ډیر احکامو استنباط کړې شوې دې.① حائضه ښځه دې دحیض په حالت کښې هم دالله تعالی ذکرنه ترك کوي.(۵)

**د ښځوعیدګاه ته تللوسره متعلق دفقهاؤ اقوال**: ② دښځودعیدګاه ته د تلوسره متعلق مختلف اقوال دي. علامه خطابي رحمه الله فرمائي چه حائضه ښځې په مواطن خیر اومجالس خیرکښې حاضریدې شي، البته په مساجدکښې دې نه داخلیږي.(۶)

ابن بطال رحمه الله فرمائي چه په دې حدیث سره دحیض والاښځو او پاکو ښځودپاره په عیدین اواجماعات کښې دشرکت کولوجواز معلوم شو البته حائضه ښځې دې دعیدګاه نه جدا اوسي. باقي دعابه کوي آمین به وائي اوددغه مقدس اومکرم مجلس اومجمع برکتونه به حاصلوي.(۷)

علامه نووي رحمه الله فرمائي چه امام شافعي رحمه الله اود هغوی د اصحابو په نیزدښائسته اومعتدل صورت ښځونه علاوه د نورو ښځودپاره دعیدین وتل مستحب دي اود ښائسته ښځو وتل مکروه دي. علامه نووي رحمه الله فرمائي: «هذا هو المذهب والمنصوص» اود حدیث الباب جواب دادې چه دحضورپاك زمانه د خیر اوبرکت زمانه وه اود فتنې اوفساد نه په امن کښې وه. خودنن زمانه د فتنې اوفساد نه په امن کښې نه ده په دې وجه دعیدین په موقع دې بغیرد ښائسته اوقبول صورت ښځونه نوري ښځې شرکت کولې شي. او هم ددې فتنې اوفساد د وجې نه حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائیلې ووکه چرې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه امور لیدلې وې کوم چه دننن پس ښځو پیداکړي نوحضورپاك به دوی مساجد نه هم ضرور منع کولې. څنګه چه دبني اسرائیل ښځې منع کړې شوې وې.(۸)

قاضي عیاض رحمه الله فرمائي چه سلف کښې دښځودعیدین دپاره وتلوکښې اختلاف دی. یوجماعت دا صحیح اوګڼړل. په دوی کښې حضرت أبوبکر، حضرت علي اوحضرت ابن عمر رضي الله عنهم دي اودویم

---

(۱) عمدة القاري:۴۵۲/۳ إرشادالساري:۳۶۱/۱.
(۲) منحة الباري: ۶۵۵/۱.
(۳) شرح الکرماني:۱۹۸/۳عمدة القاري:۴۵۲/۳.
(۴) شرح الکرماني: ۱۹۸/۳منحة الباري:۶۵۵/۱.
(۵) شرح الکرماني:۱۹۸/۳عمدة القاري:۴۵۲/۳ منحة الباري:۶۵۵/۱.
(۶) أعلام الحدیث: ۳۲۹/۱.
(۷) شرح ابن بطال: ۴۴۶/۱شرح الکرماني:۱۹۸/۳عمدة القاري:۴۵۲/۳ منحة الباري:۶۵۵/۱.
(۸) شرح النووي علی صحیح مسلم: ۱۷۸/۶ دارإحیاء التراث العربي، التوضیح: ۱۱۸/۵المجموع شرح المهذب:۱۳/۵ مکتبة الإرشاد.

جماعت ممنوع ګرځولی دی په دوی کښې حضرت عروه، قاسم، یحیی بن سعید انصاری، امام مالك او امام ابویوسف رحمهم الله دی. (١)

حضرت عبدالله ابن مبارك رحمه الله فرمائی چه زه دننن صباښځې دعیدین دپاره وتل ناخوښه کوم. که چرې ښځې په وتلو باندې اصرارکوی نوبیادې په زړوکپړو کښې اوځی. که هغوی دغه شان په وتلو باندې راضی نه وی نوبیائی خاوندد وتلو نه منع کولې شی. (٢)

هم دغه شان دحضرت سفیان رحمه الله نه روایت دې چه هغوی به په خپله زمانه کښې دښځود عیدین دپاره وتل ناخوښه کول. هم داسې ابراهیم نخعی رحمه الله اویحیی انصاری رحمه الله به هم دښځودعیدین دپاره وتل ناخوښه کول. (٣)

دامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز دښځود عیدین دپاره وتل جائزوو خودې سره هغوی دا ناخوښه کول هم. چنانچه کله چه د امام احمدبن حنبل نه د ښځو باره دعیدین د وتلو متعلق سوال اوکړې شو نوهغوی رحمه الله اوفرمائیل: «لایعجبنی فی زماننا، لأنهن فتنة» یعنې زمونږ په دې دورکښې زما ددې ښځو دعیدین دپاره وتل خوښ نه دی ځکه چه ددوی د وجې نه د فتنې خطره ده. هم په دې وجه به امام احمد رحمه الله دې سره داهم فرمائیل که چرې خامخا اوځی نو لباس فاخره او خوشبوئی سره دې نه اوځی بلکه په خیرن حالت کښې دې اوځی.(٤) د امام احمد رحمه الله د اصحاب نه نقل دی چه اوس فتوی په دې باندې ده چه دښځودیومونځ دپاره هم وتل جائزنه دی ځکه چه اوس فتنه او فساد داول نه ډیرزیات دی. (٥)هم والبته د مشرانو اوبوډې ګانو ښځو وتلوکښې به ئی څه حرج نه ګڼړلو. چنانچه په یوبل روایت کښې دی چه کله دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه د عیدین دپاره دښځو متعلق تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائیل: «یفتن الناس إلاأن تکون امرأة طعنت فی السن»(٦)

امام مالك رحمه الله دډیر عمر او بوډې ګانې ښځودپاره په وتلوکښې هیڅ حرج نه ګڼړلو البته ځوانانې ښځې به ئی منع کولې. (٧)

امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه په شروع کښې د ښځودپاره عیدین کښې دوتلو اجازت اورخصت وو خو اوس زه دا ناخوښه کوم. دغه شان زه ددوی دجمعه دپاره اود نورو مونځونو دپاره وتل هم ناخوښه کوم. البته دبوډې ګانو ښځو د پاره صرف دسحر اوماسخوتن د مونځونودپاره دشرکت

---

(١) شرح النووی علی صحیح مسلم: ١٧٩/٦ دارإحیاء التراث العربی، التوضیح: ١١٨/٥.

(٢) جامع الترمذی أبواب عیدین باب فی خروج النساء فی العیدین رقم الحدیث:٥٣٩ التوضیح: ١١٨/٥ عمدة القاری:٤٥٢/٣.

(٣) جامع الترمذی أبواب عیدین باب فی خروج النساء فی العیدین رقم الحدیث:٥٣٩ التوضیح: ١١٨/٥ عمدة القاری:٤٥٢/٣.

(٤) کتاب الفروع لابن مفلح المقدسی: ٤٢٢/٢ مؤسسة الرسالة، والکافی فی فقه الإمام أحمد: ٥١٧/١ دارهجر للطباعة والنشر، المغنی لابن قدامة: ٣/٢٦٥-٢٦٤ کشف القناع عن متن الإقناع: ٥٢٩/١ عالم کتب، مسائل الإمام أحمدبن حنبل، بروایة ابن أبی الفضل صالح: ٤٦٨ الدار العلمیة بهند.

(٥) کتاب الفروع لابن مفلح: ٤٢٢/٢ مؤسسة الرسالة

(٦) کتاب الفروع لابن مفلح: ٤٢٢/٢ مؤسسة الرسالة.

(٧) البیان والتحصیل: ٤٣٠/١ دالغرب الإسلامی، الاستذکار: ٢٥٢/٧، ٢٥٤ دارقتیبة دمشق،بیروت و دارالوعی، حلب، قاهرة، المدونة الکبری، صلاة العیدین: ١٦٨/١ دار صادر.

رخصت دي. اوصاحبين رحمهما الله فرمائی چه د بوډي ګانو ښځودپاره په يومونځ کښې هم څه حرج نشته دې البته دځوانانوښځودپاره په يو مونځ کښې هم وتل مکروه دی. (۱)
ليکن اوس دمتاخرين فقهاء فتوى په دې ده چه ځوانې ښځې نه دجمعه دپاره وتلې شی نه دعيدين دپاره اونه د نورو مونځونودپاره دګورونونه وتل دهغوی دپاره جائزدی. صرف بوډي ګانوښځو له په عيدين کښې د شرکت اجازت دې. مګر په دې کښې هم بهترهم دا دی چه هغوی دې هم دعيدين دپاره نه اوځی. (۲). چنانچه علامه عينی رحمه الله فرمائی دنن په زمانه کښې فتوى دښځو على الاطلاق په نه وتلو باندې ده. خاص کر په ښاريوکښې على الاطلاق هم ممانعت کول پکاردی. (۳)
داحاديث وغيره نه معلوميږی چه دحضورپاک په زمانه کښې به ښځې د فرض مونځونو اوعيدين وغيره دپاره جماتونو ته راتلې اوپخپله دحضورپاک نه روايت دې: «لاتمنعوا إماء الله عن المساجد» يعنی د الله تعالى دا وينځې د جماتونونه مه منع کوئی. (۴) ليکن ددې ټولو باوجود فقهاء په دې مسئله کښې د تنګوالی طرف ته تلی دی. تردې چه متاخرين فقهاؤ ښځې د جماعات جمعه اوعيدين وغيره دپاره دوتلونه مطلقاً منع کړی دی. دکوم تائيدچه دحضرت عائشه رضی الله عنها دحديث نه هم کيږی په کوم کښې چه صديقه رضی الله عنها فرمائی که چرې حضورپاك هغه امور کتلې چه ښځو د حضورپاك نه پس پيدا کړی دی نوهغوی به ئی د مساجد نه منع کولې لکه څنګه چه د بنی اسرائيل ښځې منع کړې شوې وې. (۵)
دغه شان حضرت زبير بن عوام اود هغوی زوجه حضرت عاتکه بنت زيد رضی الله عنها واقعه چه د جمات طرف ته روانه وه نو حضرت زبير رضی الله عنه هغه د شانه اووهله اوپټ شو. دکومې نه پس چه د هغوی بی بيا جمات ته تلل ترک کړل. حضرت زبير بن عوام رضی الله عنه غوښتل چه حضرت عاتکه رضی الله عنها دې د مونځ دپاره جمات نه ځی مګر د نکاح په وخت دا شرط کيخودې شوې وو چه حضرت زبير رضی الله عنه به هغه د جمات تلو نه نه منع کوی. په دې وجه حضرت زبير رضی الله عنه دهغې دمنع کولودپاره دا حيله او طريقه اختيارکره چه په خانی راغله. (۶) هم دغه شان دعبدالله بن المبارك رحمه الله دښځو وتل ناخوښه کول. (۷)
نوددغه ټولوڅيزونونه هم دا معلوميږی چه د شارع په نظرکښې د ښځو وتل مرغوب او خوښ نه دی اونه ئی هغوی ته د مساجدتلوکښې ترغيب ورکړې دې او په نه حاضريدو باندې هغوی ته وعيدونه هم اورولی دی. خود ښځو متعلق درسول الله صلی الله عليه وسلم فرمان دې «صلاة المرأة فی بيتها أفضل من صلاتها فی حجرتها، وصلاتها فی مخدعها أفضل من صلاتها فی بيتها» اوس دا فرمان په ډير واضح انداز کښې په دې خبره

(۱) مختصر اختلاف العلماء للطحاوی: ۲۳۱/۱ دارالبشائر الإسلامية الاستذكار:۲۵۵/۷-۲۵۴ كتاب الحجة للإمام محمدالشيبانی باب خروج النساء إلى العيدين: ۳۰۶/۱ عالم الكتب.
(۲) بدائع الصنائع: ۲۷۵/۱ دارالكتب العلمية، لمبسوط للسرخسی ۲/۱ ٤المعرفة، فيض الباری: ۵۰۲/۱
(۳) عمدة القاری: ۴۵۲/۳.
(۴) سنن أبی داؤد كتاب الصلاة باب ماجاء فی خروج النساء ألی المساجد. رقم الحديث: ۵۶۵.
(۵) رواه البخاری فی الأذان باب انتظار الإمام يام الإمام العالم رقم الحديث: ۸۶۹ ومسلم فی صلاةٌ باب خروج النساء إلى المساجد إذا لم يترتب عليه فتنة وأنها لا تخرج مطيبة رقم الحديث:۹۹۹، وأبوداؤد كتاب الصلاة باب التشديد فی خروج النساء إلى المساجد رقم الحديث:۵۶۹.
(۶) الوافی بالوفيات عاتكة بنت زيد: ۳۱۹/۱۶.
(۷) جامع الترمذی أبواب عيدين باب فی خروج النساء فی العيدين رقم الحديث:۵۳۹ التوضيح: ۱۱۸/۵.

باندې دلالت کوی چه د شارع ﷺ رضامندی هم په دې کښې ده چه ښځې دې جماتونوته نه ځي. او هم دغه وجه ده چه په دوی باندې جمعه واجب کړې شوې هم نه ده. اوچرته چه هم ددوی دوتلو خبره کړې شوې ده نو ورسره داهم فرمائیلی شوی دی چه هغوی دې په خیرن حالت کښې اوځی ځان جوړولوسره او زیب اوزینت کولو سره دې نه اوځی ګنی قسم قسم فتنې اوفسادونه به راؤچت شی.
دا ټول دشارع ﷺ د طرف نه ذکرکړې شوې امور او اشارات دی دکوم په وجه چه فقهاء کرام حضرات په دې مسئله کښې په تنګنی پیداکولوباندې مجبور شو، تردې چه هغوی د ښځو په وتلوباندې مکمل پابندی اولګوله اودا پابندی داحادیثو خلاف نه ده . اوبیا د ښځودپاره په عیدین کښې وتل د اخترد مونځ دپاره نه وو لکه څنګه چه ګمان کولې شی بلکه ښځې به ئې دتکثیر سوادالمسلمین په غرض سره اومسلمانانوسره په دعاکښې د شرکت په غرض سره ځان سره بوتللې. ګنی که چرې د مونځ دپاره وتلې نوبیا د حائضه ښځود وتلو څه فائده وه؟ (۱)
**په حدیث باب سره په ښځوباندې داخترد مونځ دوجوب استدلال صحیح نه دې:** ③ بعض حضراتو ددې روایت نه په دې مسئله باندې استدلال کړې دې چه په ښځو باندې هم داخترمونځ واجب دې ځکه چه په اتفاق صرف دحائضه ښځو حکم بیان شوې دې چه دسر نه دمونځ مکلف نه وی. البته د ټولو دویستلو مقصد دمونځ اهمیت اوضرورت دالتزام خودل، په اعمال خیرکښې دشرکت دعوت ورکول اود جمال اسلام مظاهر کول وو. علامه قشیری رحمه الله فرمائی چه ښځې به ئې په دې وجه ویستلې ځکه چه مسلمانان دغه وخت ډیرکم وو نوښځې ئې د تکثیر سوادالمسلمین په غرض ویستلې. (۲)
④ چه دهریو طاعت اوعبادت دپاره وتل وی نودضرورت په وخت د بل نه عاریةً کپړې غوښتل جائزدی. (۳)
⑤ ښځې د ضرورت په وخت په غزوات کښې هم شرکت کولې شی اودزخمیانو مرهم پټئی کولې شی سره ددې چه هغه مجاهدین دهغوی محارم نه وی. (۴)
⑥ دښځې خبر قبلول جائز دی. (۵)
⑦ که چرې راوی صحابی دې لیکن نوم ئې معلوم نه دې نودهغه نه هم روایت نقل کول صحیح دی په دې شرط چه دهغه د اوسیدو ځائی (مسکن) بیان کړې شوې وی اودهغې طرف ته لارخودنه اوکړې شی. (۶)
⑧ «کنانداوی» په دې جمله سره دې طرف ته اشاره ده چه داسې امور بیانول هم جائز دې چه د حضور پاک په زمانه مبارکه کښې موجود خو وو مګر کله حضورپاك دهغې خبر نه دې ورکړې. (۷)
⑨ بغیرد لوپټې څادر په سرکولونه دښځې بهر وتل منع دی. (۱)

---

(۱) تعلیقات علی کتاب الحجة علی أهل المدينة: ۱/۳۰۷-۳۰۶.
(۲) التوضیح: ۵/۱۱۹عمدة القاری:۳/۴۵۲.
(۳) التوضیح: ۵/۱۱۹شرح الکرمانی:۳/۱۹۸عمدة القاری:۳/۴۵۲ منحة الباری:۱/۶۵۵
(۴) حواله بالا.
(۵) حواله بالا.
(۶) حواله بالا.
(۷) شرح الکرمانی:۳/۱۹۸عمدة القاری:۳/۴۵۲

⑩ حائضه عرفه ته تلې شي.[2]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** په دواړو كښې مناسبت بالكل واضح دې ځكه چه په دواړو كښې دحائضه ښځو د عيدين دپاره وتلو اودعيدګاه نه د جدا اوسيدلو بيان دې.[3]

## ٢٤ - باب: إِذَا حَاضَتْ فِي شَهْرٍ ثَلَاثَ حِيَضٍ، وَمَا يُصَدَّقُ النِّسَاءُ فِي الْمَحِيضِ وَالْحَمْلِ، فِيمَا يُمْكِنُ مِنَ الْحَيْضِ.

لِقَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ﴾/البقرة: ٢٢٨/.

دباب ددې خبرې په بيان كښې دې چه كله په يوه ښځه په يوه مياشت كښې درې حيضه راشي او (په هغه بيان كښې) چه دښځې دحيض تصديق دحيض اوحمل باره كښې په هغه ځيزونوكښې به كولې شي كوم چه دحيض په سلسله كښې ممكن وي ځكه چه دالله تعالى ارشاد دې "اودښځوپاره داحلال نه دى چه هغوى دې هغه ځيز پټ كړى كوم چه الله تعالى د هغوى په رحم كښې پيدا كړې دې".

**ماقبل سره ربط:** دد باب سابقه باب سره ربط دادې چه په دواړوابواب كښې د حيض سره متعلق احكامو تذكره ده.[4]

**د ترجمة الباب مقصد:** په دې ترجمة الباب كښې دامام بخارى رحمه الله مقصد داخودل دى چه كه يوه ښځه دا دعوى اوكړى چه په يوه مياشت كښې درې ځل حيض راغلې دې. نودهغې په دې دعوى كښې به تصديق كولې شى په دې شرط چه دعوى دداسې مودې سره متعلق وى چه ددريو حيضو دتيريدو احتمال لرى. اودغه شان دحمل په معامله كښې به هم دښځې خبره معتبره وى. چنانچه مذكوره آيت هم په دې خبره باندې دلالت كوى چه دښځې قول به معتبر وى. هم دغه شان جمله تعليقات هم په دې خبره باندې دلالت كوى چه دحيض دمودې هيڅ تحديد نشته دې بلكه دامعامله ښځې ته حواله ده. البته شرط په كښې دادې چه دغه دعوى نې په امكانى حد كښې وى.[5] چنانچه علامه كاسانى رحمه الله فرمائى كه يوه ښځه دخپل عدت دختميدو خبر وركړى اوداسې موده اوښائى په كوم كښې چه واقعةً د يوې ښځې عدت تيريدې شى نودهغې قول به قبلولې شى. ليكن كه چرې داسې موده اوښائى په كوم كښې چه عدت نه شى تيريدې نوبيا به د ښځې قول هم معتبر نه وى اودعدت دتيريدو په معامله كښې دا حكم ځكه دې ځكه چه الله تعالى ښځه امانتداره جوړه كړې ده. چنانچه دالله تعالى ارشاد دې: ﴿وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ﴾ اود جګړې په وخت هم دامين قول په قسم سره معتبر وى. لهذا كه چرې ښځې د عدت دتيريدو امكانى حد بيان كړو نودهغې قول به قبلولې شى اوكه

---

[1] فتح البارى: ٤٢٣/١ عمدة القارى: ٤٥٢/٣ منحة البارى: ٦٥٥/١

[2] عمدة القارى: ٤٥٢/٣.

[3] عمدة القارى: ٤٥٢/٣.

[4] عمدة القارى: ٤٥٣/٣.

[5] شرح تراجم البخارى: ٢٨ الكنز المتوارى: ٢٩٠/٣ الأبواب والتراجم: ٦٧ وهوالمفهوم من كلام العلامه العينى والحافظ ابن حجر رحمهماالله.

امکانی حد نی بیان نه کړو نودهغې قول به هم معتبرنه وی ځکه چه دامین قول صرف په هغه امورو کښې معتبر وی دکوم چه ظاهر تکذیب نه کوی.[1]

**د شیخ الحدیث زکریا رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمانی چه شراح کرامو د امام بخاری رحمه الله غرض سره متعلق هیڅ قسم کلام نه دې کړې اوزما په نیز امام بخاری رحمه الله دوه مسئلې بیانول غواړی:

① رومبې مسئله یوه اختلافی مسئله ده او هم په دې باندې په ترجمة الباب کښې ذکردعوی متفرع دې اود ائمه اربعه په مینځ کښې هغه اختلافی مسئله د حیض دمودې مسئله ده اوهم په دې اختلافی مسئله باندې په یومیاشت کښې ددریو حیضو تیریدو دعوی متفرع ده اوداسې دترجمة الباب داجز د اصول تراجم نه اتلسم اصل سره متعلق دې.

② دویمه هم هغه مسئله ده دکومې تصریح چه «**وما یصدق النساء فی الحیض والحمل فیما یمکن من الحیض**» کښې پخپله امام بخاری رحمه الله کړې ده. یعنی دحیض اوحمل په معامله کښې به دښځې د قول تصدیق کولې شی په دې شرط چه دعوی نی په امکانی حد کښې وی.[2]

«**فیما یمکن من الحیض**»: داجمله "**یصدق**" سره متعلق ده اومطلب دادې چه دښځې ددعوی تصدیق به کولې شی. ترکومې چه تکراردحیض ممکن وی اوهم ددې دپاره «**فیما یمکن من الحمل**» اونه ونیلې شو ځکه چه تکرار حمل سره متعلق په دعوی کښې تصدیق کول هیڅ معنی نه لری.[3]

**لقول الله تعالی: ﴿وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ﴾**

"**لقول الله**" کښې لام تعلیلیه دې اودا آیت د "**مایصدق**" علت دې. د آیت مبارك نه استدلال داسې دې چه دلته ښځې له درحم دحالت د اظهارتاکید کړې شوې دې دکوم نه چه معلومیږی په دې باره کښې به د ښځې بیان معتبروی ځکه چه که چرته ددې بیان معتبر نه وی نوبیا به دا دننه د رحمی حالت په اظهارباندې مجبورول بې معنی شی. په دننه رحمی حالت په اظهار باندې مجبورول ددې خبرې واضح دلیل دې چه په دې باره کښې به دښځې بیان معتبروی.[4]

امام طبری رحمه الله د امام زهری رحمه الله نه په صحیح سندسره روایت کوی چه ﴿مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ﴾ نه مراد حمل یا حیض دې نودښځودپاره حلال نه دی چه هغوی دا پټ کړی (په دې غرض سره چه) عدت پوره او شمیرلې شی اودخاوند نه خلاصې حاصل کړې شی اوهغه رجوع اونه کړې شی.[5] هم دغه شان حسن سندسره دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې «**لا یحل لها إن کان حائضاً أن تکتم حیضها، ولا إن کانت**

---

[1]) بدائع الصنائع کتاب الطلاق، فصل: بیان مایعرف به انقضاء العدة: ۱۹۸/۳دارالکتاب العربی.
[2]) الکنزالمتواری: ۱۹۰/۳الأبواب والتراجم:۶۷
[3]) شرح الکرمانی: ۱۹۹/۳عمدة القاری: ۴۵۳/۳.
[4]) شرح انکرمانی: ۱۹۹/۳فتح الباری: ۴۲۵/۱عمدة القاری: ۴۵۳/۳.
[5]) تفسیر الطبری، تفسیر سورة البقرة: ۲۲۸رقم الحدیث: ۴۷۲۷،ج: ۴ص:۵۱۶ مؤسسة الرسالة.

حاملاًأن تکتم حملها»(۱)بل امام مجاهد رحمه الله ددې آیت په تفسیر کښې فرمائي: «لاتقول: أني حائض ولیست بحائض، ولالست بحائض وهي حائض»(۲)

**دائمه اربعه په مینځ کښې یوه اختلافي مسئله:** شاته داخبره تیره شوې ده چه دحضرت شیخ الحدیث زکریا رحمه الله په نیز دامام بخاري رحمه الله مقصد دوه مسئلې ذکرکول دي. دویمه مسئله خوبالکل واضحه ده.البته رومبۍ مسئله کومه چه دائمه اربعه په مینځ کښې یواختلافي مسئله ده،دهغې تفصیل دادې:

دائمه اربعه په مینځ کښې د حیض اوطهر نه دهریو په تحدید کښې اختلاف دې. دحیض متعلق د احنافو مسلك دادې چه دحیض د کم نه کمه موده درې ورځې او درې شپې دی اوددې دزیات نه زیاته موده لس ورځې دی. دامام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز دحیض دکم نه کمه موده یوه ورځ اویوه شپه ده اود زیات نه زیاته موده پنځلس ورځې یا اوولسم ورځې ده. ددواړو حضر اتو دوه دوه اقوال دی. دامام مالك رحمه الله په نیز دحیض دکم نه کم هیڅ حد نشته دې اود زیات نه زیات اوولس یا اتلس ورځې دي او په مختصر الخلیل کښې دی چه دمبتدۀ دپاره دحیض د زیات نه زیاته موده پنځلس ورځې دی. طهر سره متعلق دامام احمد رحمه الله مسلك دادې چه دطهر دکم نه کم موده دیارلس ورځې دی اودائمه ثلاثه په نیز پنځلس ورځې دی.

نور داچه یوه بله مسئله هم ده چه بغیرد څه اختلاف دټولو په نیز دمطلقه عدت درې "قروء" دی لیکن ددې په مراد کښې اختلاف دې. د احنافو په نیز د قروء نه مراد حیض دې اوهم دا مذهب دامام احمد رحمه الله هم دې، دکوم طرف ته چه هغوی رجوع کړې ده. دهغوی رومبۍ قول دادې چه دقرء نه مراد طهردې اوهم دغه دامام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله مذهب دې. اوداسې که یو سړې خپلې بي بي ته په طهر کښې طلاق ورکړی نوهغه طهربه هم په عدت کښې شمیرلې کیږي اوښځه به دده یو طهر نه پس نور دوه طهرونه انتظارکوي.(۳) ددې دوو تمهیدي خبرونه پس به اوس په اصل مسئله باندې پوهیدل څه قدرې آسان شي کومه چه په ترجمة الباب کښې ذکرده. یعنی که یوه ښځه په یوه میاشت کښې ددریو حیضو تیرولو دعوی اوکړي نوآیا دداسې ښځې د تصدیق د ائمه اربعه په مذاهب کښې ګنجائش شته یا څه تاویل وغیره دې؟ نوجواب دادې چه دامام احمد رحمه الله د سابقه قول په عدت کښې به د طهر اعتبارکیږي، په اعتبارسره به دښځې ددې دعوی تصدیق کولې شي. بلکه ددې قول په اعتبار سره دښځې دعوی ۲۸ورځو او دد ساعتونوکښې صادق راځي دکوم صورت چه دادې:

خاوند په آخري طهر کښې ښځې ته طلاق ورکړو چه دحیض په شروع کیدوکښې یوه ګهړئی اویوساعت باقي وو. بیا ددې نه پس یوه ورځ د حیض اودیارلسمه ورځ او یوساعت دحیض په کوم کښې چه د آخري طهر انتهااوشوه دا هم ټول څوارلس ورځې او یوساعت شو. داسې ټول ۲۸ ورځې او دوو ساعتونو کښې ددې ښځې عدت پوره کیږي.(۴)

ابن المنذر رحمه الله فرمائي چه دانقضاء عدت هغه دکم نه کمه موده په کوم کښې چه د ښځې ددعوی تصدیق کیدې شي په دې کښې د ائمه اختلاف دې. دحضر ت علي رضي الله عنه او حضرت شریح رحمه الله نه نقل

۱) تفسیر الطبري، تفسیر سورة البقرة: ۲۲۸رقم الحدیث: ۴۷۳۴،ج:٤ص:۵۱۸ مؤسسة الرسالة.

۲) تفسیر الإمام مجاهد، تفسیر سورة البقرة:۱/۳۰دارالکتب العلمیة، فتح الباري: ۱/۴۲۵ عمدة القاري: ۳/۴۵۳.

۳) شرح ابن بطال: ۱/۴۴۸فتح الباري لابن رجب: ۲/۱۴۸-۱۴۵.

۴) شرح ابن بطال: ۱/۴۴۸.

دي چه که یوه ښځه دا دعوی اوکړي چه په هغې باندې په یوه میاشت کښې درې حیضه راغلي دی اود ګواه په توګه عادل ښځې هم پیش کړي نوددې تصدیق به کولې شي اوهم دغه دامام احمد رحمه الله مذهب دې. اودا دامام احمد رحمه الله د قول مرجوع عنه په اعتبار سره بالکل واضح دی. دغه شان د امام احمد رحمه الله قول مرجوع الیه (په عدت کښې به دحیض اعتبارکیږي) په اعتبار سره هم په یو میاشت کښې د دریو حیضو تیریدو دعوی صادق کیدې شي.[1]

چنانچه امام موفق الدین رحمه الله فرمائي چه ددوو حیضونو په مینځ کښې کمه موده دطهر دیارلس ورځې دی ځکه چه د امام احمد رحمه الله کلام په دې مسئله کښې مختلف نه دې چه دعدت په یو میاشت کښې تیریدل ناممکن دی په دې شرط چه ګواه قائم کړي اوبیا دا اثر علي وشریح رضي الله عنهما نه استدلال اوکړو.

هم دغه شان دامام مالك رحمه الله په نیز ۳۰ورځو او څلورو ساعتونوکښې ددعوی تصدیق کیدلې شي دکوم صورت چه دادې چه خاوند په آخر طهرکښې طلاق ورکړو. لهذا یو ساعت به ددغه طهر شمیرلې کیږي په کوم کښې چه طلاق ورکړې شو. بیا یوه لحظه د حیض (ځکه چه دامام مالك رحمه الله په نیزداقل حیض هیڅ حد نشته هغه د یوې لحظې اویوساعت دپاره هم کیدې شي) بیا پنځلس ورځې دطهر. دا ټول پنځلس ورځې اودوه لحظې شوې، بیا یوه لحظه د حیض بیا پنځلس ورځې د طهر اوبیا یوه لحظه دحیض په کوم کښې چه داخیر طهر اخیراوشو نودا هم ټول پنځلس ورځې او دوه لحظې شوې اوداسې ټولې ۳۰ورځې او څلور ساعتونه او لحظوکښې عدت پوره کیدې شي.

لیکن دامام شافعي رحمه الله په مذهب کښې یوه میاشت کښې درې حیضونه تیریدل مشکل دی. بلکه کم نه کم ۳۲ورځې او دوه لحظې پکاردي، نوبیا تصدیق ممکن دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دقرء نه مراد طهردې اواقل طهر د پنځلسو ورځو وی اواقل حیض یوه ورځ اویوه شپه دې. نوداسې به ۳۲ورځو دووساعتونو او دوو لحظوکښې عدت پوره شي. ددې صورت دادې چه خاوند په آخر طهرکښې طلاق ورکړو یوه لحظه په دې طهرکښې شمیرشوه بیا یوه ورځ د حیض بیا پنځلس ورځې د طهر، دا ټول ۱۶ورځې او یوه لحظه شوه. بیایوه ورځ دحیض او پنځلس ورځې دطهر او یوه لحظه دحیض په کوم کښې چه طهر آخیر پوره شو نوداهم ټولې ۱۶ورځې او دوه لحظې شوې نوټولې ۳۲ورځې او دوه لحظې جوړیږي.[2]

په دې مسئله کښې داحنافو په نیز روایات ډیر زیات مختلف دی. البته د شراح کرام په نیز چه کوم روایات مشهور دی هغه دادی چه دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د ۶۰ ورځونه په کمه موده کښې ددې ښځې ددې دعوی تصدیق نه شي کیدې. اود صاحبین رحمهماالله په نیز ۳۹ ورځونه په کمه موده کښې تصدیق نه شي کیدې. اوددې وجه داده چه داحنافو په نیزدعدت اعتبارحیض سره دې. نو د عدت دپاره درې حیضونه تیرول ضروري دی اوداحنافو په نیز دحیض دکم نه کمه موده اوزیات نه زیاته موده دواړه متعین اومحدود دی اوداکثر طهر څه حدنشته دې، لیکن ددې دکم نه کمه موده پنځلس ورځې دی. دامام ابوحنیفه رحمه الله د قول توجیه داده چه داخو کیدې نه شي چه مونږ دحیض او طهر دهرو یو د کم نه کمه موده واخلو بلکه د اعتدال لار خوداده چه دیوطرف نه دکم نه کمه موده او بل طرف نه دزیات نه زیاته موده واخستې شي اوچونکه د طهر د زیات نه زیات مودې څه حد نشته

---

[1] ) کما سیتضح بالجدول.

[2] ) شرح ابن بطال: ۱/۴۴۸.

دي. په دې وجه لامحاله دطهر دكم نه كمه موده اودحيض اكثر موده به اخستې شي نوداسې بالكل واضحه ده چه دعدت مجموعه به شپيته ۶۰ ورځې جوړيږي.(۱)

علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد شپيتو ورځونه په كمه موده كښې د ښځې تصديق نه شي كولې په دې شرط چه ښځه د ذوات الحيض نه وي ځكه چه عادت دادې چه داسې نه كيږي چه ښځه دې د كم طهر اوكم حيض والاوي. ځكه چه كله د يوې ښځې د حيض ايام زيات وي نوبيا دهغې طهر د كمې مودې وي اوكله چه طهر كم وي نوحيض زيات وي. دصاحبين رحمهما الله دقول توجيه داده چه د كم نه كمه موده په كوم كښې چه د يوښځې تصديق اوكړې شي، ددې دپاره ضروري دی چه ددوو طرفونونه په هريوكښې كمه موده واخستې شي اوداسې نهه ورځې درې حيضه اوديرش ورځې دوه طهر تول چه يوځائې كړې نو يوكم څلويښت ورځې شو.(۲)

ددې ټولو مسلكونود وضاحت دپاره دا لاتدينئې نقشه پيش خدمت ده:

| مسالک | الطهر الذی طلق فيه | الحيض الأول | الطهر بعده | الحيض الثانی | الطهر بعده | بدء الحيض الثالث | الذی تمت فيه العدة |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عندمالک | لحظة | لحظة | ۱۵یوم | لحظة | ۱۵یوم | لحظة | فالمجموع ثلاون يوما وأربع لحظات |
| عندالشافعی | لحظة | يوم | ۱۵یوم | يوم | ۱۵یوم | لحظة | فالمجموع إثنان وثلاثون يوما و لحظتان |
| عندأحمد فی المرجوع عنه | لحظة | يوم | ۱۳یوم | يوم | ۱۳یوم | لحظة | فالمجموع ثمانية وعشرون يوما و لحظتان |

فالمجموع عند الإمام مالك ثلاثون يوماً وأربع لحظات، وعند الإمام الشافعي إثنان وثلاثون يوماً ولحظتان، والمجموع عند الإمام أحمد ثمانية وعشرون يوماً ولحظتان

| مسالک | الطهر الطلاق | الحيض الأول | الطهر بعده | الحيض الثانی | الطهر بعد | الحيض الثالث | المجموع |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عندامام أبی حنيفه | لحظة | ۱۰أيام | ۱۵یوم | ۱۰أيام | ۱۵یوم | ۱۰أيام | ۶۰فالمجموع ستون يوما |
| عندصاحبيه | لحظة | ۳یوم | ۱۵یوم | ۳یوم | ۱۵یوم | ۳یوم | ۳۹فالمجموع تسعة وثلاثون يوما |
| عندأحمد فی المرجوع اليه | لحظة | يوم | ۱۳یوم | يوم | ۱۳یوم | يوم | ۲۹فالمجموع تسعة وعشرون يوما |

فالمجموع عند الإمام الأعظم رحمه الله ستون يوماً، وعند صاحبيه رحمهما الله تسعة وثلاثون يوماً، والمجموع عند الإمام أحمد تسعة وعشرون يوماً.(۳)

---

(۱) بدائع الصنائع كتاب الطلاق فصل فی بيان مايعرف به انقضاء العدة: ۱۹۸/۳دارالكتاب العربی.

(۲) شرح الكرمانی: ۱۹۹/۳شرح ابن بطال: ۴۴۸/۱.

(۳) الكنزالمتواری: ۲۹۲/۳-۲۹۱.

وَيُذْكَرُ عَنْ عَلِيٍّ وَشُرَيْحٍ: إِنِ امْرَأَةٌ جَاءَتْ بِبَيِّنَةٍ مِنْ بِطَانَةِ أَهْلِهَا، مِمَّنْ يُرْضَى دِينُهُ، أَنَّهَا حَاضَتْ ثَلَاثًا فِي شَهْرٍ، صُدِّقَتْ وَقَالَ عَطَاءٌ: أَقْرَاؤُهَا مَا كَانَتْ. وَبِهِ قَالَ إِبْرَاهِيمُ. وَقَالَ عَطَاءٌ: الْحَيْضُ يَوْمٌ إِلَى خَمْسَ عَشْرَةَ. وَقَالَ مُعْتَمِرٌ: عَنْ أَبِيهِ: سَأَلْتُ ابْنَ سِيرِينَ، عَنِ الْمَرْأَةِ تَرَى الدَّمَ بَعْدَ قُرْئِهَا بِخَمْسَةِ أَيَّامٍ؟ قَالَ: النِّسَاءُ أَعْلَمُ بِذَلِكَ.

قوله: وَيُذْكَرُ عَنْ عَلِيٍّ وَشُرَيْحٍ: إِنِ امْرَأَةٌ جَاءَتْ بِبَيِّنَةٍ مِنْ بِطَانَةِ أَهْلِهَا، مِمَّنْ يُرْضَى دِينُهُ، أَنَّهَا حَاضَتْ ثَلَاثًا فِي شَهْرٍ، صُدِّقَتْ: يعني دحضرت علی رضي الله عنه اوحضرت شريح رحمه الله نه نقل دی که چرې ښځه دخپل کورد خاص کسانونه څوك ګواه راوړی چه دهغې په يوه مياشت کښې درې ځل حيض شوې نودهغې تصديق به کولې شی.

## تراجم رجال

**علي**: دا اميرالمؤمنين سيدنا علی بن ابی طالب بن هاشم بن عبدمناف هاشمی مکی مدنی رضي الله عنه دې. ابوالحسن ددوی کنيت دې.[1] او حضورپاك د ابوتراب په کنيت سره رابللې وو.[2]
ددوی حالات كتاب العلم باب إثم من كذب على النبي صلى الله عليه وسلم لاندې تيرشوی دی.[3]

**شريح**: دامشهور تابعي او امام شريح بن الحارث بن قيس بن الجهم بن معاويه بن عامر کندی کوفی قاضی رحمه الله دې. ددوی کنيت ابواميه دې اوده ته شريح بن شرجيل او ابن شرجيل هم وئيلې شي. ددوی باره کښې وئيلی شی چه دې د اولاد فرس نه ووچه يمن ته راغلې وو اوآبادشوی وو. دوی د حضورپاك زمانه کښې وو خوشرف ملاقات ورته نه دې حاصل شوې. حضرت عمر رضي الله عنه دی دکوفې ګورنرمقررکړې وو اودحضر علی رضي الله عنه ددور پورې په دغه عهده دقضاء فائز وو. اوآخر دخپله دحجاج بن يوسف په دورکښې دقضاء دعهدې نه لاس واخستو.[4]
يوقول ددوی د صحابی کيدو هم دې مګر هغه صحيح نه دې بلکه صحيح دادې چه دې دهغه کسانونه دې چه دحضورپاك په ژوندکښې ايمان قبول کړې (مګرشرف ملاقات ورته نه دې حاصل شوې) اود حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه په زمانه کښې د يمن نه (مدينې طيبې طرف) ته کوچ اوکړو.[5]
هغوی د حضورپاك نه ارسال سره روايت کړې دې. دحضورپاك نه علاوه د حضرت عمر حضرت علی حضرت ابن مسعود حضرت عروه البارقی اوحضرت عبدالرحمن بن ابی بکر رضي الله عنهم نه هم روايت دحديث کړې.
اودهغوی نه ابووائل شقيق بن سلمه، عامر شعبی، ابراهيم نخعی، انس بن سيرين، سعيد بن حيان تيمی، شريح ابن الحارث (ددوی نه علاوه دې) عطاء بن السائب، قيس بن حازم، ابوحصين عثمان بن

---

[1] تهذيب الكمال: ۲۰/۴۷۲.
[2] صحيح البخاری كتاب الصلاة باب نوم الرجال فی المسجد رقم الحديث: ۴۴۱.
[3] كشف الباری: ۴/۱۴۹.
[4] تهذيب الكمال: ۱۲/۴۳۶مؤسسة الرسالة تهذيب التهذيب: ۴/۲۸۷ دارالفكر تهذيب الأسماء واللغات ۱/۲۴۳دارالكتب العلمية وإدارة الطباعة المنيرية، سير أعلام النبلاء: ۴/۱۰۰ مؤسسة الرسالة عمدة القاری: ۳/۴۵۳.
[5] سير أعلام النبلاء: ۴/۱۰۰ مؤسسة الرسالة.

عاصم اسدی، محمدبن سیرین، مغیره ثقفی (دهشام بن مغیره پلار) او ابن ابی صفیه رحمهم الله وغیره دحدیث روایت کړې دې.[1]

حضرت عمر رضي الله عنه چه د حضرت شریح رحمه الله طرف ته (د هغه دکوفې دقاضي جوړیدونه پس) کوم خط ورلیکلې وو هغه دادې: «إذا أتاك أمر في كتاب الله، فاقض به، فإن لم يكن في كتاب الله وكان في سنة رسوله، فاقض به، فإن لم يكن فيهما، فاقض بما قضى به أئمة الهدى، فإن لم يكن، فأنت بالخيار، إن شئت تجتهد رأيك وإن شئت تؤامرني، ولا أرى مؤامرتك إياي إلا أسلم لك».[2]

شریح رحمه الله فرمائی چه زه د حضرت عمر علی حضرت عثمان حضرت معاویه رضي الله عنهم یزیدبن معاویه او عبدالملك ددې ټولو په دروکښې د قضاء په عهده باندې مور ووم تردې چه دحجاج بن یوسف دور شروع شو نوهغه وخت ما حجاج ته د دغه قضاء د عهدې نه استعفی ورکړه د حضرت شریح ۱۲۰ کال عمر وو حجاج ته استعفی ورکولنه پس یو کال ژوندې وو اوبیا ددې فانی دنیانه رحلت اوکړو.[3]

ابن المدینی رحمه الله فرمائی چه شریح رحمه الله ۵۳ کالوپورې د کوفې قاضي پاتې دې اود زیاد بن معاویه په دورکښې اوه کاله د بصرې هم والی پاتې دې.[4] اوحفص بن عمر رحمه الله فرمائی چه حضرت شریح رحمه الله ۶۰ کالو پورې دقضاء په عهده پاتې دې.[5] حضرت شریح رحمه الله دحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه علم حاصل کړې.[6] یحیی بن معین رحمه الله فرمائی «شريح بن هانئ كوفي وشريح بن أطاة كوفي، وشريح القاضي أقدم منهما وهو ثقة» یعنی حضرت شریح القاضی اول الذکر ددواړو حضراتو نه مقدم اوثقه وو.[7] اما عجلی رحمه الله فرمائی «كوفي تابعي ثقة».[8] محمدبن سیرین رحمه الله فرمائی «كان شريح شاعراً وكان زاجراً وكان قائفاً وكان كوسجاً وكان قاضياً» یعنی شریح رحمه الله شاعر هم وو دړهکه کونکې هم وو د آثارو تتبع کونکې هم وو دکمو وینتو والا هم وو اواقضی هم وو. نور فرمائی چه ما په کوفه کښې څلور صرف داسې شخصیات لیدلی دی چاته چه په فقه کښې خاص مهارت حاصل وو: ① حارث الاعور ② علقمه بن قیس ③ عبیدة السلمان ④ قاضی شریح.[9] ابن حبان ددوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[10]

حضرت شریح رحمه الله به د سنن او آثار ډیرزیات خیال ساتلو چنانچه هغوی پخپله فرمائی «إنما أقتفي بالأثر، فما وجدت في الأثر، حدثتكم» یعنی زه آثار اوسنن لټوم اوبیاچه څه هم زه په هغه آثاروکښې وینم هغه تاسو خلقو ته بیانوم.[11]

---

[1] ) تلامذه او مشائخ دپاره اوګورئ تهذيب الكمال: ۴۳۷/۱۲.
[2] ) سير أعلام النبلاء: ۱۰۱/۴.
[3] ) تهذيب الكمال: ۴۳۷/۱۲ تهذيب التهذيب: ۲۸۷/۴.
[4] ) تهذيب الكمال: ۴۳۷/۱۲ تهذيب التهذيب: ۲۸۷/۴.
[5] ) تهذيب الكمال: ۴۳۷/۱۲.
[6] ) تهذيب الكمال: ۴۳۸/۱۲ تهذيب التهذيب: ۲۸۷/۴.
[7] ) الجرح والتعديل: ۳۲۳/۴ تهذيب الكمال: ۴۳۸/۱۲ تهذيب التهذيب: ۲۸۷/۴.
[8] ) معرفة الثقات للعجلي: ۴۵۱/۱.
[9] ) تهذيب الكمال: ۴۳۸/۱۲ تهذيب التهذيب: ۲۸۸/۴ دار الفكر.
[10] ) ۳۵۲/۴ دار الفكر.
[11] ) تهذيب الكمال: ۴۴۲/۱۲.

چنانچه د امام شعبي رحمه الله نه روايت دې چه قاضي شريح رحمه الله له يوسړي راغلو اوهغه د ګوتو ددیت باره كښې سوال اوكړو نوحضرت شريح رحمه الله اوفرمائيل عشر عشر، نودغه سوال كونكي دحيرانتيا اظهاراوكړو اود «خنصر او ابهام طرف ته اشاره كولوسره» وئې وئيل آيا دا دواړه ګوتې برابردي؟ په دې باندې شريح رحمه الله د سوال كونكي نه تپوس اوكړو ولې غوږ او لاس دواړه برابر دی؟ او په دې دواو كښې نصف نصف ديت لازم دې اوبيائې سائل مخاطب كولو سره اوفرمائيل "ويحك" يعنی ته خوارشې سنت ستا په قياس باندې مقدم دې نوهم ددې اتباع كوه اوبدعات مه ايجاد كوه څكه چه تركومې ته سنت نيولې ساتې نوهيڅ كله به نه ګمراه كيږې. (۱)

ابونعيم رحمه الله فرمائي «كان شريح يقضي بقضاء عبدالله» (۲)هم ابونعيم رحمه الله په خپل سندسره روايت كوى چه هغوى (شريح رحمه الله) دحضورپاك په خدمت كښې حاضر شو اواسلام ئې قبول كړو اوبياحضورپاك ته اوفرمائيل چه په يمن كښې په كافي شمير كښې زما اهل بيت هم موجود دی نوحضورپاك اوفرمائيل چه هغوى هم راوله. چنانچه هغه واپس شو اوهغه ټول ئې د حضورپاك په خدمت كښې حاضر كړل مګر ترهغه وخته پورې حضورپاك د دنيا نه رحلت فرمائيلې وو. (۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دا روايت ابن السكن رحمه الله هم نقل كړې دې اودنقل كولونه پس هغه فرمائي چه بغيرددې يوروايت نه بل هيڅ يو روايت ماته داسې ملاؤ نه شو چه د حضرت شريح رحمه الله دحضورپاك په ملاقات باندې دلالت كوى. والله أعلم بصحته. (٤)

ددوى دوفات په كال كښې كافي اختلاف دې. اشعث رحمه الله فرمائي چه حضرت شريح رحمه الله د يوسل لسو كالو وو. (۵)هم د اشعث رحمه الله يو بل روايت دې چه ۱۲۰ كاله عمرئې وو. (۶)ابونعيم رحمه الله فرمائي چه د شريح عمر يوسل اته كاله ژوند تيركړې دې او په كال ۷۸هجرى كښې د حضرت مصعب بن زبير رضي الله عنه په زمانه كښې وفات شوې. (۷)نورو ډيرومؤرخينو دوفات هم دغه تاريخ ليكلې دې په كوموكښې چه ابوبكر بن ابى شيبه،ابوعبيد او هيثم بن عدى رحمهم الله وغيره هم شامل دی. (۸) خو نور ډير مؤرخين په كوموكښې چه خليفه بن خياط او ابن نمير رحمهما الله وغيره شامل دی وينا ده چه د شريح رحمه الله انتقال ۹۰هجرى كښې شوې. او(۹)خليفه بن خياط رحمه الله په يوبل مقام باندې دوفات كال ۸۷هجرى ذكر كړې دې. (۱۰)هم دغه شان د ابونعيم رحمه الله نه نور هم دوه روايتونه دی. يو روايت د ۹۳هجرى او دويم روايت د ۹۶ هجرى دې. (۱۱) على بن عبدالله تيمى رحمه الله فرمائي چه ۹۷هجرى كښې

---

(۱) تهذيب الكمال: ۱/٤٤٢.
(۲) سير أعلام النبلاء: ٤/۱۰۳.
(۳) سير أعلام النبلاء: ۱/۱۰۱تهذيب الكمال: ۱۲/۲۸۸دارالفكر.
(٤) تهذيب التهذيب: ٤/۲۸۷.
(۵) سير أعلام النبلاء: ٤/۱۰۶تهذيب الكمال: ۱۲/٤٤٤.
(۶) تهذيب الكمال: ۱۲/٤٤٤.
(۷) سير أعلام النبلاء: ٤/۱۰۶تهذيب الكمال: ۱۲/٤٤٤ تهذيب التهذيب: ۲/۱۶۱مؤسسة الرسالة.
(۸) تهذيب الكمال: ۱۲/٤٤٤ تهذيب التهذيب: ۲/۱۶۱مؤسسة الرسالة.
(۹) حواله بالا.
(۱۰) تهذيب الكمال: ۱۲/٤٤٤.
(۱۱) حواله بالا.

انتقال شوې اوبعض د ۹۹ هجري قول هم کړې دې.(١)

**تخريج التعليق:** عبدالله دارمي رحمه الله دا قصه په خپل سندسره دکو چه ټول رجال ثقه دی موصولاً ذکر کړې ده. دروايت الفاظ دادی «أخبرنا يعلى، حدثنا إسماعيل، عن عامر هو الشعبي فقال: جاءت امرأة إلى علي، تخاصم زوجها طلقها، فقالت: حصب في شهر ثلاث حيض، فقال علي لشريح: اقض بينهما. قال: يا أمير المؤمنين! وأنت ههنا؟ قال: اقض بينهما. قال إن جاءت «ببينة» من بطانة أهلها ممن يرضى دينه وأمانته تزعم أنها حاضت ثلاث حيض تطهر عند كل قرء وتصلي، جاز لها، وإلا، فلا. فقال علي: قالون. وقالون بلسان الروم: أحسنت»

يعني د امام شعبي رحمه الله نه روايت دې يوې ښځې حضرت علي رضي الله عنه له خپله فيصله راوړله راغله. دا ښځه طلاقه شوې وه اوخپل خاوندسره د عدت تيرولو په مسئله کښې جګړه لرله. د ښځې دعوی وه چه په يوه مياشت کښې دهغې درې حيضه تيرشوی دی. حضرت علي رضي الله عنه قاضي شريح رحمه الله ته حکم ورکړو چه ددوی په مينځ کښې فيصله اوکړه. قاضي شريح رحمه الله عرض اوکړو ايا ستاسو په موجود ګئ کښې؟ نوحضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل اوجې! په دې باندې قاضي شريح رحمه الله اوونيل که چرې ښځه دخپل دکورمخصوص معتبر او متدين کسانونه ګواه پيش کړی کوم چه دهغې دحالت نه خبر وی اوديندار هم وی او په دې خبره باندې ګواهی ورکړی چه واقعی ددې عدت دريوحيضوسره په يوه مياشت کښې تيروی دی اودې دغسل نه پس مونځ کړې دې نوعدالت به ددې دبيان اعتبارکوی ګنې نه. په دې فيصله باندې حضرت علي رضي الله عنه د قاضي شريح تحسين اوکړو او وئی فرمائيل قالون قالون درومی ژبې لفظ دې. دکومعنی چه احسنت يعنی ډيره ښه فيصله دې اوکړه.

بيا چه کله د ابومحمدعبدالله دارمي رحمه الله نه دقاضي شريح ددې فيصلې باره کښې تپوس اوکړو شو چه ستاسو ددې فيصلې او مسئلې متعلق څه رائې ده؟ نوهغوی په نفی کښې جواب ورکړو اوونی فرمائيل «ثلاث حيض في شهر كيف يكون؟» يعني په يونه مياشت کښې درې حيضه څنګه تيريدې شي؟(٢)

هم دغه شان ابن حزم رحمه الله او ابن ابی شيبه رحمه الله هم دا روايت موصولاً ذکرکړې دې.(٣)

**تعليق د تمريض په صيغه سره دذکرکولووجه:** امام بخاري رحمه الله دا تعليق دتمريض په صيغه سره ذکرکړو اوجزم نی په دې وجه اونه کړو څکه چه دعامر شعبي رحمه الله د حضرت علي رضي الله عنه نه په سماع کښې تردد او اختلاف دې. اونه ئی دا اوفرمائيل چه عامر شعبي رحمه الله دا روايت د قاضي شريح رحمه الله نه اوريدلې دې ګنې که دقاضي شريح نه ئی د سماع تصريح کړې وه نوبياهم روايت موصول کيدې شو څکه چه دعامرشعبي رحمه الله د قاضي شريح رحمه الله نه سماع ثابته ده.(٤)

**دعامرشعبي رحمه الله د علي رضي الله عنه نه په سماع کښې دائمه رجال اختلاف:** دعامرشعبي رحمه الله د حضرت علي رضي الله عنه نه په سماع کښې دائمه رجال اختلاف دې. امام حاکم رحمه الله فرمائی چه دعامر شعبي رحمه الله سماع نه دحضرت عائشه رضي الله عنها نه ثابته ده او نه دحضرت ابن مسعودنه، نه داسامه بن زيدنه اونه د

---

(١) تهذيب الكمال: ٤٤/١٢ تهذيب التهذيب: ١٦١/٢مؤسسة الرسالة.

(٢) سنن الدارمي باب في أقل الطهر: ٢٣٤/١-٢٣٣رقم الحديث: ٨٥٦-٨٥٥قديمي.

(٣) المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الطلاق، باب من قال: اوتمنت المرأة على فرجها: ٢٢١/١٠ رقم الحديث: ١٩٦٤١شركة دارالقبلة /مؤسسة علوم القرآن المحلى بالآثار، كتاب الطلاق أحكام العدة: ٢٧٢/١رقم المسئلة: ٩٩٨إدارة الطباعة التوضيح: ١٢١/٥فتح الباري: ٤٢٥/١عمدة القاري: ٤٥٣/٣.

(٤) فتح الباري: ٤٢٥/١.

حضرت علی رضی الله عنه نه ددوی سماع ثابته ده. البته صرف هغه صحابه کرام رضی الله عنهم نی لیدلی دی اودغه شان د معاذ بن جبل رضی الله عنه اوزید بن ثابت رضی الله عنه نه ئی هم سماع ثابته نه ده.(۱)

علامه حازمی رحمه الله فرمائی ((لم یثبت أئمة الحدیث سماعه منه)) یعنی ائمه حدیث ددوی (عامرشعبی رحمه الله) سماع د هغوی (حضرت علی رضی الله عنه) نه ثابته نه ګرځوی. امام دارقطنی رحمه الله فرمائی چه امام عامرشعبی رحمه الله دحضرت علی رضی الله عنه نه صرف یوروایت اوریدلې دې دې نه علاوه ئی هیڅ نه دی اوریدلی.(۲)

اوددغه یو روایت دسماع نه دامام دارقطنی رحمه الله اشاره ددې حدیث طرف ته ده کوم چه امام بخاری رحمه الله درجم په باب کښې تخریج کړې دې. په کوم کښې چه دی امام شعبی رحمه الله دحضرت علی رضی الله عنه نه روایت کوی چه هغوی یوه ښځه رجم کړه اوبیائې اوفرمائیل ((رجمتها بسنة النبی صلی الله علیه وسلم))(۳)

نوچه دامام شعبی رحمه الله سماع دحضرت علی رضی الله عنه نه ثابته نه ده اوهغه چه دحضرت علی رضی الله عنه نه کوم روایات بیانوی هغه مرسل روایات دی لیکن ددوی هغه مرسل روایات هم صحیح دی ځکه چه امام شعبی رحمه الله به صرف صحیح احادیث په ارسال سره بیانول. چنانچه امام عجلی رحمه الله فرمائی ((ومرسل الشعبی صحیح، لایکاد یرسل إلا صحیحاً)) یعنی د امام شعبی رحمه الله مرسل روایات هم صحیح دی ځکه چه امام شعبی رحمه الله به صرف صحیح احادیث په ارسال سره بیانول.(۴)

علامه عینی رحمه الله فرمائی معلومیږی چه دامام بخاری رحمه الله په صیغه دتمریض سره دحضرت علی رضی الله عنه سندطرف ته اشاره ده ځکه چه دامام شعبی رحمه الله د قاضی شریح رحمه الله سماع ثابته ده او په دې سره به ددغه حضر اتو په خبره باندې اثر پریوځی دچاچه وینا ده، کله چه امام بخاری رحمه الله یوه خبره بغیرد جزم نه ذکرکوی نوهغه خبره دهغوی په نیز صحیح نه وی. خوددغه خلقو دا رائې صحیح نه ده ځکه چه پخپله امام بخاری رحمه الله ((کتاب مواقیت الصلاة باب ذکر العشاء والعتمة ومن راه واسعاً)) کښې هم د تمریض صیغې سره دا روایت نقل کړې دې: ((ویذکر عن أبی موسیٰ قال: کنا نتناوب..... الحدیث)) خوددې سند دامام بخاری رحمه الله په نیز بالکل صحیح دې.(۵)

قاضی شریح رحمه الله یوه فیصله اوکړه او حضرت علی رضی الله عنه دهغوی په دې فیصله باندې تحسین اوکړو. اوس سوال دا پیداکیږی چه آیا دائمه اربعه په مذاهب کښې هم ددې فیصلې څه ګنجائش شته اوکه نه؟ نود تیرشوی تفصیلی کلام نه داخبره واضحه شوې ده چه صرف دامام مالک رحمه الله اوامام احمد رحمه الله دمذهب په اعتبارسره ددې فیصلې ګنجائش شته اوهیڅ څه د اشکال خبره نه ده. دامام مالک رحمه الله دمذهب مطابق ذیرش ورځې او څلورساعتونوکښې درې حیض اودرې طهر تیریدې شی اود امام احمدبن حنبل رحمه الله د مرجوع عنه قول په اعتبارسره ۲۸ ورځې او دوو ساعتونوکښې داسې ممکن دی اود قول مرجوع الیه په اعتبارسره ۲۹ ورځوکښې درې حیض تیریدې شی. خوچه دکومو حضراتو په نیزباندې دطهر کم نه کم موده پنځلس ورځې اودحیض موده کم نه کم یوه ورځ ده (لکه چه دشوافع مذهب دې) یا درې ورځې دی (لکه چه داحنافو مذهب دې) نو ددغه حضراتو دمذهب په اعتبارسره

---

(۱) تهذیب التهذیب: ۲۶۵/۲.
(۲) العلل للدارقطنی: ۹۷/۴دارطیبة.
(۳) العلل للدارقطنی: ۹۷/۴ دار طیبة، رواه البخاری فی الحدود باب رجم المحصن رقم الحدیث: ۶۸۱۲
(۴) معرفة الثقات للعجلی: ۱۲/۲تهذیب الکمال: ۳۵/۱۴تهذیب التهذیب: ۲۶۵/۲.
(۵) عمدة القاری: ۴۵۴/۳.

صرف د یومیاشت په قلیل موده کښې دعدت دتیریدو مسئله صحیح نه شي کیدې ځکه چه دامام شافعي رحمه الله د مذهب په رڼا کښې کم نه کم ۳۲ ورځې اودوه ساعتونه پکاردی اودامام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب په رڼا کښې کم نه کم شپیته ورځې اودصاحبین رحمهما الله په مذهب کم نه کم ۳۹ورځې پکاردی. په دې وجه د قاضي شریح رحمه الله فیصله (که دخاندان معتبر اودیندارو ښځې ګواهی ورکړي نو په یومیاشت کښې دعدت د تیریدو دعوی به منلې شي) چه نه داحنافو د مذهب مطابق صحیح ده اونه د شوافع دمذهب مطابق صحیح ګرځولې شي.

**د قاضي شریح رحمه الله د فیصلې اوشوافع اواحنافو اصولی مسلکونوکښې دتطبیق صورتونه:** اوس یو طرف ته دقاضي شریح رحمه الله فیصله اوفتوی ده اوبل طرف ته د حضرات شوافع او احنافو اصولی مسلك دې. علماء کرامو د خپل خپل ذوق مطابق ددې دواړو په مینځ کښې د تطبیق لارې راوښکلې دی په کوم کښې چه څه رائې دتعریف اوذکر قابل دی. چنانچه علامه سرخسي رحمه الله فرمائی په حقیقت کښې دقاضي شریح رحمه الله دا فتوی او فیصله د تعلیق بالمحال د قبیل نه دی دکوم دلیل چه دادې چه دلته د "إن" حرف شرط استعمال شوې دې او"إن" هغه حرف شرط دې چه دتعلیق بالمحال په موقع باندې هم استعمالیدې شي. لکه چه دقاضي شریح دفیصلې حاصل دادې چه که چرې ښځې دخپلې کورنئ نه د یوڅومعتبرو کسانو ګواهی راوړې نودهغې قول به معتبر وی لیکن داسې کیدل محال دی ځکه چه قاضي شریح رحمه الله داخبره پیژندله چه دعدت په یوه میاشت کمه موده کښې مکمل کیدل ناممکن دی اوبیا چه کله زمانه هم دخیر سعادت اودیندارئ وی نوداممکن نه دی چه په داسې زمانه کښې څوك د داسې کار دوقوع دپاره ګواهی ورکړي چه عقلاً ناممکن ښکاری.[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله اول ددې قصې طرق راجمع کړل اوبیائې دخپل مذهب درعایت دپاره یوصورت اختیارکړو. اوهغه صورت دادې چه دشوافع په نیز لفظ قرء نه مراد طهردې دکوم چه کم نه کمه موده پنځلس ورځې ده اود حیض دکم نه کمه موده یوه ورځ اویوه شپه ده. په دې وجه که چرته په آخر طهرکښې طلاق ورکړو نودورځو ترتیب به داسې شي:

لحظه (هغه طهرپه کوم کښې چه طلاق ورکړو) /یوم/۱۵ایام/یوم/۱۵ایام/یوم/۱۵ایام/لحظه (ددریم حیض شروع په کوم کښې چه عدت تمام شو). دغه شان به ۳۲ورځواو دوو ساعتونوکښې به عدت ختم شي. اودا دحضرت علي رضي الله عنه اوقاضي شریح رحمه الله د فیصلې موافق ده ځکه چه په دې قصه کښې راوی کسرحذف کړې دې اوپه ځائې د ۳۵ورځو ئې یوه میاشت اوونیله اوددې تائید دحضرت هشیم رحمه الله د روایت نه کیږي کوم چه هغه داسماعیل په طرق سره نقل کړې دې ځکه چه ددغه روایت الفاظ دادی. «حاضت في شهر أو خمسة وثلاثين يوماً»[2] مګر دحذف کسروالا خبره د تسلئ قابل نه ده ځکه چه هم پخپله حافظ ابن حجر رحمه الله دابراهیم نخعي د قول لاندې دعبدالله دارمي رحمه الله په حواله سره داروایت هم په صحیح سندسره نقل کړې دې: «إذا حاضت في شهر أو أربعين ليلة» اوس که چرې دحافظ ابن حجر رحمه الله په قول د ۵کسر حذف کولوګنجائش شته نوبیا د نور ۴حذف کولو هم ګنجائش کیدل پکاردی ځکه چه په روایت کښې ددې هم تائید کیږي اوداسې به وئیلې شي چه راوی د ۹کسر حذف کړې دې لیکن حقیقت دادې چه دکسر دحذف او ذکر څه اصول نشته دې.[3]

---

[1] فیض الباری: ۵۰۴/۱.

[2] فتح الباری: ۴۲۶/۱.

[3] فیض الباری: ۵۰۴/۱.

**د علامه انورشاه کشمیری رحمه الله تحقیق:** علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه امام مالک رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله د اقل اعتبارکولوره په یوه میاشت کښې درې حیض تیرولوګنجائش راویستې دې او امام شافعي رحمه الله ۳۲ ورځو کښې د حیض د تیریدلو ګنجائش راویستې دې. دغه شان د احنافو په نیز اقل موده چه واخلی نو ۳۹ ورځوکښې ددې ګنجائش راوتلې شي. مګر فرق دقضاء اودیانت دې ځکه چه دښځې ددې دعوی دوه حیثیتونه دی. یو حیثیت پخپله د دغه ښځې دذات په اعتبارسره دې اوهغه دادې چه کله هغې ته طلاق ورکړې شو نودښځې طبعي خواهش داوی چه زر نه زر عدت ختم شی اوددې د ذات نه د خاوند حقوق ختم شی چا چه د جګړو په بنیاد دې ته طلاق ورکړې دې. اوبل ددې دپاره چه عدت تیریدوسره د بل خاوند لټون اوکړې شی. او دویم حیثیت د قضاء اوفیصلې په اعتبارسره دې. د دیانت تقاضاداده چه د ښځې تصدیق به هرهغه موده کښې کولې شی په کومه کښې چه دعدت تیریدو امکان وی. خو قضاء تقاضاداده چه ترکومې پورې یقین اونه شی د ښځې به تصدیق نه شی کولې.

اوس چه کومه مسئله په متون کښې ذکرده چه ددوو میاشتونه په کمه موده کښې به د ښځې تصدیق نه شی کولې نو هغه په حقیقت کښې د قضاء مسئله ده ځکه چه که صورت د خاوند اوښځې په مینځ کښې د جګړې دې نوبیابه د طرفین د حقوق رعایت کول ضروری وی اود اقل مودې اخستلو په ځائې به یقیني خبزه اخستوسره فیصله کولې شی ځکه چه دلته ددواړو حقوق متعلق دی. که عدت نې تیرشوې وی نوښځه دویم خاوند تلاش کولې شی اوکه عدت نه وی تیرشوې نوخاوندته د رجوع حق حاصل دې. لیکن عین ممکن ده چه ښځې اقل موده اخستې وی اودروغ ئې وئیلی وی دې دپاره چه خاوندئې رجوع اونه کړې شی. خبره داده چه په یوه میاشت کښې دحیض تکرار یوه عجیبه خبره ده. لهذا ضروری دی چه ددوو میاشتونه په کمه موده کښې دښځې تصدیق اونه کړې شی. دې دپاره چه دعدت تیریدل یقیني شی. چنانچه مالکیه هم ددې اصول رعایت کړې دې ځکه چه دهغوی په نیز سره ددې چه داقل حیض تحدیدنشته هغه د یولحظې دپاره هم کیدې شی مګر دعدت په باب کښې هغوی هم احتیاطاً تحدید کړې دې.

ترکومې چه معامله د ښځې د ذات پورې متعلق ده لکه څنګه چه دهغې د مونځونو اوروژو معامله ده نوددې حده پورې خو به د دې تصدیق اوکړې شی لیکن چه کله دنورو حقوق متعلق شی نوبیا د یقیني صورت اخستونه بغیر (امکاني صورت اخستلوسره) به ددې تصدیق نه شی کولې. لهذا که دخاوند اوښځې په مینځ کښې نزاعي صورت نه وی اوښځه په ۳۹ ورځوکښې دعدت تیریدو دعوی اوکړی نودیانةً به ددې تصدیق کولې شي.

شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه سره ددې چه د دیانت اوقضاء د فرق خبره چانه ده لیکلې مګر زه په دې وجه باندې مطمئن یم، ځکه چه فقهاء کرامو د حیض اوطهر باره کښې اقل او اکثر تحدید کړې دې. نوکه ددې تحدید رعایت اونه کړې شی نو دوه متضاد اومتناقض خبرې به پیداشی ځکه چه داقل اواکثر تحدید دې خبرې ته مستلزم دې که چرې موده د انقضاء عدت احتمال لری نود ښځې د دعوی به تصدیق کولې شی. او ددوو میاشتو نه په کمه موده کښې تصدیق نه کول دې امر ته مستلزم دې چه دطهر اوحیض په باب کښې د اقل اواکثر تحدید بې کاره اوبې فائدې دې.

حاصل دکلام دا شو چه د دوومیاشتونه په کمه موده کښې د ښځې تصدیق نه کول په دې وجه نه دی چه دوو میاشتو نه کمه موده کښې عدت نه شی تیریدې. یا بیا داقل او اکثر تحدید بیکاره دې بلکه دعدم تصدیق مدار په نزاعي صورت کښې ددواړو طرفونودرعایت په غرض سره دې سره ددې چه ددوو میاشتونه په کمه موده کښې عدت تیریدې شی اوهغه داسې چه نهه ورځې د دریو حیضودپاره

لاړې شي دحيض د اقل مودې په اعتبارسره، اوديرش ورځې د دوو طهرو دپاره شي نو په ٣٩ ورځو كښې عدت تيريدې شي.ددې تفصيل په رنړاكښې دقاضي شريح رحمه الله په فيصله كښې ذكر شوې لفظ شهرمدار به دكسر په نفي باندې نه وي بلكه دشهرين په نفي باندې به وي. يعني دا شهر دديرش ورځو په معنى كښې نه ده بلكه دا شهر د شهرين په مقابله كښې ده يعني ښځې د دوو مياشتونه په كمه موده كښې دعدت تيريدو دعوى كړې ده. لهذا اوس په دغه لفظ شهر كښې ځپل پځپله ګنجائش راؤوتلو او اوس مطلب دا پاتې نه شو چه د يومياشت نه يوه ورځ هم زياته نه وي بلكه هره هغه موده چه ددوو مياشتونه كمه ده په هغې باندې ددې لفظ اطلاق كيدې شي. اوبيا دقاضي شريح رحمه الله په فيصله كښې د ممكن قدر رعايت دې. صرف دښځې په بيان باندې فيصله نه شي وركولې بلكه متدين اود ګور دخبردارو ښځو ګواهي ئې شرط ګرځولې دې. داسې نه يوازې دائمه ثلاثه دمذاهب به دا فيصله موافق شي بلكه داحنافو مسلك هم ددې فيصلې موافق دې.[1]

دشاه صاحب رحمه الله د جواب حاصل دادې چه قاضي شريح په ديانت باندې فيصله كړې ده خكه چه په قضاء كښې ددوو مياشتونه په كمه موده كښې دعدت تيريدو تصديق نشي كولې اودفقه په كتابونوكښې ذكر شوې ددې مسئلې حكم د قضاء په اعتبارسره دې. لهذا مطلب دادې چه قاضي شريح د شهرين په اعتبارسره فيصله نه ده كړې كومه چه د قضاء په اعتبارسره كيدله اوهم په دې وجه ئې كسور حذف كړل او بيانئ دې سره هيڅ غرض اونه لرلو.

**شرعي قاضي د تراضي خصمين په خاطر په ديانت فيصله وركولې شي:** باقي سوال داپيدا كيږي چه شريح رحمه الله قاضي دې نه چه مفتي. لهذا هغوى چه كومه فيصله اوكړه هغه هم قضاء وه. جواب دادې چه په شرعي قاضي باندې دا واجب نه دى چه هغه دې هميشه هم د قضاء حكم كوى بلكه هغه له دتراضي خصمين په صورت كښې په ديانت باندې هم دحكم كولوحق شته لكه چه هغه به د قضاء په شان حجت ملزمه نه وي. په دې وجه دقاضي دپاره تراضي د طرفين ضروري دى لكه څنګه چه درمختار [2] كښې دى چه قاضي فتوې هم وركولې شي تردې چه مجلس قضاء كښې هم داسې كولې شي اوهم دغه صحيح دى. او په شرح معاني الآثار كښې دامام ابويوسف رحمه الله په حواله سره قصه ذكرشوې ده چه د قاضي شريح رحمه الله نه د مسئلې تپوس اوكړې شو نو هغه د خودلونه انكاراوكړو او ونې فرمائيل چه زه قاضي يم مفتي نه يم. بيا سائل قسم وركړو مجبور ئې كړو نوهغوى د ديانت مطابق مسئله اوفتوى اوخودله داددې خبرې دليل دې چه قاضي ديانة هم حكم وركولې شي.[3]

اكثرعلماؤ د ګواهانود ضروري كيدو تذكره نه ده كړې اوهم دغه د امام خرقي رحمه الله هم قول دې. د امام احمدبن حنبل رحمه الله نه نقل دى كه چرې په يوه مياشت كښې دننه دعدت دپوره كيدو دعوى وى نوبغيرد معتبرښځود ګواهئ به د دغه ښځې تصديق نه شي كولې خوكه د يومياشت نه په زياته موده كښې دعدت د پوره كيدو دعوى كړې ده نوبغيرد ګواهئ نه هم دښځې ددعوى خبره قبلولې شي خكه چه ښځه دځپل حيض په معامله كښې امين ده. البته په يوه مياشت كښې دننه دعدت د پوره كيدو دعوى بغيرد ګواهئ نه دحضرت علي رضي الله عنه اوحضرت شريح رحمه الله ددې فيصلې د وجې نه ناقابل

[1]) فيض الباري ١/٥٠٥-٥٠٤مكتبه رشيديه.

[2]) الدرالمختار كتاب القضاء:: ٨/٣١دارعالم الكتب.

[3]) فيض الباري: ١/٥٠٦ أنوار الباري: ١٠/٤٦٩.

قبول ده.(۱)

**دتعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې اثر اوتعليق ترجمة الباب سره مناسبت دادې چه په ترجمة الباب کښې ددې خبرې تذکره ده که چرې ښځه په يوه مياشت کښې دعدت پوره کيدودعوی اوکړی نو ددې تصديق به کولې شي په دې شرط چه د ښځې بيان کړې شوې موده دعدت دپوره کيدواحتمال لري او په اثرکښې د يومياشت قليل موده کښې دعدت پوره کيدل ذکرشوی دی اودا موده هم داسې ده چه په دې کښې د ښځې تصديق کيدې شي خصوصاً د امام مالك او امام احمدبن حنبل د مذهب په اعتبارسره (۲)لکه چه امام بخاری په ترجمة الباب باندې د مذکوره اثر نه استدلال کړې دی.(۳)

**قوله:: إن امرأة جاءت:** دا دکريمه دنسخې په اعتبارسره دې خو په بعض نسخوکښې ((إن جاءت امرأة)) راغلې دی.(۴)

**قوله:: بينة من بطانة أهلها:** أي: خواصها، يعنی چه د دغه ښځې د کورنۍ خاص کسان ګواهی ورکړی.

**قوله:: يرضى دينه:** أي: بأن يكون مقبولاً عدلاً، يعنی چه هغه کسان داسې وی چه دهغوی خبره قبوله کړې شي اوهغوی عادلان وی.(۵)

**د قاضي اسماعيل رحمه الله رائې:** قاضي اسماعيل رحمه الله فرمائی چه ((إن جاءت ببينة من بطانة أهلها)) مطلب دانه دې چه ددغه ښځې دکورنۍ ښځې دې ګواهی ورکړی چه او په يوه مياشت کښې په دې باندې درې ځل حيض راغلې دې بلکه مراد دادې چه هغه ښځې دې ګواهی ورکړی چه داسې کيدې شي او په دې ښځوکښې هم داسې کيږی.

**دقاضي اسماعيل درائې جواب:** حافظ ابن حجر فرمائی چه دې اثر سره متعلق چه کومه قصه ده (چه دا پورته تيره شوه) هغه پخپله ددې تاويل ترديدکوی اود مذکوره اثر الفاظ ((أنها حاضت ثلاثاً)) هم ددې تاويل ترديدکوی ځکه چه دواړه خبرې په دې امر کښې بالکل واضح دی چه هغه ښځې به ددې خبرې ګواهی ورکوی چه اوواقعةً هم داسې شوی دی اوددې عدت په دې کمه موده کښې پوره شوې دې.

باقي پاتې شوه خبره د قاضي اسماعيل رحمه الله ددې تاويل نوهغوی دا تاويل دخپل مذهب په موافقت کښې اختيارکړې ځکه چه د اهل مدينه مذهب دادې چه د عدت معامله به په ښځوکښې په معروف عادت باندې محمول کيږی.(۶)

**قوله:: قال عطاء أقرءها ماكانت:** حضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله فرمائی دښځې دحيض (ايام) به هم هغه وی کوم چه دعدت نه وړاندې وې.

---

۱) فتح الباري لابن رجب الحنبلي:۲/۱۴۹.

۲) عمدة القاری:۳/۴۵۴.

۳) فيض الباری: ۱/۵۰۵.

۴) فتح الباری: ۱/۴۲۵عمدة القاری: ۳/۴۵۴.

۵) منحة الباری: ۱/۶۵۶فتح الباری:۱/۴۲۵.

۶) التوضيح: ۵/۱۲۱فتح الباری:۱/۴۲۵عمدة القاری:۳/۴۵۴.

**دتعليق مقصد**: مقصد دادې که چرې ښځه دعدت په زمانه کښې په مقرره موده کښې درې حيض (كما هوعند الأحناف وحنابلة) يا درې طهر (كما هوعند الموالك والشوافع) دتيريدو دعوى اوكړي نوهغه دعدت نه وراندې هم د دغه ورځو عادى وه دځومره ورځوچه دعوى كوى نوذدې تصديق به كولې شى خوكه د عدت نه وراندې ددې ددومره ورځو عادت نه وو اودهغې دعوى د عدت نه وراندې دحالت مخالف وى نود ښځې قول به نه شى قبلولې. (۱)

**تراجم رجال**:

**عطاء**: دعطاء نه مراد ابومحمد عطاء بن ابى رباح رحمه الله مكى قرشى دې. ددوى د پلار ابورباح نوم اسلم دې اودده تعلق دموالى سره وو(۲) ددوى حالات كتاب العلم باب عظة الإمام النساء وتعليمهن لاندې تيرشوى دى. (۳)

**دتعليق تخريج**: د امام بخارى رحمه الله دا تعليق اواثر محدث عبدالرزاق رحمه الله دابن جريج عن عطاء په طريق سره موصولاً روايت كړې دې. روايت دادې: ((عبدالرزاق عن ابن جريج قال: قال عطاء: تقعد أقراءها ماكانت، تقاربت أوتباعدت)) (۴) يعنى حضرت عطاء بن ابى رباح فرمائى چه حائضه ښځه به دخپل حيض په ايام كښې كينى كه هغه ورځې كمې وى اوكه زياتې.

(**وبه قال إبراهيم**): اوهم دغه دابراهيم رحمه الله هم قول دې. مطلب دا چه كومه خبره عطاء رحمه الله فرمائيلې ده هم هغه د ابراهيم نخعى رحمه الله هم قول دې. (۵)

**دتعليق تخريج**: دامام بخارى رحمه الله دا روايت محدث عبدالرزاق رحمه الله د أبومعشر عن إبراهيم په طريق سره موصولاً روايت كړې دې. د روايت الفاظ دادى: ((عبدالرزاق عن عثمان بن مطر عن سعيد بن أبى عروبة قال: سئل عن رجل طلق امرأته ثلاثاً وهى حائض، فقال: حدثنى قتادة عن ابن المسيب وأبومعشر عن إبراهيم قالوا: تعتد به من أقراءها)) (۶) يعنى د سعيدبن ابى عروبه رحمه الله نه تپوس اوكړې شو كه يوسړې خپلې ښځې له دحيض په حالت كښې درې طلاقه وركړى نوڅه حكم دې؟ نوسعيدبن ابى عروبه رحمه الله د ابراهيم نخعى رحمه الله نه روايت كولوسره اوفرمائيل چه هغه ښځه به د طلاق عدت په خپلو حيضونوسره تيره وى. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام عبدالله دارمى رحمه الله د ابراهيم نخعى رحمه الله دا روايت په صحيح سندسره روايت كړې دې دې. د روايت الفاظ دادى: ((أخبرنا المعلى بن أسد حدثنا أبوعوانة عن المغيرة عن إبراهيم قال: إذا حاضت المرأة فى شهر أوأربعين ليلة ثلاث حيض، قال: فإذا شهد لها الشهود العدول من النساء أنها رأت ما يحرم عليها الصلاة من طموث النساء الذى هو الطمث المعروف، فقد خلا أجلها)) يعنى ابراهيم نخعى رحمه الله فرمائى كه چرته ښځې ته په يوه مياشت كښې يا څلويښت ورځوكښې درې حيضه راغلې وى نوحكم دادې چه

---

(۱) فتح البارى: ۱/۴۲۴عمدة القارى: ۳/۴۵۵شرح الكرمانى: ۳/۱۹۹إرشادالسارى: ۳۶۲/۱.

(۲) تهذيب الكمال: ۲۰/۷۰-۶۹

(۳) كشف البارى: ۴/۳۷.

(۴) مصنف عبدالرزاق كتاب الطلاق باب التى تحيض وحيضها مختلفة: ۶/۳۴۴رقم الحديث: ۱۱۱۱۴المكتب الإسلامى، بيروت.

(۵) فتح البارى: ۱/۴۲۴عمدة القارى: ۳/۴۵۵.

(۶) مصنف عبدالرزاق كتاب الطلاق باب الرجل يطلق امرأته ثلاثاً رقم الحديث: ۱۰۹۷۴المكتب الإسلامى، بيروت.

كه چرې ديندار ه ښځې په دې خبره باندې ګواهي ورکړي چه او واقعةً دې ښځې هغه ځيزليدلې دې چه مونږ اداکول حرام کوی نوبيا ددې عدت تيرشوې دې. اوبيائي د قاضي شريح رحمه الله داثر په شان خبره ذکر کړه.(۱)

دې نه پس حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه عين ممکن ده چه دامام بخاري رحمه الله قول "ويه" کښې موجود ضمير د شريح رحمه الله اثر طرف ته راجع وی ځکه چه کوم اثر قاضي شريح رحمه الله روايت کړې دې هم هغه خبره ابراهيم نخعي رحمه الله هم بيان کړې ده. اوس به مطلب داشي چه کومه فيصله حضرت شريح رحمه الله اوحضرت علي رضي الله عنه کړې ده هم هغه د ابراهيم نخعي رحمه الله هم قول دې، يابيا په نسخه کښې تقديم اوتاخيردې. يعنی د ((ويذکرعن علی وشريح الخ)) نه پس ((ويه قال إبراهيم)) کيدل پکاردی اوبيا "قال عطاء" مګر په نسخه کښې تقديم اوتاخير اوشو او "قال عطاء" مقدم ذکرکړې شوې او ((ويه قال إبراهيم)) روستو اوبيا بيا د ابراهيم نخعي رحمه الله نه په دې سلسله کښې دوه قوله دی. يو د قاضي شريح رحمه الله د فيصلې موافق او دويم د حضرت عطاء رحمه الله د قول موافق.(۲)

## تراجم رجال

**إبراهيم**: دا دکوفې مشهورتابعی فقيه ابوعمران ابراهيم بن يزيدبن قيس بن اسود النخعي رحمه الله دې. د دوی حالات **کتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم** لاندې تيرشوی دی.(۳)

**د دوارو اثرونو ترجمة الباب سره مناسبت**: ددې دوارو اثرونو ربط ترجمة الباب سره ((وما يصدق النساء)) کښې دې ځکه چه ددې مطلب دادې چه په څومره موده کښې د ښځې تصديق ممکن وی تصديق به کولې شی. اودلته هم ده ذکر دی چه دهغې په عدت کښې به تيرعادت ته کتلې شی، سره ددې چه که دهغې تيرشوې عادت ددې د عوی موافق وی نو تصديق به کولې شی ګنی نه.(۴)

**قوله: <u>وقال عطاء: الحيض يوم إلى خمس عشرة</u>**: حضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله فرمائي چه حيض د يو ورځې نه واخل تر پنځلس ورځو پورې کيدې شي.

**دتعليق مقصد**: په اثرکښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه دحضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله په نيز دحيض دکم نه کمه موده يوه ورځ او د زيات نه زياته موده پنځلس ورځې دی.

**دتعليق تخريج**: دا اثر محدث عبدالله دارمي رحمه الله په صحيح سندسره موصولاً ذکرکړې دې اود روايت الفاظ دادی: ((أقصى الحيض خمسة عشر وأدنى الحيض يوم وليلة)) يعنی دحيض د زيات نه زياته موده پنځلس ورځې اود کم نه کمه موده يوه ورځ او يوه شپه ده.

دغه شان امام دارقطني رحمه الله په خپل سندسره ابن جريج عن عطاء په طريق سره او هم دغه شان ربيع بن الصبيح عن عطاء په طريق سره دا روايت موصولاً ذکرکړې دې. او په دواړوطريقوسره نقل شوی روايت الفاظ دادی: ((الحيض خمس عشرة)) هم دغه شان امام دارقطني رحمه الله د اشعث عن عطاء په طريق

---

(۱) سنن الدارمي باب في أقل الطهر رقم الحديث: ۸۸۲دارالمغنى للنشر والتوزيع.

(۲) فتح الباري: ۱/۴۲۴.

(۳) كشف الباري:۲/۲۵۳.

(۴) هذا ما يستفاد من فتح الباري:۱/۴۲۴وعمدة القاري: ۳/۴۵۵وشرح الكرماني: ۳/۱۹۹.

سره هم دا روايت موصولاً ذكركړې دې د روايت الفاظ دادي: «أكثر الحيض خمس عشرة» (١)دې نه علاوه امام دارقطني رحمه الله معقل بن عبدالله عن عطاء په طريق سره روايت كوي «أدنى وقت الحيض يوم» يعنى دحيض كم نه كم موده يوه ورځ ده.

**دتعليق شرح:** ددې مذكوره اثر وضاحت وړاندې تيرشوې دې چه په دې كښې د حضرت عطاء د مذهب طرف ته اشاره ده. دهغوى په نيزدحيض د كم نه كمه موده يوه ورځ او دزيات نه زياته موده پنځلس ورځې ده. ددې توضيح نه پس شراح دمذاهب ائمه په دې باب كښې اقل حيض او اكثر حيض ذكركړې دې. شراح رحمه الله فرمائي چه په دې مسئله كښې د علماء او فقهاء كرامو مختلف مذاهب دي.

① د حيض دكم نه كم څه موده اوحد نشته دې. هغه يوه لحظه هم كيدې شي داد امام مالك رحمه الله امام اوزاعى رحمه الله امام ابوداؤد او د هغوى اصحاب رحمهم الله وغيرمذهب دې.

② دحيض دكم نه كم موده يوه ورځ او يوه شپه ده اوزيات نه زيات موده پنځلس ورځې ده. دا دامام شافعي امام احمد بن حنبل حضرت عطاء او امام ابوثور رحمهم الله وغيره مذهب دې.

③ دحيض دكم نه كمه موده درې ورځې اوددې نه كم استحاضه ده او دزيات نه زياته موده لس ورځې دي. امام اعظم ابوحنيفه امام ابويوسف امام محمد اوامام ثورى رحمهم الله وغيره مذهب دې. (٢)

**د احنافو مستدلات:** احناف ددې لاندينو رواياتونه استدلال كوي:

① **ماروي عن ابن مسعود رضى الله عنه: "الحيض ثلاث وأربع وخمس وست وسبع وثمان وتسع وعش، فإن زاد فهى استحاضة"** يعنى د ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې حيض درې ورځې، څلور ورځې، پنځه ورځې، شپږ ورځې او اووه ورځې، اته ورځې او نه ورځې اولس ورځې وي اوكله چه د لسو ورځو نه زيات شي نوهغه استحاضه ده.

**رواه الدارقطني وقال: لم يروه عن الأعمش بهذا الإسناد غير هارون بن زياد وهو ضعيف الحديث، وليس لهذا الحديث عند الكوفيين أصل عن الأعمش.** (٣)

② **حديث أبى أمامة، رواه الطبراني فى معجمه والدارقطني فى سننه من حديث حسان بن إبراهيم عن عبدالملك عن العلاء بن كثير عن مكحول عن أبى أمامة رضى الله عنه أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "أقل الحيض للجارية البكر والثيب ثلاثة وأكثر مايكون عشرة أيام، فإذازاد فهى استحاضة"** يعنى ابوامامه باهلى رضي الله عنه فرمائي چه حضورپاك اوفرمائيل د باكره اوثيبه دحيض دكم نه كمه موده درې ورځې اوزيات نه زياته موده لس ورځې ده اوچه كله په لسو ورځ زيات شي نوهغه استحاضه ده.

**ففى سنده عبدالملك مجهول والعلاء بن كثير ضعيف الحديث ومكحول لم يسمع من أبى أمامة، قاله الدارقطني.** (١)

---

(١) سنن دارقطني كتاب الحيض: ١/٣٨٧-٣٨٦رقم الحديث: ٧٩٧، ٧٩٩، ٨٠٠، ٨٠١ مؤسسة الرسالة وروى الدارمي الجزء الأول من التعليق فى كتاب الطهارة باب ماجاء فى أكثر الحيض رقم الحديث:٨٦١، ٨٧٠والجز الثانى فى باب أقل الحيض رقم الحديث: ٨٧٣دارالمغنى للنشروالتوزيع.

(٢) التوضيح لابن ملقن: ٥/١٢٦-١٢٤فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ٢/١٥٢-١٥٠مكتبة الغرباء الأثرية شرح ابن بطال: ١/٤٥٥-٤٥٤.

(٣) سنن الدارقطني: ١/٣٨٨رقم الحديث: ٨٠٥ برواية خالد ابن حبان الرقى عن هارون بن زيات القشرى عن الأعمش عن إبراهيم عن علقمة عن عبدالله، مؤسسة الرسالة.

③ حديث واثلة بن الأسقع الذي رواه الدارقطني في سننه من حديث محمد بن أحمد بن أنس الشافي عن حماد بن المنهال البصري عن محمد بن راشد عن مكحول عن واثلة بن الأسقع قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "أقل الحيض ثلاثة أيام وأكثره عشرة أيام". يعني واثله بن اسقع رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل دحيض دكم نه كمه موده درې ورځې او زيات نه زياته موده لس ورځې ده.

في مسنده حماد بن المنهال مجهول، ومحمد بن أحمد بن أنس ضعيف.[٢]

④ حديث معاذ بن جبل رضي الله عنه، أخرجه ابن عدي في الكل عن محمد بن سعيد الشافعي، حدثني عبد الرحمن بن غنيم سمعت معاذ بن جبل يقول: إنه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "لا حيض دون ثلاثة أيام ولا حيض فوق عشرة أيام، فما زاد، فهي استحاضة، تتوضأ لكل صلاة إلا أيام أقراءها.... الحديث"[٣] يعني حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه فرمائي چه ما رسول الله ﷺ داسې فرمائيلوسره واؤريدو چه نه ددريو ورځونه كم حيض دې اونه د لسو ورځو نه زيات حيض دې اوكله چه په لسو ورځو زيات شي نوهغه استحاضه ده. لهذا ايام حيض نه علاوه به دهرمونځ دپاره اودس كوي.

ففي سنده محمد بن سعيد الشافعي، فالبخاري وابن معين والثوري قالوا: أنه يضع الحديث.[٤]

⑤ ما رواه أبو سعيد الخدري عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: "أقل الحيض ثلاث وأكثره عشر وأقل ما بين الحيضتين خمسة عشر يوماً" يعني حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه د رسول كريم ﷺ دا ارشاد نقل كوي چه د كم نه كم حيض درې ورځې او زيات نه زيات لس ورځې دې اود دووحيضونو په مينځ كښې (طهر) كم نه كم موده پنځلس ورځې ده. رواه ابن الجوزي في العلل المتناهية.[٥] وفيه أبو داؤد النخعي واسمه سليمان. قال ابن حبان: كان يضع الحديث. وقال أحمد: كان كذلك. وقال البخاري: هو معروف بالكذب.[٦]

⑥ حديث أنس رضي الله عنه، أخرجه ابن عدي في الكامل عن الحسن بن دينار عن معاوية بن قرة عن أنس بن مالك رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "أقل الحيض ثلاثة أيام وأربعة وخمسة وستة وثمانية وتسعة وعشرة، فإذا جاوز العشر، فهي مستحاضة". دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل دحيض دكم نه كمه موده درې ورځې، څلور ورځې، پنځه ورځې، شپږ ورځې، اووه ورځې، اته ورځې، نهه ورځې اولس ورځې دی او كله چه په لسو ورځو باندې زياتې شي نو هغه مستحاضه ده.

ففيه الحسن بن دينار وقال ابن عدي: إن جميع من تكلم في الرجال أجمع على ضعفه.[٧]

---

[١] سنن الدارقطني: ٤٠٥/١ رقم الحديث: ٨٤٥ المعجم الأوسط: ١٨٩/١ رقم الحديث: ٥٩٩ دار الحرمين، وكذا المعجم الكبير: ١٢٩/٨ رقم الحديث: ٧٥٨٦ مكتبة العلوم والحكم.

[٢] سنن الدارقطني: ٤٠٧/١ رقم الحديث: ٨٤٧.

[٣] الكامل في الضعفاء لابن عدي، حرف الميم، محمد بن سعيد: ٣٢٠/٧ دار الكتب العلمية.

[٤] التاريخ الكبير: ٩٤/١ رقم الترجمة: ٢٥٧ دار الكتب العلمية تهذيب الكمال: ٢٦٦/٢٥ مؤسسة الرسالة، تهذيب التهذيب: ١٦٣/٩ دار الفكر، البناية للعيني: ٦٢٥/١.

[٥] العلل المتناهية لابن الجوزي: ٣٨٣/١-٣٨٢ رقم الحديث: ٦٤٠ دار الكتب العلمية.

[٦] الضعفاء والمتروكون لابن الجوزي: ٢٢/٢ دار الكتب العلمية، كتاب المجروحين لابن حبان: ٣٣٣/١ دار المعرفة.

[٧] الكامل في لضعفاء لابن عدي، حرف الحاء، حسن بن دينار: ١٢٧/٣ دار الكتب العلمية التحقيق لابن الجوزي: ٣٦٩/١ مكتبة ابن عبد البر.

⑦ حديث عائشة رضي الله عنها الذي ذكره ابن الجوزي في التحقيق، قال: ورويت الحسين بن علوان عن هشام بن عروة عن أبيه عن عائشة رضي الله عنها عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه قال: "أكثر الحيض عشر وأقله ثلاث". (١) يعني حضرت عائشه رضي الله عنها د حضورپاك نه روايت كوي چه د حيض د زياث نه زياته موده لس ورځې او د كم نه كمه موده درې ورځې ده. ففي سنده حسين بن علوان، قال ابن حبان: كان يضع الحديث لا يحل كتب حديثه، كذبه أحمد ويحيى بن معين. (٢)

⑧ وقال الدارقطني: حدثنا عثمان بن أحمد الدقاق قال: حدثنا يحيى بن أبي طالب قال: أخبرنا عبد الوهاب قال: حدثنا هشام بن حسان عن الحسن أن عثمان بن أبي العاص الثقفي رضي الله عنه قال: "الحائض إذا جاوزت عشرة أيام فهي بمنزلة المستحاضة، تغتسل وتصلي". (٣)
يعني عثمان بن ابى العاص ثقفي رضي الله عنه فرمائي چه دحائضه وينه كله په لسو ورځو باندې تجاوز اوكړي نوبيا هغه مستحاضه ده غسل به كوي اومونځ به كوي.
قال البيهقي بعد نقل هذا الأثر: لا بأس بإسناده. (٤)

⑨ وري الدارمي في سننه عن محمد بن يوسف قال: قال سفيان: بلغني عن أنس رضي الله عنه أنه قال: "أدنى الحيض ثلاثة أيام". (٥) يعني سفيان ثوري رحمه الله فرمائي چه ماته د حضرت انس رضي الله عنه نه داخبره رسيدلې ده چه دحيض كم نه كم موده درې ورځې ده. ددې حديث ټول رجال هم هغه دي كوم چه دصحيح مسلم رجال دي اودسفيان نه مراد سفيان ثوري دې چه دكبار تبع تابعين نه دې اود دوى روايات صحيح بخاري كښې هم موجود دي. (٦)
سره ددې چه امام ثوري رحمه الله به كله كله تدليس هم كولو مگر دهغوى شميرد مدلسينو دهغه طبقې نه دې د چا تدليس چه قابل قبول دې. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: «الثانية من احتمل الأئمة تدليسه وأخرجوا له في الصحيح لإمامته وقلة تدليسه في جنب ما رويته كالثوري........الخ» (٧)
اوس دا پورتنې روايت سره ددې چه منقطع دې ليكن داحنافو په نيز اول خودا انقطاع مضر نه ده او دويم دلته انقطاع ځكه هم مضر نه ده چه په دې حديث كښې د انقطاع حديث يو ډير لوئي امام، امام سفيان ثوري رحمه الله دطرف نه واقع شوې ده. لهذا دا اثر قابل دحجت دې اوبيا داهم يواصول دى چه موقوف روايات كله داسې امورو سره متعلق وى چه غير مدرك بالقياس والرائې وى نودهغه موقوف رواياتو حكم به دمرفوعاتو وي.
بل سفيان ثوري رحمه الله دا روايت دحضرت انس رضي الله عنه نه د بلاغ په صيغه سره روايت كړې دې يعني ماته داخبر رسيدلې دې اودادې خبرې دليل دې چه دا اثرد امام سفيان ثوري رحمه الله په نيز دحضرت انس

---

(١) التحقيق لابن الجوزي: ٣٧٠/١.
(٢) التحقيق لابن الجوزي: ٣٧٢/١ كتاب المجروحين لابن حبان: ٢٤٥/١-٢٤٤ دار المعرفة.
(٣) سنن الدارقطني: ٣٩١/١ رقم الحديث: ٨١٦
(٤) الجوهر النقي: ٨٦/١ السنن الكبرى للبيهقي مع الجوهر النقي: ٣٢٢/١ إدارة المعارف النظامية.
(٥) سنن الدارمي: ٦٢٦/١ دار المغني للنشر والتوزيع.
(٦) إعلاء السنن الحيض والنفاس والاستحاضة باب أقل الحيض وأكثره: ٢٤٧/١ إدارة القرآن والعلوم الإسلامية.
(٧) طبقات المدلسين لابن حجر: ١٣ مكتبة المنار، إعلاء السنن: ٢٤٧/١.

رضی الله عنه نه صحیح دي ځکه چه کله چرې صحیح نه وي نوسفیان ثوری رحمه الله به خپل طرف ته نسبت کولوسره په دې باندې د جزم اظهارنه کولو.[1]

⑩ محدث دارقطني رحمه الله سفيان ثوری عن انس دا تيرشوی روايت په نورو دوو طريقو سره روايت کړې دې. يو طريق د وکيع دې او دويم طريق ابواحمدالزبيری دې. د ابواحمدالزبيری د روايت الفاظ دادی: «أدنى الحيض ثلاثة وأقصاه عشرة» يعنی دکم نه کم حيض درې ورځې اودزيات نه زيات لس ورځې دي. اود وکيع د روايت الفاظ دادی: «الحيض ثلاثة إلى عشرة، فمازاد، فهواستحاضة».[2]

⑪هم دغه شان دکبارمحدثينونه حضرت انس رضی الله عنه نه دا روايت حماد بن زيد هم ورايت کوی او د هغوی د روايت الفاظ دادی: «الحيض ثلاث وأربع وخمس وست وسبع وثمان وتسع وعشر».[3]

يعنی حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه حيض درې ورځې څلور ورځې پنځه ورځې شپږ ورځې اووه ورځې اته ورځې نهه ورځې اولس ورځې دي.

⑫دغه شان دکبارمحدثينو نه اسماعيل بن ابراهيم (د چا کنيت چه ابوبشر دې اوددوی دمور طرف ته نسبت کولوسره دوی ته ابن عليه وئيلی شی) هم داحديث روايت کړې دې.[4]

⑬ امام دارقطني رحمه الله د کبارمحدثينونه هشام بن حسان رحمه الله او سعيد رحمه الله هم د حضرت انس رضی الله عنه نه حديث روايت کړې دې دکوم الفاظ چه دادی: «الحائض تنتظر ثلاثة أيام إلى عشرة أيام، فإذا جاوزت، فهي مستحاضة تغتسل وتصلي»[5] يعنی حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه حائضه به ددريو ورځونه واخله ترلسو ورځو پورې انتظارکوی کله چه وينه په لسو ورځو باندې ورزياته شی نوهغه مستحاضه ده غسل به کوی اومونځ به کوی.

دحضرت انس رضی الله عنه داحديث مرفوع هم نقل دې اوموقوف على انس هم روايت کړې شوې دې. مرفوع روايت دمستدل نمبر⑨ لاندې نقل کړې شوې دې کوم چه ابن عدی رحمه الله دحسن بن دينار رحمه الله (راوی) دوجې نه معلول اوکمزرې وئيلې دې. دغه شان د موقوف روايت هم تضعيف کړې شوې دې ځکه چه دهغې په سند کښې جلدبن ايوب دې اوائمه رجال د جلد بن ايوب تضعيف کړې دې. چنانچه ابوعاصم رحمه الله فرمائی «لم يكن بذاك، ولكن أصحابنا أسهلوا فيه».[6]

هسنجانی رحمه الله فرمائی: «تركه شعبة ويحيى وعبدالرحمن»[7] ابوحاتم رحمه الله فرمائی: «شيخ أعرابي ضعيف الحديث، يكتب حديثه ولا يحتج به»[8] امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی: «ليس بالقوي»[1] ابراهيم حربی رحمه الله فرمائی: «غيره أثبت منه»[2] ابن معين رحمه الله فرمائی: «جلد بن أيوب ضعيف».[3]

---

[1]) إعلاء السنن: ۱/۲٤۸-۲۷.

[2]) سنن الدارقطني: ۱/۳۸۹ رقم الحديث: ۸۰۸ برواية وكيع وكذا أحمد عن سفيان عن الجلد عن معاوية بن قرة عن أنس.

[3]) البناية للعيني: ۱/٦۲۷.

[4]) سنن الدارقطني: ۱/۳۸۸ رقم الحديث: ۸۰٦برواية إسماعيل عن الجلد عن معاوية عن أنس، البنياة للعيني: ۱/٦۲۷

[5]) سنن الدارقطني: ۱/۳۹۰ رقم الحديث: ۸۱٤برواية هشام وسعيد عن الجلد، عن معاوية عن أنس.

[6]) الجرح والتعديل: ۲/٥٤۸.

[7]) الجرح والتعديل: ۲/٥٤۸.

[8]) الجرح والتعديل: ۲/٥٤۹.

ليكن ددې تولو باوجود ابن عدى رحمه الله فرمائى ((لم أرله حديثاً جاوز الحد فى النكارة وهو إلى الضعف أقرب)) (۴)

اوبياډير كبارائمه حديث هم د جلد بن ايوب رحمه الله نه دحديث روايت كړې دې لكه سفيان ثورى، حمادان، جرير بن حازم اوعبدالوهاب ثقفى رحمهم الله وغيره دى. (۵)اود ثقات دچانه روايت كول دهغه تعديل دې. (۶)

بل دجلد بن ايوب رحمه الله نه څان له هم دحضرت انس رضي الله عنه دصحديث متابعات اوشواهد موجود دى. چنانچه محدث دارقطنى رحمه الله د ربيع بن صبيح عمن سمع أنساً په طريق سره دا روايت نقل كړې دې. ((لا يكون الحيض أكثر من عشر)) (۷)

ربيع بن صبيح يو ثقه راوى دې چنانچه ابن عدى رحمه الله فرمائى: ((وللربيع أحاديث مستقيمة، ولم أر له حديثاً منكراً جداً، وأرجو أنه لا بأس به وبرواياته)) (۸) امام احمد رحمه الله فرمائى: ((لا بأس به رجل صالح)) (۹)امام شعبه رحمه الله فرمائى: ((هو من سادات المسلمين)) (۱۰)ليكن په دې باندې دا اشكال كيدې شى چه د حديث په سند كښې عمن سمع أنساً مجهول دې؟ نو ددې جواب دادې چه دا مجهول نه دې بلكه دا راوى معاويه بن قره دې د چا تصريح چه محدث عبد الرزاق رحمه الله كړې ده. (۱۱)

دغه شان محدث دارمى رحمه الله ((محمد بن يوسف عن سفيان عن الربيع عن الحسن)) په طريق سره دا روايت نقل كړې دې: ((الحيض عشرة، فما زاد، فهى استحاضة)) ددې حديث سند حسن دې اوهم دا روايت محدث عبدالرزاق رحمه الله هم په دې سند سره روايت كړې دې دحديث الفاظ دادى: ((أبعد الحيض عشر)) (۱۲)

**دامام قدورى m كلام:** امام قدورى رحمه الله فرمائى چه زمونږ ددې مذهب په موافقت كښې د حضرت عمر حضرت على حضرت ابن عباس حضرت انس حضرت ابن مسعود حضرت عثمان بن أبى العاص ثقفى رضي الله عنهم هم اقوال نقل شوى دى اوبيا ددې صحابه كرام رضي الله عنهم اقوالو مخالف نقل نه دې. نو په داسې صورت كښې ددې صحابه كرامو رضي الله عنهم تقليد واجب دې يا بيا مونږ له دا ونيل پكاردى چه هغه امور او

---

(۱) الجرح والتعديل: ۵۴۹/۲.
(۲) إعلاء السنن: ۲۴۸/۱إدارة القرآن والعلوم الإسلامية.
(۳) الجرح والتعدل: ۵۴۹/۲.
(۴) الكامل لابن عدى: ۱۳۱/۳دارالكتب العلمية.
(۵) الجرح والتعديل: ۵۴۸/۲.
(۶) كتاب التجريد للإمام القدورى: ۳۱۶/۱دارالسلام.
(۷) سنن الدارقطنى: ۳۸۹/۱رقم الحديث: ۸۰۹
(۸) الكامل فى ضعفاء الرجال لابن عدى: ۴۱/۴ دارالكتب العلمية.
(۹) الجرح والتعديل: ۴۶۴/۳.
(۱۰) الكامل فى ضعفاء الرجال: ۳۸/۴ دارالكتب العلمية.
(۱۱) البناية للعينى: ۶۲۷/۱.
(۱۲) سنن الدارمى: ۶۲۲/۱رقم الحديث: ۸۶۰ دارالمغنى للنشر والتوزيع. مصنف عبدالرزاق كتاب الحيض باب أجل الحيض: ۲۳۰/۱رقم الحديث: ۱۱۵۱المكتب الإسلامى، بيروت.

مسائل په کوم چه قیاس دلالت اونه کړي. نو په داسې امورو اومسائلو کښې که د صحابي قول موجود وي نوهغه د صحابي قول به په هغه امورو باندې محمول کولې شي چه هغه داخبره دحضورپاك نه پخپله اوریدلې ده اودا هم دحضورپاك نه روایت کوي. (١)

**د ابن همام رحمه الله تحقیق:** محقق ابن همام رحمه الله په دې باب کښې روایت شوي مختلف احادیث په مختلف طرق باندې دنقل کولونه پس لیکي چه داد حضوراکرم نه روایت شوي یو څو احادیث دي کوم چه په مختلف طرق باندې نقل دي. اوداسې د یوې معنی اومفهوم مختلف صحابه کرام نه نقل کیدل ضعیف حدیث هم د حسن درجې ته رسوي.(ځکه چه د بعض نه بعض ته تقویت او تائید ملاویږي اوس سره ددې چه هریو حدیث په خپل ځائې ضعیف سهي خوچه کله دا ټول یو ځائې نوبیا یقیناً به دهغې نه هغه فائده حاصلیږي چه صرف د یوحدیث کیدو په صورت کښې نه شي کیدې. بیا چه کله دا هم یوحقیقت دې چه دذکر کړې شوي احادیثو اوروایاتو ټول طرق ضعیف نه دي بلکه څه صحیح هم دي، اومعامله چونکه دمقدرات شرعیه ده کومه چه غیرمدرك بالقیاس والرائي وي نو په دې کښې به موقوف روایات د مرفوع روایاتو په حکم کښې وي.(٢)

حاصل دا چه داحنافو په مذهب شریعت کښې یو اصل دې دکوم په بنیادباندې چه هغوی استدلال کوي او یومذهب ئې اختیارکړې دې. خوچه کوم حضرات د پنځلسو ورځوداکثر مودې د حیض کیدو قائل دي نوموني خونه دهغوی د طرف نه چرته د حسن درجې څه حدیث وینواونه چرته ضعیف حدیث،بلکه ددې حضراتو استدلال دحضورپاك دښځو متعلق ددې ارشاد نه دې((تمکث احداکن شطر عمرها لا تصلي))اوس اول خوداحدیث صحیح نه دې چنانچه امام بیهقي رحمه الله فرمائي: ((إنه لم يجده)) یعني دوی ته داحدیث نه دې ملاو. هم دغه شان ابن جوزي رحمه الله فر مائي: ((هذا حديث لا يعرف)) یعني داحدیث غیرمعروف دې. هم داسې ابن منده رحمه الله هم دامطعون ګرځولې دې.(٣)

علامه مبارك پوري رحمه الله فرمائي:((لم أجد حديثا لا صحيحا ولا ضعيفا يدل على أن أقل الحيض يوم وليلة وأكثره خمسة عشر يوما إلا هذه الحديث، وقد عرفت أنه لا أصل له، بل هو باطل))(٤) اوکه چرې دا صحیح تسلیم هم کړې شي نوبیاهم ددې حضراتوډپاره په دې کښې څه دلیل نشته دې. ځکه چه دې حدیث کښې د حیض دزمانې تذکره ده اودشطر معنی نه نصف. اوس په دې حدیث کښې شطر دهغې په حقیقي معنی کښې اخستو سره دامعنی اومفهوم نه شي اخستې چه ښځې په خپل نیم ژوند کښې مونځ نه کوي اونه روژه ساتي. ځکه چه دوړوکوالي زمانه دحمل زمانه اوهم دغه شان دایام زمانه داټولې هغه زمانې دي چه په ښځه باندې حیض نه راځي په دې وجه دامعني ممکن نه ده چه ښځه خپل نیم ژوندبغیرد مونځ روژې نه تیروي. البته دا معنی مراد کیدې شي چه ښځه تقریباً نیم ژوند او یا تقریباً نیم عمر بغیرد مونځ روژې تیروي. اوبیا چه کله داحادیث او آثار په رڼاکښې حیض لسو ورځوسره مقید کړې شو نواوس دښځې په ژوند کښې ایام حیض دهغې دنیم عمر سره نیزدې نیزدې کیږي.

اوبیا زموني استدلال دحضورپاك ارشادمبارك ((أكثره عشرة أيام)) نه دې یعني دحیض دزیات نه زیاته

---

(١) کتاب التجرید للإمام القدوري: ٣١٦/١دارالسلام البنایة للعیني: ٦٢٧/١.

(٢) شرح فتح القدیر ومعه الکفایة: ١٦٥/١-١٦٤مکتبه رشیدیه.

(٣) حواله بالا.

(٤) تحفة الأحوذي بشرح جامع الترمذي: ٤٠٣/١ دارالفکر.

موده لس ورځې ده. نودا اوس د شارع عليه السلام دطرف نه تقدير راغلو اودا شرعی تقدير ددې خبرې نه منع كونكې دې چه يوبل تقدير (پنځلس ورځې) دې تقدير سره ملاؤكړې شی.[1]

**داثر ترجمة الباب سره مناسبت:** په ترجمة الباب كښې ددې خبرې تذكره ده كه چرې يوه مطلقه ښځه د يوې مياشتې په كمه موده كښې دعدت دتيرولودعوی اوكړی نودهغې ددعوی تصديق به كولې شی په دې شرط چه دښځې په بيان كړې شوې موده كښې دعدت مكمل كيدل ممكن هم وی اوحضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله مذكوره اثر پيش كولو سره امام بخاری رحمه الله د امام احمد رحمه الله دمذهب تائيد اوموافقت كړې اوددې خبرې طرف ته ئی اشاره اوكړه چه د يوې مياشتې په كمه موده كښې دعدت مكمل كيدل ممكن دې لكه چه وړاندې په تفصيل سره دامسئله تيره شوې ده.[2]

**قوله:: قال معتمر عن أبيه: سألت ابن سيرين عن المرأة ترى الدم بعد قرءها بخمسة أيام؟ قال: النساء أعلم بذلك:** معتمر رحمه الله دخپل پلار نه روايت كوی چه هغه دابن سيرين رحمه الله نه دهغه ښځې باره كښې تپوس اوكړو چه د قرء (حيض) نه فارغيدو سره پنځه ورځې پس بيا وينه اووينی؟ نو ابن سيرين رحمه الله جواب وركړو چه ښځې په دې باره كښې ښه پوهيږی.

### دتعليق مقصد

**دعلامه كرمانی رحمه الله رائې:** علامه كرمانی رحمه الله فرمائی چه د لفظ قرء نه مراد دپاكئې ورځې دی. دحيض ورځې مراد نه دی ځكه چه دې نه وړاندې د "دم" لفظ تيرشوې دې اوددې نه مقصد دادې چه آيا اقل طهر دپنځو ورځوكيدې شی كه نه شی كيدې؟[3]

**دنورو شراح حضراتو رائې:** ليكن اكثر شراح حضرات ددې وضاحت ترديدكړې دې اود هغوی په نيزددې اثر معنی داده چه دابن سيرين رحمه الله نه دهغه ښځې باره كښې تپوس شوې دې چاته چه په معتاد اومعين ايام كښې حيض راځی ليكن دې ځل هغې باندې دمعتاد ايام حيض نه پس نور پنځه ورځې يا كم زيات وينه راغلې ده. نواوس ددې زياتی باره كښې څه حكم دې؟ نوابن سيرين رحمه الله اوفرمائيل چه ښځې په دې معامله كښې ښه پوهيږی. لهذا ددواړو وينو په مينځ كښې به فرق هغه پخپله كوی. اوداحنافو په نيز چونكه عادت بدليدې شی په دې وجه كه چرې دمعتاد ايام حيض نه د پنځو ورځو دا زياتوالې په لسو ورځوكښې دننه ختميږی نوهغه ټول په ټول به حيض شميرلې شی اوكه چرې دا زياتوالې د لسو ورځونه زياتی كيږی نو په دې صورت كښې معتاد ايام دحيض دی اودا زياتی ورځې به د استحاضه شميرلې كيږی. اوكه چرې هغه ښځه داسې ده چه په دواړو وينوكښې فرق نه شی كولې نوچه هغه كومه په لسو ورځوكښې دننه وينی هغه به حيض شميرلې كيږی اوكوم چه په دغه لسو ورځو باندې زياتی وی هغه به استحاضه وی. حاصل دكلام دا شو چه "بعد قرءها" نه مراد "بعد طهرها" نه بلكه دې نه مراد "بعد حيضها" دې.[4]

---

[1]) شرح فتح القدير ومعه الكفاية: ١٦٥/١-١٦٤مكتبه رشيديه.

[2]) هذا مايستفاد من: فتح الباري: ٤٢٤/١وعمدة القاري: ٤٥٥/٣وشرح الكرماني: ١٩٩/٣.

[3]) شرح الكرماني: ٢٠٠/٣ إرشادالساري: ٣٦٢/١.

[4]) عمدة القاري: ٤٥٦/٣فيض الباري: ٥٠٦/١.

**د علامه انورشاه كشميري رحمه الله تحقيق:** علامه انورشاه كشميري رحمه الله فرمائي د ابن سيرين رحمه الله د مراد حصول بغيرد سنن ابي داؤد دمراجعت نه ممكن نه وو. په دې وجه چه كله د سنن ابي داؤد تفصيل سره مراجعت اوكړې شو نو په هغې سره د ابن سيرين رحمه الله مراد هم واضح شو. چنانچه په سنن ابي داؤد كښې تفصيل څه داسې دې «قال أبوداؤد وروىٰ يونس عن الحسن: الحائض إذا مدبها الدم (يعني استمربها وزاد على عادتها) تمسك بعد حيضتها يوماً أو يومين (يعني: عن الصلاة والصيام، هي عنده إلى يومين حائضة) فهي (أي: بعد يومين) مستحاضة. وقال التيمي عن قتادة: إذا زاد على أيام حيضها خمسة أيام، لتصلي. قال التيمي: فجعلت أنقص حتى بلغت يومين، فقال: إذا كان يومين فهو من حيضها. وسئل ابن سيرين عنه، فقال: النساء أعلم بذالك» [1] ددې پوره تفصيل نه معلوميږي چه دابن سيرين نه دكيدونكي سوال حاصل داوو كه چرې په يوه ښځه باندې د دغه معتاد ايام نه زياتي وينه راشي نود دغه زياتي وينې څه حكم دې؟ نوابن سيرين رحمه الله د دغه زياتي وينې باره كښې هيڅ جواب ورنه كړو بلكه ټوله معامله ئې ښځوته حواله كړه چه هغه ښځې په دې معاملاتوباندې ښه پوهيږي. په خلاف دامام تيمي رحمه الله څكه چه هغه د پنځونه دوه ورځې دحيض اوګرځولې چه په دې كښې به ښځه مونځ وغيره نه كوي اوباقي ورځې ئې داستحاضه شمير كړې. [2]

**داستظهارمسئله:** په حقيقت كښې دامسئله دمالكيه په نيزداستظهار په نوم سره مشهوره ده او مسئله داده چه ښځه دايام معتاده نه پس به درې ورځې انتظاركوي كه په دريو ورځوكښې دننه وينه راغله نوا وينه ددروستنئي وينې حصه ګڼرلوسره په حيض كښې شميرلې شي اوكه وينه ددريوورځونه پس راغله نوبيا هغه استحاضه ده. [3]

**د قرء نه مرادحيض دې:** د ابن سيرين ددې اثر نقل كولونه پس صاحب دتلويح فرمائي چه دابن سيرين اثر دهغه حضراتو دپاره شاهد دې چه دقرء نه حيض مراد اخلي لكه چه د امام اعظم رحمه الله مذهب دې. [4] او ابن التين رحمه الله د حضرت عطاء رحمه الله نه هم دقرء نه حيض مراد اخستل نقل كړي دي. [5] سفاقسي رحمه الله فرمائي چه دقرء نه مراد حيض دې هم دغه دابن سيرين رحمه الله اوعطاء رحمه الله مذهب دې اود حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم نه د يولسو صحابه كرامو رضي الله عنهم هم دغه قول دې. ددوی نومونه دادي: ① نه ④ پورې خلفاء اربعه ⑤ابن عباس ⑥ابن مسعود ⑦ معاذ ⑧قتاده ⑨ ابوالدرداء ⑩ ابوموسیٰ او ⑪ حضرت انس رضي الله عنهم. هم دغه شان دتابعينونه ابن المسيب، ابن جبير، امام طاؤوس، امام ضحاك، امام حسن، امام شعبي، امام ثوري، امام اوزاعي، امام اسحاق او ابوعبيده رحمهم الله هم دغه قول دې. [6]

---

[1] سنن أبي داؤد كتاب الطهارة باب من قال: إذا أقبلت الحيضة تدع الصلاة، رقم الحديث: ۲۸۶.

[2] فيض الباري: ۵۰۶/۱.

[3] فيض الباري: ۵۰۶/۱.

[4] التوضيح: ۱۲۳/۵ عمدة القاري: ۴۵۶/۳.

[5] التوضيح: ۱۲۳/۵

[6] التوضيح: ۱۲۳/۵ عمدة القاري: ۴۵۶/۳.

## تراجم رجال

**معتمر**: دا ابومحمد معتمربن سليمان بن طرخان تيمى بصرى رحمه الله دي. دد وى لقب طفيل وو د بنو مره مولى وو او بنو تميم كښې اقامت اختيارولودوچې نه تيمى يادېدلو ګنى حقيقت كښې د بنوتيم نه نه وو. (۱) ددوى تفصيلى حالات تفصيلى حالات كتاب العلم باب من خص بالعلم قوماً دون قوم الخ د ريم حديث لاندې تيرشوى دى. (۲)

**ابن سيرين**: دا مشهور تابعى امام شيخ الاسلام ابوبكر محمد بن سيرين انصارى بصرى رحمه الله دي. ددوى حالات كتاب الايمان باب اتباع الجنائز من الايمان لاندې تيرشوى دى. (۳)

**د تعليق ترجمة الباب سره مناسبت**: ددې تعليق ترجمة الباب سره مناسبت «وما يصدق النساء فى الحيض» كښې دې يعنى څنګه چه دحيض اوحمل په مسائلو كښې معاملات ښځو ته حواله دى اوددې دبيان به په ممكن موده كښې تصديق كولې شى هم دغه شان په مذكوره اثركښې هم معتاد ايام نه زياتى ايام معامله دښځې حواله كړې شوې ده چه دا ښځې په دې مسئلوباندې ښه پوهيږى لهذا هم ددوى خبره به معتبروى. (۴)

## الحديث

[۳۱۹]- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ ابْنُ أَبِي رَجَاءٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ عُرْوَةَ قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ، سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ: إِنِّي أُسْتَحَاضُ فَلاَ أَطْهُرُ، أَفَأَدَعُ الصَّلاَةَ، فَقَالَ: «لاَ إِنَّ ذَلِكِ عِرْقٌ، وَلَكِنْ دَعِي الصَّلاَةَ قَدْرَ الأَيَّامِ الَّتِي كُنْتِ تَحِيضِينَ فِيهَا، ثُمَّ اغْتَسِلِي وَصَلِّي» (۵)-لر [۲۲۲]

**ترجمه**: دحضرت عائشه رضى الله عنها نه روايت دې چه حضرت فاطمه بنت ابى جحش رضى الله عنها د حضورپاك نه تپوس اوكړو چه په مابانديې استحاضه وى اوزه هډو پاكيږم نه، آيا زه مونځ پريږدم؟ حضورپاك اوفرمائيل نه، داد رګ وينه ده البته مونځونه ددومره ورځو په اندازه پريږده په كوم كښې چه به تاته حيض راتلو. بيا غسل كوه اومونځ كوه.

## تراجم رجال

**احمدبن ابي رجاء**: دامشهورمحدث احمدبن عبدالله بن ايوب حنفى هروى رحمه الله دي. داحمدبن ابى رجاء په نوم سره مشهوردي اوددوى كنيت ابوالوليددي. امام بخارى رحمه الله ددوى نسب هم داسې بيان كړې دې. (۶) خوحاكم ابوعبدالله رحمه الله ددوى نسب داسې بيان كړې دې: «أحمدبن عبدالله بن واقدبن ا

---

(۱) تهذيب الكمال: ۲۵۰/۲۸.

(۲) كشف البارى: ۵۹۰/۴.

(۳) كشف البار ى: ۵۲۴/۲.

(۴) هذا مايستفادمن عمدة القارى: ۴۵۶/۳.

(۵) قوله: عائشة: الحديث، مرتخريجه فى باب الاستحاضة تحت رقم الحديث: ۳۰۶.

(۶) التاريخ الكبير: ۵/۲رقم الترجمة: ۲۵۰۳دارالكتب العلمية.

لحارث بن عبدالله بن أرقم بن زياد بن مطرف بن النعمان بن سلمة بن ثعلبة بن السرول بن حنفة الحنفي، أبوالوليد بن أبي رجاء الهروي» .[1] چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه امام حاکم رحمه الله د امام بخاري رحمه الله برخلاف دده د نيکه نوم دايوب په ځائې باندې واقد بن الحارث خودلې دې اود ده نسبت ئې بنی حنيفه طرف ته کړې دې. [2]

هغوی دسفيان بن عيينه، ابواسامه حمادبن اسامه، سلمه بن سليمان المروزی، اسحاق بن سليمان الرازی، نضر بن شميل، وکيع بن الجراح، عبدالعزيز بن رزفه، يحيی بن آدم او يحيی بن سعيد القطان رحمهم الله وغيره د حديث روايت کړې.

اوددوی نه امام بخاری، احمدبن حفص بن عبدالله السلمی النيسابوری، اسحاق بن منصور الکوسج ، حسن بن ايوب النيسابوری، عبدالله بن عبدالرحمن الدارمی، ابوزرعه عبيدالله بن عبدالکريم الرازی او ابوحاتم احمدبن ادريس الرازی رحمهم الله وغيره دحديث روايت کوی. [3]

ابو حاتم رحمه الله فرمائي: صدوق. [4] امام حاتم رحمه الله فرمائي چه ابن ابی رجاء په خپله زمانه کښې په هرات کښې د فقه اوحديث امام پاتې دې. هغوی او امام احمد بن حنبل رحمه الله په يوځائې دحديث علم حاصل کړې دې. اوهغوی په انتخاب کولوسره دخپلو شيوخ نه احاديث نقل کړی دی. [5]

امام نسائی رحمه الله په خپل شيوخ کښې داحمدبن عبدالله رحمه الله تذکره کولوسره وئيلی دی چه دې به د ابن ابی رجاء رحمه الله په نوم سره پيژندلې شو او امام نسائی رحمه الله دهغوی نه په مقام شغرکښې احاديث ليکلی دی[6] دې نه علاوه امام نسائی رحمه الله فرمائي «ثقة لابأس به» [7] ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې. [8]

ددوی انتقال په ۲۳۲ هجری کښې شوې دې. [9]

**أبوأسامة**: دا مشهورمحدث حماد بن ابواسامه رحمه الله دې. ددوی حالات **كتاب العلم باب فضل من علم وعلم** لاندې تيرشوی دی. [10]

**هشام**: داد عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله خوئی دې. د دوی مختصر حالات **بدء الوحي** دويم حديث لاندې [11] اوتفصيلی حالات **كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله** أدومه لاندې تيرشوی دی. [12]

---

[1]) تهذيب الكمال: ۱/ ۳۶٤.

[2]) تهذيب التهذيب: ۱/ ٤۰.

[3]) دَ تلامذه او شيوخ دَپاره اوګورئی تهذيب الكمال: ۱/ ۳۶٤.

[4]) الجرح والتعديل: ۲/ ۵۷.

[5]) تهذيب الكمال: ۱/ ۳۶۵ تهذيب التهذيب: ۱/ ٤۰.

[6]) تهذيب الكمال: ۱/ ۳۶۵ تهذيب التهذيب: ۱/ ٤۰.

[7]) تهذيب الكمال: ۱/ ۳۶۵ تهذيب التهذيب: ۱/ ٤۰.

[8]) ۸/ ۲۸.

[9]) كتاب الثقات: ۸/ ۲۸ تهذيب الكمال: ۱/ ۳۶۵ تهذيب التهذيب: ۱/ ٤۰.

[10]) كشف الباری: ۳/ ٤۱٤.

[11]) كشف الباری: ۱/ ۲۹۱.

[12]) كشف الباری: ۲/ ٤۳۲.

**عروة**: دا عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله دي. د دوی مختصر حالات بدءالوحي دويم حديث لاندې [۱] او تفصیلی حالات کتاب الایمان باب أحب الدین الی الله أدومه لاندې تیرشوی دی. [۲]

**عائشة**: دا ام المؤمنین سیده عائشه بنت ابی بکر الصدیق رضي الله عنهما ده. د دوی حالات بدءالوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی. [۳]

## شرح حديث

### قوله: ولكن دعي الصلاة:

**یواشکال اودهغې جواب**: سوال دا پیداکیږی چه کلمه "لکن" د استدراك دپاره استعمالیږی اوددې دپاره ضروری دې چه ددې ماقبل اومابعد دواړه په خپل مینځ کښې متغائروی خودلته داسې نه دی؟ نوجواب دادې چه دلته دحدیث معنی داده: «لاتترکی الصلاة کل الأوقات ولکن اترکیها فی مقدار العادة» یعنی د لکن نه وړاندې ئی دا اوخودل چه په ټولو وختونوکښې مونځونه نه دی پریخودل اود لکن نه پس ئی دا اوخودل چه په خپل معتاد ایام کښې مونځونه پریخودل دی. [۴]

### قوله: قدر الأيام التي كنت تحيضين فيها:

د قدرالأیام نه دې خبرې طرف ته لارخودنه کیږی چه حضرت فاطمه بنت ابی جیش رضي الله عنها معتاده وه. [۵]

حدیث ددې تکړې مفهوم دادې چه مستحاضه معتاده به ددومره ورځو مونځونه او روژې پریږدی په څومره ورځوکښې چه به په هغې باندې حیض راتلو. نوکه دهغې عادت چرته په هره میاشت کښې د شروع لس ورځې وې یا مینځمې لس ورځې وې نوهغه به هره میاشت کښې دغه لس ورځې مونځ اوروژې پریږدی. دغه شان که چرې دهغې عادت په هره میاشت کښې شروع، مینځ یاآخری شپږ، اووه یا اته ورځې وو او اوس هم یوشان حیض راځی نو په خپلو زړو دغه معتاد ورځوکښې به مونځونه اوروژې پریږدی اوددې نه پس ورځوکښې به دمونځونو او روژو اهتمام کوی. [۶]

بل په دې روایت بنې دا هم معلومه شوه چه حضرت فاطمه بنت ابی جیش رضي الله عنها ته داستحاضه کیدونه وړاندې هغه ورځې یادې وې په کوموکښې چه به هره میاشت په هغې باندې دحیض وینه راتلله. څکه چه که چرې هغې ته هغه ورځې یادې نهوې نود حضورپاك ارشاد «دعی الصلاة قدر الأیام التی کنت تحیضین فیها» به څه فائده نه وه بلکه په نورو روایتونوکښې خوددې نه هم د زیات صراحت سره حکم ورکړې شوې دې. لکه چه دامام داؤد رحمه الله په روایت کښې د حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل:

---

[۱] کشف الباري: ۲۹۱/۱.
[۲] کشف الباري: ۴۳۶/۲.
[۳] کشف الباري: ۲۹۱/۱.
[۴] عمدة القاري: ۴۵۷/۳.
[۵] عمدة القاري: ۴۵۷/۳.
[۶] عمدة القاري: ۴۵۷/۳.

«لتنظر عدة الليالي والأيام التي كانت تحيض من الشهر قبل أن يصيبها الذي أصابها، فلتترك الصلاة قدر ذلك من الشهر، فإذا خلفت ذلك فلتغتسل ثم لتستفر بثوب ثم لتصلي»[1]

په دې روايت كښې بالكل په واضحه اندازكښې حكم ورکړې شوې دې چه داستحاضه كيدونه وړاندې چه په هره مياشت كومو ورځو او شپوكښې وينه راتلله په هغې كښې دمونځونووغيره انتظاركول دي يعنى نه دى كول. بياچه كله هغه ورځې تيرې شى نوغسل اوكړه كپړې صفاكړه او مونځ كوه. دكوم نه چه معلوميږى چه فاطمه بنت ابى جيش رضي الله عنها دخپل عادت ورځې ښه پيژندې.[2] اوس پاتې شوه هغه مستحاضه چاته چه دخپل عادت ورځې يادې نه وى نودهغې حكم دادې چه هغه به د هرې مياشتې لس ورځې د حيض شميرى او باقى به د استحاضه وى.[3]

**داحنافو دحديث باب نه په أقل حيض او اكثر حيض باندې استدلال:** احناف ددغه پورتنى حديث نه په اقل حيض اوپه اكثرحيض باندې استدلال كوى اود استدلال طريقه داده چه دلته دايام لفظ استعمال شوې دې. ايام جمع سالم ده او ددې اطلاق كم نه كم په دريوباندې كيږى او زيات نه زيات په لسو باندې كيږى. چنانچه د دريو نه دكمو دپاره د ايام لفظ نه استعماليږى بلكه يوم او يومين ونيلى كيږى. اونه ددې نه د زياتودپاره دايام لفظ استعماليږى بلكه دهغې د پاره أحدعشريوماً استعمالولې شى.[4]

**د ابن رجب حنبلى رحمه الله اعتراض:** ابن رجب حنبلى رحمه الله په دغه پورته ذكرشوى استدلال باندې ردكولوسره فرمائيلى چه په مذكوره روايت كښې لفظ ايام په خپل حقيقى معنى كښې نه دې بلكه داوقات په معنى كښې دې ځكه چه د لفظ يوم استعمال كله دوخت په معنى كښې كيږى.[5]

**دابن رجب حنبلى رحمه الله د اعتراض جواب:** ددې جواب جواب دادې چه كله دلفظ استعمال په خپله حقيقى معنى كښې كيدې شى اوهيڅ يو امر ددې نه مانع نه وى نوبيا بغيرد وجې نه د حقيقى معنى نه عدول كولوڅه ضرورت دې؟ دويمه خبره داده چه كه چرې ايام د اوقات په معنى كښې استعمالوى نودحديث مفهوم غلط كيږى ځكه چه دوخت په معنى كښې د اخستلو په صورت كښې به دحديث مطلب څه داسې شى: "ليكن پريږده مونځونه دهغه اوقاتو په اندازه په كوم كښې چه په تاباندې حيض راتلو"

هركله چه دا خبره معلومه ده چه حيض هروخت او هره لمحه نه راتلو نومطلب دادې چه په كوم كوم وخت كښې د حيض وينه راشى صرف په هغه وختونوكښې د مونځ نه منع شه اوكله چه يو وخت دحيض د وينې راتلونه فارغ وى نوبيا مونځونه كولې شې. اوس ښكاره خبره ده چه دا مفهوم سراسر غلط دې.

**د ابن رجب حنبلى رحمه الله دويم اعتراض:** ابن رجب حنبلى رحمه الله دويم اعتراض دايام عادت په مراد كيدو باندې كړې دې هغوى فرمائى چه حضورپاك صرف هم دغه يوه ښځه دهغې دعادت طرف ته را

---

[1] سنن أبى داؤد كتاب الطهارة باب فى المرأة تستحاض.... الخ، رقم الحديث: ٢٧٤.
[2] عمدة القاري: ٤٥٧/٣.
[3] عمدة القاري: ٤٥٧/٣.
[4] عمدة القاري: ٤٥٨/٣ فتح البارى لابن رجب:١٥٤/٢ أوجز المسالك: ٦٢٣/١
[5] فتح البارى لابن رجب:١٥٤/٢

اروليې ده دچاد حيض ايام چه په هره مياشت کښې متعين وي. اوس په دې کښې ددې خبرې هيڅ دليل نشته چه دهرې ښځې حيض دې داسې وی لکه څنګه چه ددغه ښځې وو. «بلکه کيدې شی که يوې ښځې باندې صرف هم يوه ورځ حيض راځي».

**ددويم اعتراض جواب:** دادې چه دلته په روايت کښې دا احتمال نه شی کيدې چه داحکم ئی د يوداسې ښځې متعلق فرمائيلې وی د چاد حيض ورځې چه متعين وې. په دې وجه حضورپاك د دغه ښځې معتاده کيدل نه پيژندل او بيا په يو بل روايت کښې د رسول الله ﷺ ارشاد مبارك دې چه: «المستحاضة تدع الصلاة»[1]

دلته په دې روايت کښې عام حکم دې چه مستحاضه به مونځ پريږدی. اوس ښکاره خبره ده چه مستحاضه به په هغه ورځوکښې مونځ پريږدی په کومو ورځوکښې چه دحيض وينه راتلله اودلته صرف چرته يوې ښځې ته خطاب نه دې بلکه عام حکم بيان شوې دې.[2]

**مستحاضه ښځوسره متعلق اختلاف روايات اوتطبيق مختلف صورتونه:** واضحه دې وی چه د مستحاضه ښځو سره متعلق په احاديثو اورواياتوکښې دومره اختلاف دې چه په دې رواياتو او احاديثو کښې د تطبيق او توفيق لار راويستل ډيرمشکل دی. هم دغه وجه ده چه فقهاء کرامو دا مسئله په ډير اهتمام سره اخستې ده اوعلماء کرامو په دې باندې مستقل تصانيف هم تحرير کړی دی. مګر ددې ټولو باوجود دمستحاضه ښځو مشکلات او سختنی حل نه شوې او وجه په دې باب کښې راغلې روايات اواحاديثوکښې کثرت اختلاف دې. بيا بعض حضراتو د ترجيح لار اختيارکړې ده او هغوی دتوحيد غسل او الوضوء لکل صلاة رواياتوله په نورو رواياتو باندې ترجيح ورکړه. او بعض د نسخ لار اختيارکړه اود توحيد غسل او الوضوء لکل صلاة نه علاوه نی ټول روايات منسوخ اوګرځول البته مقصد او غرض ددوارو جماعتونو هم يوراوځي.[3] داحنافو نه امام طحاوی رحمه الله د نسخ قول کړې دې اوهم دا علامه شوکانی هم اختيارکړې دې.[4]

مګر دا خبره دې هم واضحه وی چه ډير زيات مختلف روايات يودم ترك کول هم دومره آسانه خبره نه ده خوبل طرف ته داسې کول هم د قواعد اوضوابط موافق هم دی.پس بعض حضراتو خودتعددغسل روايات منسوخ ګرځولې او بعض حضراتو دا تاويل اوکړو چه د تعدد غسل حکم دعلاج په غرض سره وو اويا بيا دتعددغسل حکم مستحب امر دی. په دې باب کښې راغلی احاديثو هم دغه درې توجيهات اوکړې شو. هم دغه شان د بعض حضراتو دا کوشش دې چه په دې باب کښې روايت شوی مختلف روايات دمستاحضه په مختلف قسمونو باندې محمول کړې شی. دمثال په توګه دهر مونځ دپارد دغسل کولوحکم نی په مستحاضه متحيره باندې اولګولو اود اقراء روايات ئی په مستحاضه معتاده باندې اولګولو اود اقبال او ادبار روايات ئی په مستحاضه مميزه باندې اولګول خو بيا هم پدې باندې اعتراض کيږی چه په دې باب کښې خو هم د يوې ښځې متعلق مختلف احاديث مختلف احکام او مختلف الفاظو سره راغلی دی. په داسې کښې به يوې ښځې سره کوم کوم حکم متعلق وی يا بيا به هغه ښځه دمستحاضه په کوم يو قسم کښې داخله ګنړلې شی. چنانچه هم حضرت فاطمه

---

[1] سنن أبي داؤد كتاب الطهارة باب في المرأة تستحاض..... الخ رقم الحديث: ۲۸۱.

[2] كتاب التجريد للإمام القدوري: ۳۱۳/۱دارالسلام.

[3] أوجز المسالك:۶۰٤/۱.

[4] شرح معاني الآثار: ۸۱/۱-۸۰ المكتبة الحقانية، نيل الأوطار للشوكاني: ۲۸٤/۱-۲۸۳.

بنت ابی جیش رضی الله عنها چه واخلې چه هغې سره متعلق نقل شوی روایات بعض خوداسې دی چه دهغې په معتاده کیدو باندې دلالت کوی اوبعض داسې دی چه دهغې په ممیز کیدو باندې دلالت کوی خوددې هرڅه باوجود متعدده په انواع مختلفه للمستحاضه (دمستحاضه مختلف انواع) باندې محمول کول په نسبت دنسخ اوترجیح زیات آسان دی. ځکه چه په دې صورت کښې پیداشوی اعرتاضاتو څه نه څه توجیه کړې شوې ده. خو په اول طریق باندې ډیر زیات اشکالات وارد کیږی. (١)

**فائده:** امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی د استحاضه مسئله د دریو احادیثو په مینځ کښې راګیره ده.

① حدیث فاطمه ② حدیث ام حبیبه ③ حدیث حمنه. خو په یوروایت کښې د حدیث ام حبیبه په ځائې باندې حدیث ام سلمه دې. (٢) رضی الله عنهن.

**دمستحاضه څلور قسمونه اودهغې احکام:** ابن قدامه فرمائی چه د ائمه اربعه په نیز دمستحاضه څلور حالتونه دی ① **ممیزة لاعادة لها** ② **معتادة لاتمیز لها بالدماء** ③ **من لها عادة وتمیز** ④ **من لاعادة لها ولا تمیز**. (٣)

**د اول قسم بیان:** داول قسم نه مراد هغه ښځه ده چه دخپل حیض وینه د استحاضه دوینې نه جدا اوځان له کولې شی. اوددواړو وینو په مینځ کښې فرق کول پیژنی. (باوجود ددې چه د فقهاؤ په مینځ کښې دحیض په رنګونو کښې هم اختلاف دې او دا تمییز الالوان ته محدثین د اقبال او ادبار په شان اصطلاحاتو سره تعبیرکوی). ددې قسم حکم دادې چه کله دې ته د حیض وینه دهغې د رنګ (مثلاً تور رنګ) سره راشی نوموننځ دې پریږدی چه کله هغه وینه لاړه شی او زیړوالې راشی نوحیض غسل دې اوکړی اوبیادې د هر مونځ د پاره اودس کوی. (٤)

ابن قدامه رحمه الله فرمائی چه مستحاضه هغه ښځه ده دچادپاره چه اقبال اوادبار ثابت وی. (یعنی هغې ته په وینه کښې مختلف رنګونه معلومیږی) بعض وینه د تک تور رنګ اوبدبوئی والاوی اوبعض سره یا زیړه بغیرد څه بدبوئی نه وی. او چه کومه تکه توره وینه راوځی نوهغه اکثردحیض (د حیض اکثری موده) نه زیاتیږی هم نه او اقلِ حیض (دحیض کمه موده) نه کمیږی هم نه نودداسې ښځې حکم دادې چه ددې د حیض زمانه هغه ده په کوم کښې چه په دې باندې توره وینه یا تکه توره یابدبویه قسم وینه راشی. نوددې قسم وینې په ختمیدو باندې به دغه ښځه دحیض غسل کوی اوبیابه دهریومونځ دپاره نوې اودس کوی اوهم دغه د امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله مذهب دې. (٥)

احناف (کثرالله سوادهم) دتمییزبالالوان دسره اعتبارنه کوی دهغوی په نیز صرف او صرف دعادت اعتباردې. ځکه چه دحضرت ام سلمه رضی الله عنها په روایت کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی وو ((**لتنظرعدة**

---

(١) أوجزالمسالک: ٦٠٤/١.

(٢) المغنی لابن قدامة: ٣٨٨/١.

(٣) المغنی لابن قدامة: ٣٩٢/١.

(٤) أوجزالمسالک: ٦٠٥/١.

(٥) المغنی لابن قدامة: ٣٩٢/١.

الليالي والأيام»(۱). يعنى هغې له پكاردى چه د شپو اوورځو شميراوكړى. نودا الفاظ په دې امر كښې بالكل صريح او واضح دى چه اعتبارد عادت دې د رنګوونه دې. (۲)

**د دويم قسم بيان:** ددويم قسم نه مراد هغه مستحاضه ده چاته چه خپل عادت معلوم دې اوهغه د رنګونو فرق نه پيژنى، نودداسې ښځې دپاره حكم دادې چه دخپل عادت په ورځوكښې دې مونځونه پريږدى اوبيا دې په ختميدو باندې غسل كوى اوبيادې دهرمونځ دپاره نوې اودس كوى آوهم دغه د ائمه ثلاثه مذهب دې

**دامام مالك رحمه الله مذهب:** امام مالك رحمه الله فرمائى چه دعادت اعتبار به نه شى كولې اعتبار خوصرف او صرف د رنګونو دې. چنانچه د امام مالك رحمه الله په نيز دداسې مستحاضه دپاره حكم دادې چه هغه به د ايام عادت په ختميدو باندې درې ورځې انتظاركوى. كه چرې په دريو ورځوكښې دننه وينه راغله نوهغه وينه به دتيرې وينې حصه ګنړلې شى اودا به په حيض كښې شميرلې شى اوكه چرې دريو ورځو پورې وينه رانغله بلكه ددې نه پس راغله نودا به استحاضه شميرلې كيږى. (۳)

علامه باجى رحمه الله فرمائى كه دمعتاده وينه په ايام عادت باندې ورزياته شى نو په داسې صورت كښې دامام مالك رحمه الله نه دوه رويات دى: ① دايام عادت پورې خو به د مونځونونه منع وى اوبيابه ددې نه پس دريوورځو پورې انتظاركوى كمامر.

② په داسې صورت كښې به داكثرمودې دحيض پورې به مونځونه نه كوى يعنى پنځلس ورځو پورې به مونځونه نه كوى اودپنځلس ورځونه پس به مستحاضه شميرلې كيږى.(۴)

مقدمات ابن رشدكښې دامام مالك رحمه الله نه په دې مسئله كښې پنځه أقوال نقل دى په كوموكښې چه يو قول د حمهورو په موافقت كښې هم دې. الحاصل په دې مسئله كښې د ائمه اربعه نه د عادت اعتباركول نقل دى سره ددې چه د امام مالك رحمه الله په نيز راجح استظهاردې.(۵)

**د دريم قسم بيان:** دريم قسم دهغه مستحاضه دې چاته چه خپل ايام عادت هم ياد دى او هغه د رنګونوپه مينځ كښې فرق هم پيژنى نوچه كه چرې دواړه صورتونه جمع شى په داسې معنى چه توره تينګه اوبدبوئى داره وينه په هغې باندې په ايام عادت كښې راځى نوبياخوهيڅ د اشكال خبره نشته دې د هريواعتباركولې شى. خوكه په دواړو كښې اختلاف اوشى په داسې معنى چه ايام عادت نورې دى او تور رنګ تينګ رنګ او بدبوئى دارې وينې دراتګ ايام نورې دى نو په داسې صورت كښې د احنافو اوحنابله د «صحيح قول مطابق» به د عادت اعتباركيږى. خود شوافع او مالكيه په نيز به تمييزبالالوان اعتباركيږى.(۶)

---

(۱) رواه أبوداؤد فى الطهارة باب المرأة تستحاض.... الخ رقم الحديث: ۲۷۴ والنسائى فى الطهارة باب ذكر الاغتسال من الحيض رقم الحديث: ۲۰۹

(۲) المغنى لابن قدامةٌ: ۳۹۲/۱.

(۳) المغنى لابن قدامةٌ: ۳۹۶/۱.

(۴) المنتقى شرح مؤطا الإمام مالك: ۴۵۳/۱.

(۵) المدونة الكبرى: ۵۰/۱طبـع بمطبعـة السعادة بجـوار محافظـة مصر، عارضـة الأحـوذى لابـن العربـى المـالكى: ۲۰۹/۱دارالكتب العلمية أوجزالمسالک: ۶۰۷/۱.

(۶) المغنى: ۴۰۰/۱أوجزالمسالک:۶۰۸/۱-۶۰۷.

**دڅلورم قسم بیان:** څلورم قسم دهغه مستحاضه دې چاته چه نه دخپل عادت پته ده او نه د رنګونو په مینځ کښې فرق کولې شی دداسې مستحاضه دوه قسمونه دی: ① یو مبتدأه یعنی په چا چه په رومبی ځل وینه راغلې وی اوبیا هغه دوه بنده شوې وی.
② دویمه ده متحیره یعنی په چا باندې چه په شروع کښې ممعتاد ایام کښې حیض راغلې وو اوبیا هم یو شان وینه روانه شوې وه خواوس دهغې نه دا معتاد ایم هیرشوی دی دې ته ضاله هم وائی.
درومبی قسم حکم دائمه ثلاثه په نیز دادې چه که هغه د وینو په مینځ کښې فرق اوکړې شی نو اعتبار تمییز بالالوان به وی خواحناف فرمائی دداسې قسم حکم دادې چه دهغې د شروع لس ورځې د هرې میاشت نه به دحیض شمیرلې شی اوبیابه باقی استحاضه شمیرلې کیږی.([1])
چنانچه مصنف الشرح الکبیرفرمایی که دمبتدأه وینه چرته په اکثرد حیض تجاوز اوکړی نوبیا هغه د دوو حالونه خالی نه ده: ①که چرې هغه مبتدأه ممیزه ده نوحکم به نې دا وی چه دهغې هغه زمانه په کومه کښې چه په هغې باندې توره وینه راشی د حیض زمانه شمیرلې شی اوهم دغه دامام مالك رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله مذهب دې.
② اوکه چرې هغه مبتدأه ممیزه نه وی اودوینو په مینځ کښې فرق هم نه پیژنی نودې سره متعلق څلورقسم روایات دی:(۱) داسې مستحاضه به هره میاشت کښې دحیض په غالب ایام کښې مونځ وغیره پریږدی اوهغه شپږ یا اووه ورځې جوړیږی. (۲) دهرې میاشت په اقل حیض کښی به مونځونه وغیره پریږدی ځکه چه اقل موده یقینی موده ده. دامام شافعی رحمه الله دوه قوله هم دغه شان نقل دی.
(۳) هغه به دحیض اکثره موده کښې مونځونه وغیره پریږدی اوهم دا دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې(۴) داسې ښځه به نورو نیزدې ښځو (مور اوخوئینډې وغیره) به د ایام عادت په اندازه مونځونه پریږدی. هم دا دحضرت عطاء امام ثوری او امام اوزاعی رحمهم الله وغیره مذهب دې.([2]).
شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه داحناف او مالکیه مذهب دادې چه داسې مستحاضه به د حیض د اکثری مودې پورې مونځونه اوروژې وغیره پریږدی.([3]) د باقی مستحاضه ضاله متعلق داحنافو د فقهاؤ په نیز تفصیل دادې چه د مستحاضه ضاله درې قسمونه دی اودهر قسم حکم مختلف دې.
ځکه داسې مستحاضه خو یا صرف خپل ایام حیض هیر کړې وی اوزمانه ورته یاده وی (لکه چه دومره خوورته یاد وی چه په هره میاشت کښې به یوځل حیض راتلو یا دهرې میاشت په رومبې یا دویمه یا دریمه عشره کښې حیض راتلل یاد وی مګر دا ورته یادنه وی چه څومره ورځې به حیض وو) یا به هغه مستحاضه زمانه هیره کړې وی اود حیض ورځې ورته یادې وی (لکه په هره میاشت کښې درې ورځې څلور ورځې یا پنځه ورځې یا دغه شپان شپږ اووه اته یا نهه ورځو پورې حیض راتلل ورته یاد دی مګر دا ورته یادنه دی چه ددې ایام او ورځو وینه به کله راتلله په رومبې عشره دویمه عشره یا دریمه عشره کښې) اویا به هغه مستحاضه داسې وی چه نه خو به هغې ته دحیض ورځې یاد وی (چه څومره ورځې به حیض وو) اونه ورته زمانه یاده وی (چه په کومه عشره کښې به حیض راتللو) نودا ټول درې قسمونه

---

[1]) أوجزالمسالک: ۶۰۸/۱.
[2]) المغنی: ۴۱۲/۱-۴۱۱
[3]) أوجزالمسالک: ۶۰۸/۱.

جوړيږي او په دې ذکرکړې شوې اقسام کښې ړومبې ته ضالة عدددويم قسم ته ضالة الزمان اودريم قسم ته ضالة العدودوالزمان وائي.

**دړومبي قسم ضالة العدد حكم:** ړومبې قسم يعنې هغه مستحاضه دچاد حيض وينه چه بنده شوې څومياشتې تيرې شوې وې دې نه پس چه کله پرې وينه جاري شوه نوبيا هغه هم يوشان جاري وه اودې ته دا معلومه نه ده چه په هره مياشت کښې به څومره ورځې حيض راتلو. البته دومره ورته ياد دى چه په هره مياشت کښې به يوځل وينه راتله. نودداسې مستحاضه دپاره حکم دادې چه داول استمرار نه درې ورځو پورې به مونځ وغيره نه کوي ځکه چه په دغه ورځو کښې حيض يقيني دې. بيا به د اووه ورځو پورې دهرمونځ دپاره غسل کوي ځکه چه په دغه ايام کښې ددې مستحاضه حال حيض، طهر او خروج من الحيض کيدوکښې متردد دې. اوبيابه شل ورځې دهرمونځ دپاره اودس کوي ځکه چه په دغه ورځوکښې طهر يقيني دې.

**دويم قسم ضالة الزمان حكم:** ضالة الزمان يعنې هغه مستحاضه چاته چه دخپل حيض ايام خوياد دي ليکن دهغې زمانه ياده نه ده (مثلاً دا ورته ياد دى چه حيض به درې ورځې وو خودا ورته يادنه دى چه دا درې ورځې به دآخرى عشرې کومې درې ورځې وې) نودداسې مستحاضه په بنيادى توګه باندې دوه صورتونه دي: اول صورت دادې چه هغې کومه زمانه هيره کړې ده هغه به په پنځو ورځو کښې دننه وى اودويم صورت دادې چه هغه زمانه د پنځو ورځونه زياته (لسو ورځو پورې) وى.

دړومبي صورت حکم دادې چه دمثال په توګه دهغې معتاد ايام حيض درې ورځې دى اوهغه په دې باندې په آخرى عشره دشروع پنځو ورځوکښې هيرې کړې دى نو په داسې صورت کښې به ددې آخرى عشرې دريمه ورځ (يعنې ۲۳ تاريخ) يقيناً دحيض وى لهذا په دريمه ورځ به مونځ وغيره نه کوى او اولنو هرو دوو ورځوکښې به دهرمونځ دپاره نوې اودس کوى او څلور مه پنځمه ورځ به دهرمونځ دپاره غسل کوى اوکه ايام حيض څلور ورځې وې نو دويمه دريمه اوڅلورمه ورځ به يقيني دحيض وى نو په ړومبې ورځ دهرمونځ دپاره اودس اوپنځمه ورځ دهرمونځ دپاره غسل کوى.

ددويم صورت حکم دادې دمثال په توګه ددې معتاد ايام دحيض درې ورځې دى اوهغې دا په آخرى عشره کښې هيرې کړې دى چه ددې آخرې عشرې په کومو دريو ورځوکښې به حيض راتلو وددداسې مستحاضه دپاره حکم دادې چه دهرې مياشت دآخرى عشرې د شروع دريو ورځوکښې به دهرمونځ دپاره اودس کوى ځکه چه دې دريو ورځوکښې دحيض دحالت اودطهر دحالت نه په يوکښې دکيدونه تردد دى اوددې دريو ورځو نه پس دهغې دآخرى عشرې دآخرى ورځې پورې به د هرمونځ دپاره غسل کوى ځکه چه دې ته دطهر دحالت اود حيض دحالت نه وتلو کښې تردد دې. هم دغه حکم به په دې صورت کښې هم وى چه کله ددې معتاد ورځې څلور يا پنځه ورځې وى اوددې نه مثلاً په آخرى عشره کښې هيره شوې وى يعنې دآخرى عشرې دشروع څلور ورځې يا پنځه ورځې به د هرمونځ دپاره اودس کوى اوبيابه د آخرى ورځې پورې دهر مونځ دپاره غسل کوى.

ليکن معتاد ايام حيض شپږ دى کومې چه هغې په آخرى عشره کښې هيرې کړې دى نو په داسې صورت کښې ددې آخرى عشرې پنځمه اوشپږمه ورځ دايام حيض نه کيدل يقيني دى لهذا په دې دواړو کښې به مونځ وغيره نه کوى اوددې دواړو نه وړاندې څلور ورځې دهر مونځ دپاره اودس اوروستو څلورو ورځو کښې د هرمونځ دپاره غسل کوى. دغه شان که چرې معتاده ايام حيض اووه دى اودې په آخرى عشره کښې هيرې کړې دى نو څلورمه پنځمه شپږمه او اومه ورځ دايام حيض نه کيدل يقيني دى لهذا په دې څلورو ورځوکښې به مونځ وغيره نه کوى اود شروع درې ورځې هر مونځ دپاره اودس او رستو درې ورځې دهر مونځ دپاره غسل کوى. دغه شان که چرې معتاد ايام حيض اته

دی یا نهه ورځې دی اودا ورځې په آخری عشره کښې هیرې کړې دی نو قاعده هم دغه ده چه په یقینی ورځوکښې به مونځ وغیره نه کوی اوددې ایام نه وړاندې دهر مونځ دپاره اودس اوددې ایام نه پس دهر مونځ دپاره غسل کوی. دغه شان که یوه ښځه پیژنی چه دهغې معتاد ایام حیض درې دی خوهغې دا ورځې په پوره میاشت کښې هیرې کړې دی نوددې دپاره حکم دادې چه دمیاشتې د شروع درې ورځې به د هرمونځ دپاره اودس کوی ځکه چه په دغه ایام کښې دحیض حالت اوطهر حالت کښې د یونه کیدلوکښې ترددې او بیاباقی ۲۷ ورځې به دهر مونځ د پاره غسل کوی ځکه چه اوس هروخت د انقطاع حیض احتمال دې.(۱)

**دریم قسم ضالة العددد والزمان حکم:** داهغه مستحاضه ده چاته چه نه خپل معتاد ایام حیض یاد وی اونه دې ته د خپل حیض زمانه یاده وی. دداسې مستحاضه حکم دادې چه هغه دې ښه سوچ اوفکراوکړی اوددغه سوچ اوفکر په نتیجه کښې چه کومه خبره مخې ته شی په هغې باندې دې عمل اوکړی. خو که هغه په دې باره کښې څه رائې نه لری نوصحیح قول دادې چه هغه به دهر مونځ دپاره غسل کوی.(۲)

د احناف فقهاؤ دمستحاضه ضاله سره متعلق یو اصول وضع کړې دې اوهغه اصول دمستحاضه ضاله دغه پورته ذکر شوو ټولو قسمونه ته شامل دی. دفقهاء احناف وضع کړې شوې اصول دادی چه مستحاضه ضاله به کوشش کوی چه د ښه فکر اوسوچ نه کارواخلی اوچه کله دهغې په حیض او طهرکښې تردد وی یا په هغې دحیض ورځې شروع شوی دی که نه؟ نو په داسې صورت کښې به هغه دهریومونځ دپاره اودس کوی اوکله چه هغې ته د حیض اوطهر په مینځ کښې تردد وی چه هغه د طهر په زمانه کښې داخل شوې ده که نه؟ نو په داسې صورت کښې به دهر مونځ دپاره غسل کوی.(۳)

فقهاء کراموددې قاعدې مثال دابیان کړې دې چه یوه ښځه ده هغې ته یاد دی چه په هغې باندې په هره میاشت کښې یوځل حیض راځی او په نصف آخر کښې وینه بندیږی. ددې نه علاوه دې ښځې ته هیڅ یادنه دی نودا ښځه به دهرې میاشت په نصف اول کښې حیض اوطهر او په حیض کښې داخلیدلو مینځ کښې متردده ده او په نصف ثانی کښې دحیض اوطهر او په طهرکښې د داخلیدو په مینځ کښې متردده ده. لهذا په نصف اول کښې به دهرمونځ دپاره اودس کوی او په نصف آخر کښې به دهر مونځ دپاره غسل کوی.(۴) خلاصه داراوځی چه داحنافوپه نیزداستحاضه درې قسمونه دی. ① مبتدأه ② متحیره ③ معتاده.(۵)

**دتمییز بالالوان داعتبارنه کولووجوهات:** احناف دتمییز بالالوان اعتبارددې لاندینو وجوهاتو په وجه نه کوی

**دتمییز بالالوان ثبوت په یونص کښې نشته:** ① په یوصحیح حدیث کښې هم دتمییزبالالوان دنص په توګه ثبوت نه ملاویږی اوترکومې چه تعلق دې داقبال او ادبارد روایاتو، نولکه څنګه چه دا روایات

---

(۱) البحرالرائق کتاب الطهارة باب الحیض: ۲/۳۶۴-۳۶۳ردالمحتار علی الدرالمختار کتاب الطهارة باب الحیض: ۴۷۹/۱.

(۲) البحرالرائق، کتاب الطهارة باب الحیض: ۳۶۴/۲.

(۳) الدرالمختار مع ردالمحتار کتاب الطهارة باب الحیض: ۴۸۰/۱، أوجزالمسالک: ۶۰۹/۱.

(۴) ردالمحتار کتاب الطهارة باب الحیض: ۴۸۰/۱.

(۵) أوجزالمسالک: ۶۰۹/۱.

په تمييزبالالوان باندې دمحمول كولوگنجائش لرى. هم دغه شان دا روايات دعادت په معتبركيدو باندې هم محمول كولې كيدې شى. بلكه حقيقت دا دې چه داقبال او ادبار والا روايات دعادت په معتبركيدو باندې محمول كول معين دى. چنانچه دصحيح بخارى سنن ابى داؤد او سنن نسائى روايت دې چه: ((فإذا أقبلت الحيضة فاتركى الصلاة، فإذا ذهب قدرها فاغسلى)) (١)

ددې روايت الفاظ ((فإذا ذهب قدرها)) دعادت په معتبركيدوكښې بالكل صريح دى اوددې نه وړاندې داقبال لفظ تير شوې دې نوددې نه مراد هم د حيض ورځې په خپل عادت باندې راتلل وى. پس ((أقبلت وأدبرت)) نه مراد هم دغه دى چه د حيض دورينې په خپل وخت باندې او په خپل عادت باندې راتلل او په عادت باندې واپس تلل، دې دپاره چه په ټولو رواياتوكښې جمع اوتطبيق اوشى ګنى په رواياتوكښې به تكراړ وى اوددې په مينځ كښې به تناقض پيداشى. (٢)

اوتركومې چه تعلق دې دحديث حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها چه هغې فرمائيلى ((فإنه دم أسود يعرف)) نو دا حديث ثابت نه دې كما أقربه الباجى. (٣) په نقايه كښې دى چه داحديث په حضرت عائشه رضي الله عنها باندې موقوف دې. (٤) علامه شوكانى رحمه الله فرمائى: ((قد استنكر هذا الحديث أبوحاتم)) (٥)

الجوهرالنقى او العلل كښې دى: ((سألت أبى (أبى حاتم محمد بن إدريس) عنه؟ فقال: منكر)) (٦) ابن قطان رحمه الله فرمائى: ((فى رأيى إنما منقطع)) (٧) علامه شوكانى رحمه الله نور فرمائى ((قد ضعف الحديث أبوداؤد)) (٨) بل امام طحاوى رحمه الله هم دې ضعيف ګرخولې دې. (٩)

**دعادت دلالت دلون په مقابله كښې قوى دې:** ② دعادت دلالت په حيض باندې په نسبت د لون زيات قوى دې ځكه چه دعادت دلالت باطل نه وى خوكه چرې وينه د حيض په اكثرى موده باندې ورزياته شى نود لون يعنى رنګ دلالت باطل كيږى. لهذا د كوم دلالت چه نه باطل كيږى هغه زيات قوى دې. (١٠)

**حضورپاک سائله دعادت طرف ته راګرځولې وه:** ③ حضورپاک رضي الله عنها حضرت ام حبيبه رضي الله عنها اوهغه ښځې دكومې دپاره چه حضرت ام سلمه رضي الله عنها درسول الله صلى الله عليه وسلم نه دمسئلې تپوس كړې وو دعادت طرف ته راګرځولې وې. اودهغې دمميزه كيدو يا نه كيدو په مينځ كښې خو ئى نه تفريق ذكر كړو اونه ئى په دې باره كښې دهغه ښځې نه تفصيل طلب كړو. اوس صرف فاطمه بنت ابى جيش رضي الله عنها صرف يوداسې

---

(١) رواه البخارى فى كتاب الحيض باب الاستحاضة، رقم الحديث: ٣٠٦ وكذا أبوداؤد فى الطهارة باب من روى أن الحيضة إذا أدبرت لاتدع الصلاة رقم الحديث: ٢٨٣ والنسائى فى الطهارة باب الفرق بين دم الحيض والاستحاضة رقم الحديث: ٢١٨.

(٢) أوجز المسالک: ٦١٠/١.

(٣) المنتقى شرح الموطا لأبى الوليد الباجى: ٤٤٩/١.

(٤) أوجز المسالک: ٦١٠/١.

(٥) نيل الأوطار: ٣٤١/١.

(٦) السنن الكبرى فى ذيله الجوهرالنقى: ٣٢٦/١ علل الحديث لابن أبى حاتم: ٥٧٦/١ رقم المسألة: ١١٧.

(٧) السنن الكبرى مع الجوهرالنقى: ٣٢٦/١.

(٨) نيل الأوطار: ٣٤١/١.

(٩) شرح مشكل الآثار: ١٥٥/٧-١٥٤.

(١٠) أوجز المسالک: ٦١٠/١ وكذا فى المغنى لابن قدامة: ٤٠١/١.

ښځه ده چه هغه دعادت طرف ته راګرځول هم نقل دی اودتمییز بالون طرف ته راګرځول هم نقل دی. لکه چه په دې دواړو روایتونوکښې تعارض پیداشو خونور روایات او احادیث د تعارض نه خالی دی. لهذا هم په هغې باندې به عمل کول شی. اوبیا دحضرت عدی بن ثابت رضی الله عنه حدیث خو د هرې یوې مستحاضه په حق کښې دې اوهغه هم دعادت په معتبرکیدو باندې دلالت کوی. (۱)

**بعض صورتونوکښې دعادت اعتبار اجماعی دې:** ④ د عادت اعتبار بعض صورتونوکښې اجماعی دې خو تمییز بالون په یوصورت کښې هم اجماعی نه دې. (۲)چنانچه ابن الترکمانی رحمه الله فرمائی چه: «قد اتفق الجمهور علی أن من لها أیام معروفة اعتبر أیامها، لا لون الدم» (۳)

**په نفاس کښې د عادت اعتباردې:** ⑤ دنفاس په وینه کښې د رنګ اعتبارنه شی کولې اوچونکه نفاس اوحیض دواړه په احکام کښې یوشان دی په دې وجه دقیاس تقاضا داده چه په حیض کښې هم د رنګ اعتبارنه دی کیدل پکار. بلکه دعادت اعتبارکیدل پکاردی. لکه څنګه چه په نفاس کښې هم دعادت اعتبارکولې شی. (۴)

**تمییزباللون معتبرګرځول د روایاتوخلاف دی:** ⑥ تمییزباللون ددیرو روایاتو خلاف دې لکه دمثال په توګه دحضرت عائشه رضی الله عنها په روایت کښې دی: «لاتعجلن حتی ترین القصة البیضاء» هم دغه شان د عمره رضی الله عنها په روایت کښې دی: «لا، حتی ترین البیاض خالصاً». (۵) نودا روایت بالکل صراحت سره په دې باندې دال دی چه د لون اعتبارنشته دې. (۶)

حاصل دادې چه حق دکوم نه چه عدول نه شی کیدلې هم دغه دې چه دلون اعتبار په یوحدیث هم په صحیح معنوکښې ثابت نه دې. (۷)ددې حدیث سره متعلق باقی تفصیلی کلام د باب الاستحاضة لاندې تیرشوې دې.

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حدیث اوترجمة الباب کښې مناسبت دادې چه څنګه په ترجمة الباب کښې داخودلې شوی دی چه دحیض اوحمل باره کښې به د ښځې د بیان اعتبارکولې شی هم دغه شان په حدیث کښې هم د أیام حیض شمیرلو معامله دښځو امانت اود هغې د عادت طرف ته حواله کړې شوې ده. ځکه چه دعمرونو او علاقو د اختلاف په وجه دحیض په مقدارکښې هم اختلاف واقع کیږی. چنانچه د بعض دحیض ورځې زیاتې وی اود بعض دحیض ورځې کمې وی. (۸)

## ۲۵ - باب: اَلصُّفْرَةِ وَالْكُدْرَةِ فِیْ غَیْرِ أَیَّامِ الْحَیْضِ،

---

(۱) المغنی لابن قدامة: ۱/۴۰۱أوجز المسالک: ۱/۶۱۰.
(۲) أوجز المسالک: ۱/۶۱۱.
(۳) السنن الکبری للبیهقی مع الجوهر النقی: ۱/۳۲۴.
(۴) أوجز المسالک: ۱/۶۱۱
(۵) أخرجه البیهقی فی کتاب الحیض باب الصفرة والکدرة فی أیام الحیض حیض: ۱/۴۹۷رقم الحدیث: ۱۵۹۲.
(۶) أوجز المسالک: ۱/۶۱۱.
(۷) أوجز المسالک: ۱/۶۱۱.
(۸) عمدة القاری: ۳/۴۵۷.

**ماقبل سره ربط:** دتیر شوی باب لاندې امام بخاری رحمه الله د حیض متعلق یوڅو مسائل ذکرکړی وو او اوس ددې باب لاندې په غیرایام حیض کښې ښکاره کیدونکې زیړ او خاورین رطوبت حکم وی اودتپولو تعلق هم دم (وینې) سره دی. (1)

## د ترجمة الباب مقصد

**حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دامام بخاری رحمه الله غرض دحدیث عائشه رضی الله عنها ((حتی ترین القصة البیضاء)) اوحدیث باب، حدیث ام عطیه رضی الله عنها ((کنا لانعد الکدرة والصفرة شیئا)) په مینځ کښې تطبیق پیداکول اوجمع کول دی. د حدیث عائشه رضی الله عنها حاصل دادې چه ترکومې پورې کرسف (مالوچ) بالکل سپین نه وی راوتلې د هغه وخته پورې هم حیض دې لکه چه دهغوی په نیز هر رنګین رطوبت په حیض کښې داخل دې. که په زیړرنګ کښې وی اوکه په خاورین رنګ کښې وی اودحدیث ام عطیه رضی الله عنها حاصل دادې چه مونږ ښځو به خاورین رنګ او زیړ رنګ د وینې هیڅ نه ګڼړلو اودا به مو په حیض کښې نه شمیرلو. اوس دلته دوه متضاد خبرې مخې ته شوې: امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې په دې دواړوکښې موجود تضاد ختم کړې دې په داسې معنی چه په ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله ((غیرأیام الحیض)) قید اولګولو چه حدیث عائشه رضی الله عنها په ایام حیض باندې محمول دې اوحدیث ام عطیه رضی الله عنها په غیرایام حیض باندې محمول دې. اوس دحدیث عائشه رضی الله عنها مفهوم دا شو چه په ایام حیض کښې هر رنګین رطوبت او وینه په حیض کښې شمیر دی. اودام عطیه رضی الله عنها د روایت مفهوم داشو چه د ایام حیض نه علاوه که دزیړ رنګ یا خاورین رنګ رطوبت راغلو نوهغه به حیض نه وی داسې په دواړو روایتونوکښې تعارض ختمیږی. (2)

**د شیخ الحدیث زکریا رحمه الله رائې:** شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه زما په نیزدامام بخاری رحمه الله مقصد ددې ترجمة الباب نه دحضرت ام عطیه رضی الله عنها په سنن ابی داؤد کښې موجود روایت طرف ته اشاره کول دی دکوم الفاظ چه دادی: ((کنا لانعد الکدرة والصفرة بعد الطهر شیئا)) امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب الفاظ ((غیرأیام الحیض)) نه ددې روایت الفاظ ((بعد الطهر)) طرف ته اشاره کړې ده. (3)

## الحدیث الأول

[۳۲۰]- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: ((كُنَّا لاَ نَعُدُّ [ص: ۷۳] الكُدْرَةَ وَالصُّفْرَةَ شَيْئًا)) (4)

---

(1) هذا ما يستفاد من عمدة القاري: ۴۵۷/۳.

(2) فتح الباري: ۴۲۶/۱ لامع الدراري: ۲۷۹/۲-۲۷۸.

(3) الكنزالمتواري: ۲۹۶/۳.

(4) قوله: ام عطية: الحديث، ورواه الإمام أبوداؤد في الطهارة باب في المرأة ترى الكدرة والصفرة بعد الطهر رقم الحديث: ۳۰۷ والنسائي في الحيض باب الصفرة والكدرة رقم الحديث: ۳۶۸ وجامع الأصول في أحاديث الرسول الكتاب الأول في الطهارة الباب السابع في الحيض، الفصل الثاني في المستحاضة والنفساء الفرع الثالث في الكدرة والصفرة: ۳۷۸/۷ رقم الحديث: ۵۴۲۹.

**ترجمه:** حضرت ام عطيه رضي الله عنها فرمائي چه مونږ به خاورين اود زيړ رنګ وينه هيڅ څيز نه شميرلو.

## تراجم رجال

**قتيبة بن سعيد:** دا شيخ الاسلام راوية الاسلام ابورجاء قتيبه بن سعيد بن جميل بن طريف الثقفي رحمة الله عليه دي. ددوی حالات كتاب الايمان باب افشاء السلام من الاسلام لاندې تيرشوی دی.([1])

**إسماعيل:** دا اسماعيل بن ابراهيم بن مقسم (بكسر الميم وسكون القاف وفتح السين، بعدها ميم) اسدي بصري رحمة الله عليه دي. ددوی حالات كتاب الايمان باب حب رسول الله صلى الله عليه وسلم من الايمان لاندې تيرشوی دی.([2])

**أيوب:** دا ايوب بن ابي تميمه كيسان سختياني بصري رحمة الله عليه دي. دد وی كنيت ابوبكر دي. ددوی حالات كتاب الايمان باب حلاوة الايمان لاندې تيرشوی دی.([3])

**محمد:** دامشهور تابعي اوعالم شيخ الاسلام ابوبكر محمدبن سيرين انصاري بصري رحمة الله عليه دي. ددوی تفصيلي حالات كتاب الايمان باب اتباع الجنائز من الايمان لاندې تيرشوی دی.([4])

**أم عطية:** دا صحابيه نسيبه بنت كعب انصاريه رضي الله عنها ده دا په خپل كنيت ام عطيه سره مشهوره ده. ددې حالات كتاب الوضوء باب التيمن في الوضوء والغسل لاندې تيرشوی دی.

**شرح حديث: دجمهورو قول:** علامه ابن بطال رحمة الله عليه فرمائي جمهورو ددې حديث هم دغه معنی كړې ده كومه چه امام بخاري رحمة الله عليه په ترجمة الباب كښې ذكركړې ده. چنانچه داكثرو حضراتو په نيز د زيړ رنګ رطوبت اود خاورين رنګ رطوبت كه چرې دحيض په ورځوكښې راشي نودا به هم په حيض كښې شميرلې كيږي اوكه چرته داني د ايام حيض نه پس اوليدلو يا په نورو غيرايام حيض كښې دا رنګونه دوينې يا رطوبتونه اووينې نوددې به څه اعتبار نه كيږي اونه به دا حيض ګڼړلې شي. هم دغه دحضرت علي رضي الله عنه نه هم نقل دی اوهم دغه دحضرات تابعين نه سعيدبن المسيب، عطاء، حسن ابن سيرين، ربيعه، امام ثوري، امام اوزاعي، ليث، امام ابوحنيفه، امام محمد، امام شافعي، امام احمد، او امام اسحاق رحمهم الله هم مذهب دې. اوهم ددې طرف نه امام بخاري رحمة الله عليه هم په دې باب كښې اشاره كړې ده.

**دامام ابويوسف رحمة الله عليه قول:** دويم قول ددې رنګين رطوبتونوسره متعلق دامام ابويوسف رحمة الله عليه دې هغوی فرمائي كه چرې زيړ يا خاورين رنګ د حيض په ورځوكښې دحيض نه وړاندې اوليدلې شو نود دغه رنګ وينه به حيض نه شي شميرلې او كه چرې په آخري ورځوكښې د حيض د وينې نه پس دارنګونه اووينې نودا به هم حيض شميرلې كيږي اوهم دا دامام ابوثور رحمة الله عليه مذهب هم دی.

**دامام مالك رحمة الله عليه قول:** دريم قول دامام مالك رحمة الله عليه نه په المدونة كښې نقل دی. امام مالك رحمة الله عليه فرمائي خاورين رنګ او زيړ رنګ په ايام حيض او غيرايام حيض دواړوكښې هم حيض شميرلې شي. خو

---

[1]) كشف الباري: ۱۸۹/۲.

[2]) كشف الباري: ۱۲/۲.

[3]) كشف الباري: ۲۶/۲.

[4]) كشف الباري: ۵۲٤/۲.

ښكاره خبره ده چه دامام مالك رحمه الله دا قول سراسر د حديث د ظاهر نه خلاف دې. دغه شان د مذكوره حديث مطابق دامام مالك رحمه الله په فتاوى كښې هم داسې څه خبره موجودنشته دې چه دزيړ او خاورين رنګ اعتبار به نه شي كولې. البته دومره خبره ملاويږي كه چرې دم حيض اودم استحاضه يوځائى شي اوښځه په دې دواړوكښې تميز اوفرق نه شي كولې نوبيا حكم دادې چه كله هغه دتور رنګ وينه اووينى نوهغه حيض دې اوكله چه هغه زيړ يا خاورين يا سور رنګ اووينى نوهغه به طهر وى. لهذا دغسل كولو نه پس به خپل مونځونه هم كوى او روژې به هم ساتى.

په آخره كښې علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى زما خيال دادې چه امام مالك رحمه الله ته حديث ام عطيه رضي الله عنها (مذكور في الباب) نه دې رسيدلې. (په دې وجه په دې دواړو رنګونوكښې دغير معتبر كيدلو قول دامام مالك رحمه الله نه نقل نه دې). (١)

**دابن رشدمالكي رحمه الله كلام**: ابن رشد مالكى رحمه الله فرمائى چه د فقهاؤ په دې مسئله كښې اختلاف دې دزيړ رنګ رطوبت اود خاورين رنګ رطوبت حيض دې كه حيض نه دې؟ نوديوجماعت مذهب دادې چه دا دواړه رنګونه صرف په ايام حيض كښې حيض شميرکيږى هم دا د امام شافعي رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې. اوهم داسې يو روايت دامام مالك رحمه الله نه هم نقل دې. او مدونه كښې امام مالك رحمه الله نه نقل دى چه دا دواړه رنګونه به على الاطلاق حيض شميرلې شى. كه په ايام حيض كښې راشى اوكه په غيرايام حيض كښې. كه غواړې نودې سره كه وينه اوګورى اوكه اونه ګورى. امام داؤد رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائى كه دا دواړه رنګونه دحيض د وينې نه پس راشى نوحيض به شميرلې كيږى ګنى نه به شميرلې كيږى.

دفقهاؤ په مينځ كښې ددې اختلاف وجه داده چه دحضرت ام عطيه رضي الله عنها حديث په ظاهره دحديث عائشه رضي الله عنها مخالف دې. نو چاچه حديث عائشه رضي الله عنها ته ترجيح وركړه نودهغوى په نيز به دا دواړه رنګونه هم على الاطلاق حيض شميرلې كيږى كه په ايام حيض كښې ښكاره شى اوكه په غيرايام حيض كښې اوكه ددې نه وړاندې وينه راغلې وى اوكه نه وى راغلې. اوكومو حضراتو چه په دواړو احاديثو كښې د جمع اراده اوكړه نوهغوى حديث عائشه رضي الله عنها په ايام حيض او حديث ام عطيه رضي الله عنها په غيرايام حيض باندې محمول كړې.

بل يوجماعت دحديث ام عطيه رضي الله عنها ظاهرى معنى اختياركړې ده اودهغوى په نيز زيړ اوخاورين رنګونه دواړه غيرمعتبردى. نه په ايام حيض كښې ددې څه اعتبارشته اونه په غيرايام حيض كښې، كه دحيض د وينې په شروع كښې وى اوكه د حيض دوينې په آخره كښې وى. ځكه چه دحضورپاك ارشاد دې: ((دم الحيض دم أسود يعرف)) اوبيا زيړاوخاورين رطوبت په حقيقت كښې وينه نه ده بلكه دا دواړه هم في الجمله د هغه رطوبتونونه دى چه د ښځې درحم نه خارج كيږى اوهم داد محمدبن حزم ظاهرى رحمه الله مذهب دې. (٢)

**د شيخ الحديث زكريا رحمه الله تحقيق**: شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى چه ددې اختلاف وجه داهم ده چه دحيض وينه دمختلفو رنګونو كيدې شى هغه چرته يو رنګ سره خاص نه ده. (٣) چنانچه علامه

---

(١) شرح ابن بطال: ١/٤٥٧-٤٥٦.

(٢) بداية المجتهد: ١/٥٥١٢-٥٥٠.

(٣) الكنز المتوارى: ٣/٢٩٧.

دردير رحمه الله فرمائی ((الحيض دم كصفرة أوكدرة خرج بنفسه)) ددې قول په شرح کښې علامه دسوقی رحمه الله فرمائی چه د مصنف رحمه الله قول "كصفرة" دحيض د وينې دپاره يوتمثيل پيش کول دی په دې اعتبارسره د زيړ رنګ وينه همد حيض د وينې يوفرددې...... اودا کوم چه بيان کړې شوې دې چه زيړاوخاورين رنګ هم دحيض په وينه کښې شامل دی نوهم دا مشهور دی او په مدونه کښې دامام مالك رحمه الله مذهب دا بيا کړې شوې دې که زيړ رنګ يا خاورين رنګ په ايام حيض کښې اووينی اوکه په غير ايام حيض کښې اووينې په هرحال کښې به داحيض شميرلې کيږی او يو قول دا بيان کړې شوې دې چه زيړ رنګ اوخاورين رنګ په ايام حيض کښې راغلو نوحيض دې او په غيرايام حيض کښې حيض نه دې اودا قول د ابن ماجشون رحمه الله دې اومازری رحمه الله او علامه باجی رحمه الله هم دا قول د امام مالك رحمه الله مذهب ګرځولې دی.([1]) لهذا ابن ماجشون مازری اوعلامه باجی رحمهم الله دقول مطابق امام مالك رحمه الله هم دې مسئله کښې جمهورو سره دې.

**فائده:** په دې تفصيل سره دعلامه ابن بطال رحمه الله دا تردد هم ختميږی چه امام مالك رحمه الله ته حديث ام عطيه رضي الله عنها نه دې رسيدلې. اوعين ممکن دی چه په شروع کښې نه وی رسيدلې اوامام مالك رحمه الله هم هغه رانې قائم کړې وی کومه چه ابن بطال رحمه الله او ابن رشدمالکی رحمه الله قائم کړې او هم په دې وجه په موطا کښې هم داحديث نشته دې مګر روستو داحديث هغوی ته رسيدلې وی اوبيا هغوی رحمه الله هم د جمهورو په موافقت کښې قول اختيارکړې وی.([2])

**اشکال:** دلته سوال دا پيداکيږی چه حديث ام عطيه رضي الله عنها خو مطلق دې نه خويه دې کښې دايام حيض تذکره شته اونه دغيرايام حيض، نو بيا دکوم دليل په بنيادباندې د ((غيرأيام الحيض)) قيدزياتولې شی؟

**جواب:** جواب دادې چه پخپله ددې حديث تقاضاده چه دا ((غيرأيام الحيض)) سره مقيد کړې شی ځکه چه ددې روايت دامطلب اخستل چه په دې کښې ذکرکړې شوې حکم عام دې ايام حيض اوغيرايام حيض دواړو ته شامل دی. دحديث عائشه رضي الله عنها د وجې نه جائزنه دې ځکه چه دا امر ډير واضح دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها له راتلونکې ښځې دحيض په اختتام باندې زيړ رطوبت يا خاورين رطوبت کتلو اوبيابه حضرت عائشه رضي الله عنها له ددې متعلق حکم معلومولو له راتلې نوحضرت عائشه رضي الله عنها هغوی ته داخبر ورکړو چه دا دواړه رطوبتونه دحيض د بقاياجات نه دی اوددې هم هغه حکم دې کوم چه دحيض دې. دويمه خبره داده چه داقيد د امام ابوداؤد رحمه الله په سنن کښې موجود د حضرت ام عطيه رضي الله عنها روايت هم واضحه کوی ځکه چه په دې روايت کښې پخپله دا شرط موجود دې. د روايت الفاظ دادی:

((كنا لانعد الكدرة والصفرة بعد الطهر شيئا)) د طهر نه پس به مونږ دخاورين او زيړ رطوبت اعتبارنه کولو.([3]) لکه چه د طهر نه وړاندې دايام حيض دوران کښې به دا رطوبتونه هم حيض شميرلې کيدو. امام بخاری رحمه الله چه کوم قيد زيات کړو يا خوددې بنياد دحضرت عائشه رضي الله عنها روايت دې يا هم پخپله دحضرت ام عطيه رضي الله عنها په روايت کښې داقيد موجود دې لکه چه اوس سنن ابی داؤد په روايت کښې

---

[1]) حاشية الدسوقی فی علی الشرح الكبير : ١٦٧/١الكنزالمتواری:٢٩٧/٣.

[2]) أنوارالباری: ٤٧٠/١٠.

[3]) سنن أبی داؤد كتاب الطهارة باب فی المرأة ترى الكدرة والصفرة... الخ رقم الحديث: ٣٠٧.

تیرشوی دی.([1]) علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دامام داؤد ددې روایت امام حاکم تصحیح کړې ده او د اسماعیلی رحمه الله الفاظ دادی: «كنا لانعد الصفرة والكدرة حيضاً»([2])

**یواعراض اودهغې جواب:** علامه کرمانی رحمه الله دافرمائی چه څوك دا اعتراض اوکړی چه دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دې: «كنا نعد الكدرة والصفرة حيضاً» خودام عطيه رضي الله عنها نه ددې خلاف نقل دی، دا خوتعارض شو؟ نوجواب دادې چه دحضرت عائشه رضي الله عنها روايت په ايام حيض محمول دې اودحضرت ام عطيه رضي الله عنها روايت غيرايام حيض محمول دې.([3])

بل دحضرت عائشه رضي الله عنها په حواله سره نقل کړې شوې روايت: «كنا نعد الكدرة والصفرة حيضاً» تخريج ابن حزم رحمه الله کړې دې او په کوم سندسره چه ئې داحديث روايت کړې دې هغه ابوبكرالنهشلي د وجې نه بې بنياد اوفضول دې خکه چه ابوبكر النهشلي كذاب دې.([4])

دغه شان امام بيهقي رحمه الله دوه روايتونه دحديث الباب په موافقت كښې پيش کړی په کوم کښې چه د يو روايت سند ضعيف ګرځولې دې اود دويم متعلق ئې دا فرمائيلي دی چه ددې سند امثل دې يعني د رومبي روايت نه بهتر اوافضل دې. دواړه روايتونه لاندې ذكركولې شي.

① عن عائشة أنها قالت: ماكنا نعد الكدرة والصفرة شيئاً ونحن مع رسول الله صلى الله عليه وسلم. قال البيهقي: فيه بحر السقاء وهو ضعيف. وروي معناه عن عائشة رضي الله عنها بإسناد أمل من ذلك، وهو:

② عن عائشة رضي الله عنها أنها قالت: إذا رأت المرأة الدم، فلتمسك عن الصلاة حتى تراه أبيض كالقصة، فإذا رأت ذلك فلتغتسل ولتصل، فإذا رأت بعد ذلك بعضهم صفرة أوكدرة، فلتتوضأ ولتصل، فإذا رأت دماً أحمر، فلتغتسل ولتصل.([5])

دا روايتونه په دې امر كښې بالكل صريح دی چه زیړ اوخاورين رنګ په غيرايام حيض كښې غيرمعتبردې او په ايام حيض كښې به دا په حيض كښې شميرلې كيږي.([6])

**دعلامه انورشاه كشميري رحمه الله تحقيق:** علامه انورشاه كشميري رحمه الله فرمائی چه امام بخاري رحمه الله د رنګونو دفرق مسئله يوطرف ته هدر اوفضول ګرځولې ده او بل طرف ته ئې دغيرايام حيض قيد اولګولو دکوم مفهوم چه دا راوځی چه په ايام حيض كښې به د الوان او رنګونو اعتباركيږي.([7])

ددې نه پس علامه انورشاه كشميري رحمه الله د ام عطيه رضي الله عنها د روايت تخريج کړې اوفرمائی چه احناف حضرات ددې معنى داسې بيانوی. زمونږ په نيز د رنګونو په ذريعه فرق کولوڅه مسئله نه وه بلكه مونږ به ټول رنګونه هم حيض شميرل. اوحضرات شوافع ددې حديث معنى داسې بيانوی مونږ به درنګونود فرق اعتباركولو نود سور رنګ او تور رنګ وينه به مو حيض شميرل او خاورين او زيړ رنګ به مو غيرمعتبرګڼرلو خكه چه دا د استحاضه رنګونه دی. دريمه شرح پخپله هم امام بخاري رحمه الله کړې ده د کوم حاصل چه دادې چه مونږ به په غيرايام حيض كښې رنګونه فضول ګڼړل ددې

---

[1] شرح ابن بطال: ۴۵۸/۱-۴۵۷شرح الكرماني: ۲۰۱/۳عمدة القاري:۴۵۹/۳.

[2] عمدة القاري: ۴۵۹/۳.

[3] شرح الكرماني:۲۰۱/۳.

[4] عمدة القاري: ۴۵۹/۳.

[5] السنن الكبرى: ۳۳۷/۱رقم الحديث: ۱۶۶، ۱۶۶۱.

[6] عمدة القاري: ۴۵۹/۳.

[7] فيض الباري: ۵۰۸/۱-۵۰۷الكنزالمتواري:۳/۲۹۶.

مفهوم دادې چه په ایام حیض کښې به مو اعتبارکولو. لکه چه امام بخاری رحمه الله د رنګونو په کتلو کښې ایام حیض اوغیرایام حیض په اعتبار سره فرق کولو یعنی په دې وجه ئې د رنګونو د فرق اعتبار اوکړو اوهم په دې وجه ئې فضول اوګرځول.[1]

حاصل د کلام دا شو چه دحدیث الباب درې معنې جوړیدې شي: ① مونږ به د حیض په موده کښې د رنګونو اعتبار نه کولو بلکه ټول رنګونه به هم حیض شمیرلې کیدل. دا معنی داحنافو موافق ده.

② مونږ په په غیرایام حیض کښې د رنګونو اعتبارنه کولو البته چه کله د حیض ایام وی نوبیابه موددغه رنګونو اعتبارکولودامعنی د شوافع موافق ده.

③ د رنګونو مطلق اعتبارنه کول نه په ایام حیض کښې اونه په غیرایام حیض کښې.[2]

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه کومې معنې احنافو بیان کړې دی هغه د ظاهر بخاری رحمه الله زیات موافق دی.[3]

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په دواړو کښې دا بیان کړې شوی دی چه زیړ رطوبت اوخاورین رطوبت په غیر ایام حیض کښې غیرمعتبردی اوددې هیڅ اعتبارنه شی کولې.[4]

# ۲۶-باب: عِرْقِ الْاَسْتَحَاضَةِ.

**ماقبل سره ربط:** د باب سابق سره ربط دادې چه باب سابق کښې په غیر ایام حیض کښې وتونکی زیړ او خاورین رطوبتونو حکم ذکر شو او د دې باب لاندې ددم استحاضه سره متعلق بحث کیږی.[5]

## د ترجمة الباب مقصد

**علامه عینی رحمه الله رائې:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دامام بخاری رحمه الله مقصدداخودل دی چه د استحاضه وینه د حیض وینه نه ده کومه چه درحم نه خارج کیږی بلکه استحاضه په حقیقت کښې د عاذل نومې یورګ نه خارج کیږی د کوم تصریح چه حدیث باب الفاظ "هذاعرق" کښې ده. اوددې نه هم زیات واضح الفاظ دامام ابوداؤد د روایت دی. الفاظ دادی. «إنماذلك عرق وليست بالحيضة»[6]

**دعلامه رشید احمدګنګوهی رحمه الله رائې:** علامه رشیداحمدګنګوهی رحمه الله فرمائی د امام بخاری رحمه الله مقصددا خودل دی چه د استحاضه وینه په حقیقت کښې د یورګ وینه ده. داد سبیلین (مخرج البول والبراز) نه نه خارج کیږی. خارج من السبیلین بل څیز دې اوخارج من العرق بل څیز دې په دواړو کښې فرق دې. لهذا د دواړو احکام به مختلف وی یو شان احکام به ئې نه وی.[7]

---

[1] فیض الباری: ۱/۵۰۸-۵۰۷الکنزالمتواری:۳/۲۹۶.

[2] فیض الباری: ۱/۵۰۸-۵۰۷الکنزالمتواری:۳/۲۹۶.

[3] الکنزالمتواری:۳/۲۹۶.

[4] عمدة القاری: ۳/۴۵۸.

[5] عمدة القاری:۳/۴۶۰.

[6] سنن أبي داؤد كتاب الطهارة من روى أن الحيضة إذا أدبرت. لا تدع الصلاة رقم الحديث۲۸۲عمدة القاری: ۳/۴۶۰.

[7] الأبواب والتراجم: ۶۶ الکنزالمتواری: ۳/۳۳۰لامع الدراری: ۲/۲۸۲-۲۸۱.

لكه چه د رشيداحمد گنگوهي رحمه الله په نيز دامام بخاري رحمه الله مقصد خارج من السبيلين او خارج من غير السبيلين په مينځ كښې فرق اوداحكام طرف ته اشاره كول دى.

**خارج من السبيلين اوخارج من غيرالسبيلين په مينځ كښې فرق:** د امام ترمذي رحمه الله تخريج كړې شوې روايت «إنما ذلك عرق»[1] لاندې علامه رشيداحمد گنگوهي رحمه الله فرمائي چه په دې كښې په دې خبره باندې دلالت دې چه خارج من السبيلين اوخارج من غير السبيلين دواړه په ناقض كيدو كښې برابردى. سره ددې چه فى الواقع په دواړوكښې فرق په خپل ځائې باندې ثابت دې. بل دا وهم نه دى كيدل پكار چه چه دم استحاضه هم د سبيلين (مخرج البول والبراز) نه د يوسبيل (مخرج البول) نه خارج كيږى ځكه چه دلته دسبيل نه مراد خاص مخرج البول دې اود استحاضه وينه د مخرج البول نه نه راوځى. البته دمنى او استحاضه لار يوه ده. هم دغه حكم د براز(ډكو متيازو) دلارې هم ده ځكه چه تركومې پورې يوځيز حقيقةً د براز په لار راونه ځى هغې ته به خارج من المبرز حكم نه شى وركولې سره ددې چه په ظاهر هغه د خارج من المبرز معلوميږى لكه د بواسير غدود يعنى غوټې چه په ظاهر خارج من المبرز معلوميږى مگر په حقيقت كښې هغه د خارج من المبرز حكم كښې نه دى.

فرق په دواړو كښې دا دې چه خارج من غير السبيلين سره طهارت هغه وخت نه ختميږى تركومې چه هغه اونه بهيږى خو خارج من السبيلين سره على الاطلاق طهارت ختميږى اوفقهاء دغه نجاستونه كوم چه خارج من غيرالسبيلين دى هم په دې حديث اوددې معنې په نورو احاديثوسره ناقض الوضوء گرځولى دى.[2]

**د شيخ الحديث زكريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائي د سبيل نه مراد مخرج البول دې دې نه مراد فرج نه دې خودم استحاضه د فرج نه خارج كيږى.

**دمولانا محمدحسن مكى رحمه الله رائې:** مولانا محمدحسن مكى فرمائي چه دحيض وينه د رحم داجزاء نه خارج كيږى اود استحاضه وينه رحم سره نيزدې دعاذل نومې يو رگ نه خارج كيدو سره رحم كښې جمع كيږى او بيا د رحم نه خارج كيږى. رحم غيرالمبال دې يعنى په مخرجين كښې داخل نه دې.[3]

## الحديث الثانى

[۳۲۱]- حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ، قَالَ: حَدَّثَنَا مَعْنٌ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، وَعَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ اسْتُحِيضَتْ سَبْعَ سِنِينَ، فَسَأَلَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَأَمَرَهَا أَنْ تَغْتَسِلَ، فَقَالَ: «هَذَا عِرْقٌ» فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ.[4]

---

[1]) جامع الترمذى كتاب الطهارة باب ماجاء فى المستحاضة تغتسل عندكل الصلاة رقم الحديث: ۱۲۹.

[2]) الكوكب الدرى: ۱/۱۶۹-۱۶۸الأبواب والتراجم: ۶۶الكنزالمتوارى: ۳/۲۹۸.

[3]) الأبواب والتراجم: ۶۶الكنزالمتوارى: ۳/۲۹۸.

[4]) قوله: عائشة: الحديث ورواه الإمام مسلم فى كتاب الحيض باب المستحاضة وغسلها وصلاتها رقم الحديث ۷۵۵-۷۶۰والترمذى فى الطهارت باب ماجاء فى المستحاضة أنها تغتسل عندكل صلاة رقم الحديث۱۲۹، وأبوداؤد فى الطهارة باب ما روى أن المستحاضة تغتسل لكل صلاة رقم الحديث: ۲۸۸والنسائى فى كتاب الحيض باب ذكرالاستحاضة وإقبال الدم

**ترجمه:** د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روايت دې چه ام حبيبه رضی الله عنها تراووه کالوپورې مستحاضه پاتې وه او هغې رضی الله عنها د حضورپاك نه ددې باره کښې تپوس اوکړو نوحضورپاك هغې ته دغسل کولوحکم ورکړو اوونى فرمائيل چه دا د رګ وينه ده بيا به حضرت ام حبيبه رضی الله عنها د هرمونځ دپاره غسل کولو.

## تراجم رجال

**إبراهيم ابن المنذر:** دا ابراهيم بن المنذر بن عبدالله بن المنذر بن المغيره قرشى اسدى حزامى مدنى رحمه الله دې ددوى کنيت ابواسحاق دې. ددوى حالات **كتاب العلم باب من سئل علماً وهومشتغل فى حديثه** لاندې تير شوى دى.(١)

**معن:** دا امام الحديث ابويحيى معن بن عيسى بن يحيى اشجعى مدنى رحمه الله دې. ددوى حالات **كتاب الوضوء باب مايقع من النجاسات فى السمن والماء** لاندې تيرشوى دى.

**ابن أبي ذئب:** دا امام محمدبن عبدالرحمن بن مغيره بن حارث بن أبي ذئب قرشى عامرى مدنى رحمه الله دې. ددوى کنيت ابوالحارث دې اودې په ابن ابى ذئب سره مشهوره دې. د ابوذئب نوم هشام دې. ددوى حالات **كتاب العلم باب حفظه الايمان** لاندې تيرشوى دى.(٢)

**ابن شهاب:** ددوى مکمل نوم ابوبكر محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله بن الحارث بن زهره بن كلاب بن مرة بن كعب بن لؤى زهرى مدنى دې. ددوى حالات **بدء الوحى** ددريم حديث لاندې تيرشوى دى.(٣) او نور حالات ئى **كتاب الغسل** کښې هم راغلى دى.

**عروة:** دا عروة بن الزبير بن العوام رحمه الله دې. د دوى مختصر حالات **بدء الوحى** دويم حديث لاندې(٤) او تفصيلى حالات **كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه** لاندې تيرشوى دى.(٥)

**عمرة:** دامشهوره تابعيه ابوالرجال محمدبن عبدالرحمن مور حضرت عمره بنت عبدالرحمن بن سعيديا سعد بن زراره انصاريه مدنيه رحمهاالله ده. دادحضرت عائشه رضی الله عنها په لاس کښې لويه شوې ده.(٦) د حضرت عائشه رضی الله عنها احاديث دټولو نه زيات پيژندونکې ده.(٧)

هغې دعائشه ،حبيبه بنت سهل حمنه بنت جحش ام المؤمنين حضرت ام سلمه خپل دمور شريك خور ام هشام بنت حارثه بن نعمان او رافع بن خديج رضی الله عنهم وعنهن نه دحديث روايت کړې دې. او ددوى نه ددوى خوئى ابوالرجال محمدبن عبدالرحمن انصارى دهغه رور محمدبن عبدالرحمن انصارى (د يوروايت مطابق د دوى وراره دې) دهغې دوه نمسى حارثه بن ابى الرجال او مالك بن ابى الرجال،

---

وإدباره رقم الحديث: ٣٥٢ وباب المرأة تكون لها أيام معلومة تحيضها كل شهر رقم الحديث٣٥٣وباب ذكر الأقراء رقم الحديث: ٣٥٦وابن ماجه فى الطهارة باب ماجاء فى المستحاضة إذا اختلط عليها الدم، فلم تقف على.....الخ رقم الحديث:٦٢٦.

١) كشف البارى: ٥٨/٣.

٢) كشف البارى: ٤٤٢/٤.

٣) كشف البارى:٣٢٦/١.

٤) كشف البارى: ٢٩١/١.

٥) كشف البارى: ٤٣٦/٢.

٦) الكاشف: ٥١٤/٢ تهذيب الكمال:٢٤١/٣٥تهذيب التهذيب:٣٨٩/١٢.

٧) كتاب الثقات لابن حبان: ٢٨٨/٥.

زريق بن حكيم، سعد بن سعيدانصاری، سلیمان بن یسار، عبدالله بن ابی بکر بن محمدبن عمرو بن حزم، عبد ربه بن سعید انصاری، عروة بن الزبیر، عمرو بن دینار، محمدمسلم بن شهاب زهري، یحیی بن سعیدانصاری اوفاطمه بنت منذر بن زبیر رحمة الله علیها وعلیهم دحدیث روایت کوی.(١)

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی: «ثقة حجة» (٢) دامام علی بن المدینی رحمه الله باره کښې راځي چه هغه به دحضرت عمره بنت عبدالرحمن تذکره په ډیرزیات عظمت سره کوله اوهغه به فرمائیل: «عمرة أحدالثقات العلماء بعائشة، الأثبات فیها» یعنی حضرت عمره بنت عبدالرحمن دحضرت عائشه رضي الله عنها دعلم پیژندونکې یوه ډیره زیاته ثقه راویه ده. (٣) امام عجلی رحمه الله فرائی: «مدنیة،تابعیة،ثقة»(٤) ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.(٥)

نوح بن حبیب قومسی فرمائی چه چاهم ددې نسب عمره بنت عبدالرحمن بن اسعدبن زراره بیان کړې دې هغه غلطی کړې ده صحیح دادې چه ذ عبدالرحمن دپلار نوم سعدبن زراره وو چه داسعدبن زراره رور دې ځکه چه د اسعد بن زراره هیڅ اولاد نه وو. خلقو نه غلطی په دې وجه شوې چه مشهور اسعدبن زراره دې لیکن اولاد د سعدبن زراره وو. نوح بن حبیب قومسی رحمه الله فرمائی چه ما دا خبره د علی بن المدینی رحمه الله او نورو خلقونه اوریدلې ده چه دانصار نسب ښه پیژندونکی دی. (٦)

ابن المدینی رحمه الله د حضرت سفیان نه روایت کوی: «أثبت حدیث عائشة حدیث عمرة،والقاسم،وعروة» (٧)ابن سعد رحمه الله فرمائی چه حضرت عمره بنت عبدالرحمن دعلم شریعت نه ښه واقفه وه، تردې چه حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په خپل دورکښې ابن حزم رحمه الله په دې خبره باندې مقررکړې ووچه هغه دې دحضرت عمره بنت عبدالرحمن احادیث راجمع کړی.(٨) حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله فرمائی «مابقی أحدأعلم بحدیث عائشة من عمرة» (٩)امام شعبه فرمائی چه عبدالرحمن بن القاسم، دحضرت عمره بنت عبدالرحمن نه به دحضرت عائشه رضي الله عنها داحادیثو باره کښې پوښتنه کوله. (١٠).دهغوی په تاریخ وفات کښې اختلاف دې. چنانچه ابن ابی حاتم فرمائی چه دهغې انتقال په ١٠٣هجری کښې شوې

---

١) تهذیب الکمال: ٢٤٢/٣٥-٢٤١تهذیب التهذیب:٣٨٩/١٢.
٢) تهذیب الکمال: ٢٤١/٣٥تهذیب التهذیب:٣٨٩/١٢.
٣) تهذیب الکمال: ٢٤٢/٣٥-٢٤١تهذیب التهذیب:٣٨٩/١٢.
٤) معرفة الثقات للعجلی:٤٥٦/٢.
٥) ٢٨٨/٥.
٦) تهذیب الکمال: ٢٤١/٣٥تهذیب التهذیب:٣٨٩/١٢.
٧) تهذیب التهذیب:١٢/٣٨٩.
٨) طبقات ابن سعد: ٤٨٠/٨.
٩) تهذیب التهذیب:٣٨٩/١٢.
١٠) حواله بالا

دي[١] خوابوحسان زيادی فرمانی ۹۸هجری کښې انتقال شوې ده[٢] او يوقول داهم دې چه دهغې رحمهاالله انتقال ۱۰۶هجری کښې شوې هغه وخت هغه د ۷۷ کالوپه عمرکښې وه.[٣]

**عائشة**: دا ام المؤمنين حضرت سيده عائشه بنت ابی بکر صديق رضی الله عنها ده. ددوی حالات «بدءالوحی» ددويم حديث لاندې تفصيلاً تيرشوی دی.[٤]

## شرح حديث

**قوله: أن أم حبيبة**:

**ام حبيبه نوم دې که کنيت؟**: دا د ام المؤمنين حضرت زينب بنت جحش رضی الله عنها خور حضرت ام حبيبه بنت جحش رضی الله عنها ده. دا په خپل کنيت سره مشهوره ده. دواقدی اوحربی وينا ده ددې کنيت ام حبيبه نه دې بلکه ددې کنيت ام حبيب بغيرد هاء دې اوددهغې نوم حبيبة دې. هم داقول امام دارقطنی رحمه الله هم راجح ګرځولې دې.[٥] خو په رواياتوکښې مشهور هم دغه دی چه دهغې کنيت ام حبيبه دې. هم دا غسانی رحمه الله صحيح ګرځولې دې. دې نه علاوه حميدی رحمه الله هم د سفيان رحمه الله نه په اثبات دهاء سره نقل کړې دې اودغه شان ابن اثير رحمه الله هم داکثر حضراتو نه په اثبات د هاء سره نقل کړې دې.[٦]

د امام مسلم رحمه الله دعمرو بن الحارث رحمه الله نه نقل کړې شوی روايت نه معلوميږی چه ام حبيبه د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه بی بی وه.[٧] ليکن امام مالک رحمه الله په موطاکښې «هشام عن أبيه عن زينب بنت أبي سلمة» په طريق سره روايت کوی چه «أنها رأت زينب بنت جحش التي كانت تحت عبدالرحمن بن عوف وكانت تستحاض.... الحديث».[٨]

بعض حضراتو خودا وهم ګرځولې دې اوبعض نورو حضراتو وئيلی دی چه هم دغه صحيح دی خکه چه ام حبيبه کنيت دې او اصلي نوم زينب دې. پاتې شوه دا خبره چه دهغې دخور ام المؤمنين نوم زينب دې نودا څه د اشکال خبره نه ده څکه چه دام المؤمنين اصلي نوم زينب نه دې بلکه دهغې اصلي نوم بره وو کوم چه روستو بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم په زينب سره بدل کړې وو. او غالبًا زينب نوم ئې څکه کيخودو ه دهغې خور(د کومې چه اصلي نوم زينب دې) په خپل کنيت سره مشهوره وه اودهغې کنيت دهغې په نوم باندې غالب وو دکوم د وجې نه چه دالتباس انديښنه نه وه. دهغوی يوه خور بله هم ده دکومې نوم چه حمنه وو اوهغه هم دمستحاضات نه وه.[٩]

---

[١]) حواله بالا.

[٢]) تهذيب الكمال: ٢٤١/٣٥تهذيب التهذيب:٣٨٩/١٢ كتاب الثقات لابن حبان:٢٨٨/٥.

[٣]) تهذيب الكمال: ٢٤١/٣٥.

[٤]) كشف الباري: ٢٩١/١.

[٥]) فتح الباري: ٤٢٧/١.

[٦]) مسندالحميدي: ٢٤١/١دارالسقاء، أسد الغابة: ٣٠٢/٧.

[٧]) صحيح مسلم كتاب الحيض باب ا لمستحاضة وغسلها وصلاتها رقم الحديث: ٧٥۶.

[٨]) المؤطا للإمام مالک كتاب وقوت الصلاة المستحاضة رقم الحديث: ٢٠٠١.

[٩]) فتح الباري: ٤٢٧/١عمدة القاري:٤۶١/٣.

داهل سیر وینا ده چه مستحاضه صرف حمنه بنت جحش وه خومحدثین حضرات فرمائی چه دواړه خوئیندې حضرت حمنه اوحضرت ام حبیبه مستحاضه وې. یوقول داهم دې چه ام المؤمنین حضرت زینب رضی الله عنها هم مستحاضه وه لیکن دا قول صحیح نه دې.(۱)د بعض حضراتو ګمان دې چه د جحش ددریواړو لونړو نوم زینب وو بیا داسې اوشو چه ام المؤمنین په خپل نوم سره مشهوره شوه حضرت ام حبیبه په خپل کنیت سره مشهوره شوه او حضرت حمنه په خپل لقب سره مشهوره شوه. لیکن دا حضرات په دې باندې دهیڅ قسم دلیل پیش کولونه قاصر دی.(۲)
اودمؤطا په حواله سره داخبره تیره شوې ده چه په دې کښې ام حبیبه رضی الله عنها زینب بنت جحش په نوم سره موسوم کړې شوې ده. نوواضحه دې وی چه صرف امام مالک رحمه الله ام حبیبه ته زینب بنت جحش نه دی ونیلی بلکه امام ابوداؤد رحمه الله هم په خپل سندسره ددې باب متعلق دابن ابی ذئب په طریق سره یوروایت نقل کړې دې او په هغې کښې هغوی هم د ام حبیبه په ځائې باندې زینب بنت حجش ذکرکړې دې. اوددې توجیه ماقبل کښې تیره شوې ده چه ام حبیبه اوزینب بنت جحش دواړه هم یوه ده. البته زینب دهغې حقیقی نوم دې اود ام المؤمنین حقیقی اواصلي نوم زینب نه وو بلکه بره وو.(۳)
«وعن عمرة»ددې عطف په عروة باندې دې یعنی حضرت عروه اوحضرت عمره بنت عبدالرحمن دواړه د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت کوی. اکثر رواة واؤ سره سند ذکرکړې دې البته د ابوالوقت او ابن عساکر په روایت کښې واؤ محذوف دې. په داسې صورت کښې دا روایت «عن عروة عن عمرة» په طریق سره وی لیکن صحیح اومحفوظ هم دغه دې چه دلته واؤ ثابت دې او امام زهری رحمه الله ددې دواړو شیوخ نه دا روایت نقل کړې دې.(۴)

**قوله:: استعیضت سبع سنین:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه سنین خلاف قیاس دې دسنة جمع ده خکه چه دجمع سالم شرط دادې چه دې مفرددې مذکرعاقل وی خوسنة نه مذکر دې اونه عاقل دې.(۵)
**دعلامه ملقن رحمه الله کلام:** ابن ملقن رحمه الله فرمائی چه په دې کښې د ابن القاسم رحمه الله دپاره دهغوی په مذهب باندې دلیل موجود دې. دابن القاسم رحمه الله مذهب دادې که چرته یوه ښځه مستحاضه وی اوهغې د جهالت د وجې نه یا استحاضه حیض ګنړلوسره مونځونه پریخودې وی نو په داسې ښځه باندې به د دغه مونځونه راګرځول لازم نه وی ځکه چه په مذکوره روایت کښې حضورپاك حضرت ام حبیبه رضی الله عنها ته دتیرو شوو کالونو د مونځونود راګرځولو حکم نه وو فرمائیلې. د استدلال نوره وجه داده چه کله حضرت ام حبیبه رضی الله عنها د خپلې مسئلې متعلق د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو نوحضورپاك هغې ته دغسل کولوحك ورکړو دکوم نه چه معلومه شوه چه ددې نه وړاندې هغې غسل نه وو کړې. که چرته غسل نې کړې وې نوضرور به نې دهغې تذکره کوله. نومعلومه شوه چه هغې داوړدې مودې

---
(۱) أسدالغابة: ۳۰۲/۷عمدة القاري: ٤٦١/۳.
(۲) فتح الباري: ٤۲۷/۱.
(۳) فتح الباري: ٤۲۷/۱مسندالطیالسي: ٥٤/۳.
(٤) فتح الباري: ٤۲۷/۱شر ح الکرماني: ۲۰۲/۳.
(٥) عمدة القاري: ٤٦١/۳.

پورې خپل خان حائضه ګڼړلو اوحضورپاك هم د آخري حيض نه پس دغسل حكم اوفرمائيلو اود تيرو شوو مونځونو د راګرځولو حكم ئې ورنه كړو.(١)

**دحافظ ابن حجر رحمه الله د طرف نه جواب**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د روايت الفاظ ((**استحيضت سبع سنين**)) كښې ددې خبرې هم احتمال دې چه په دې كښې دحضرت ام حبيبه رضي الله عنها ددې مرض پوره موده بيان كړې شوې وي چه هغې ته تراووه كالو پورې دغه بيماري وه. ددې خبرې نه مخ اړولوسره چه دا اووه كاله موده د رسول الله ﷺ نه د مسئلې تپوس كولونه وړاندې وي ياروستو، په داسې صورت كښې د ابن القاسم رحمه الله دپاره ددې روايت نه په خپل مذهب باندې دليل باقي نه پاتې كيږي.(٢)

**قوله: فأمرها أن تغتسل**: اسماعيلي رحمه الله اودغه شان امام مسلم رحمه الله اغتسال سره د صلاة هم اضافه كړې ده يعني ((**اغتسلي وصلي**)).(٣)

**ايا مستحاضه به دهرمونځ دپاره غسل كوي؟**: شراح حضرات فرمائي چه په مذكوره روايت كښې امر د اغتسال مطلق دې چه په تكرار باندې دلالت نه كوي چه دهرمونځ دپاره غسل كوه. ليكن حضرت ام حبيبه رضي الله عنها كيدې شي دغه قرينې د وجې نه دا ګڼړلې وي چه په دې امر كښې تكرار دې او هم په دې وجه به هغې د هر مونځ دپاره غسل كولو.(٤)

امام شافعي رحمه الله فرمائي چه رسول الله ﷺ هغې ته د غسل كولو اومونځ كولو حكم فرمائيلې وو اوهغه چه دې به دهر مونځ دپاره غسل كولو نوهغه د تطوع په توګه وو وجوبي غسل نه وو.(٥) هم دغه شان ليث بن سعد رحمه الله فرمائي چه دامام زهري رحمه الله په رواياتو كښې داخبره نشته دې چه حضورپاك د هر مونځ دپاره دغسل كولو حكم وركړې وو بلكه دهر مونځ دپاره غسل كول د ام حبيبه رضي الله عنها ذاتي فعل وو چه دخپل طرف نه به ئې كولو.(٦)

هم دغه دجمهورو مذهب دې چه په مستحاضه باندې دهرمونځ دپاره غسل واجب نه دې سوا د متحيره البته مستحاضه به دهر مونځ دپاره اودس كوي.(٧)

اود دې تائيد د امام ابوداود رحمه الله د حضرت عكرمه رحمه الله په طريق سره نقل كړې شوي دې روايت نه هم كيږي: ((**ان أم حبيبة استحيضت فأمرها صلى الله عليه وسلم أن تنتظر أيام أقرائها ثم تغتسل وتصلي، فإذا رأت شيئا من ذلك، توضأت وصلت**)) په دې روايت كښې ددې خبرې تصريح شته چه مستحاضه به هره مياشت په خپل ايام حيض كښې دمونځ وغيره نه منع كيږي اوددې نه پس به غسل كوي اومونځونه كول به شروع كوي. البته د استحاضه دوجې نه به دهر مونځ دپاره جدا اودس كوي.(٨)

---

(١) التوضيح: ١٣٧/٥-١٣٦شرح ابن بطال: ٤٥٩/١.

(٢) فتح الباري: ١٢٧/١.

(٣) فتح الباري: ٤٢٧/١صحيح مسلم كتاب الحيض باب المستحاضة وغسلها وصلاتهارقم الحديث:٧٥٦-٧٥٥.

(٤) فتح الباري: ٤٢٧/١.

(٥) فتح الباري: ٤٢٧/١عمدة القاري:٤٦٢/٣.

(٦) صحيح مسلم كتاب الحيض باب المستحاضة وغسلها وصلاتها، فتح الباري: ٤٢٧/١عمدة القاري: ٤٦٢/٣.

(٧) فتح الباري: ٤٢٧/١عمدة القاري: ٤٦٢/٣.

(٨) فتح الباري: ٤٢٧/١سنن أبي داؤد كتاب الطهارة باب من لم الوضوء إلا عندالحدث، رقم الحديث: ٣٠٥.

**د امام مهلب رحمه الله دهرمونځ دپاره دغسل په عدم وجوب باندې استدلال:** امام مهلب د روايت الفاظ «**هذا عرق**» نه په "عدم وجوب غسل لكل صلاة" باندې استدلال كړې دې هغه فرمائي چه استحاضه دم عرق دې او دم عرق غسل نه واجب كوي. لهذا په دې باندې دهرمونځ دپاره غسل كول واجب نه دى. (١)

**په رواياتوكښې دهرمونځ دپاره د غسل د وجوب په زياتى باندې جواب:** اوس چه دا دامام ابوداؤد رحمه الله د سليمان بن كثير عن الزهرى او ابن اسحاق عن الزهرى په طريق سره نقل كړې شوى روايات دى.(٢) او په هغې كښې چه دهرمونځ دپاره دغسل كولوكوم حكم ذكردې. علماؤ په دغه رواياتوكښې موجود دغه زياتى «**فأمرها بالغسل لكل صلاة**» مطعون ګرځولې دې او ددې وجه داده چه دامام زهرى رحمه الله د اثبات تلامذه اودغه شان دهغه دحفاظ تلامذه دا زياتې نه دې ذكركړې لكه څنګه چه دليث بن سعد رحمه الله په حواله سره تصريح كړې شوې ده چه ابن شهاب رحمه الله دا زياتې نه دې ذكر كړې.(٣) بل دابن اسحاق اوسليمان بن كثير دامام زهرى رحمه الله نه رواياتوكښې اضطراب دې لهذا ددې دواړو د رواياتو په وجه به حكم نه شي وركولې. خودامام زهرى رحمه الله حفاظ تلامذه دا زياتې نه ذكركولوسره دهغه مخالفت هم كړې دې. (٤)

**يواشكال اود هغې جواب:** ليكن په دې باندې اشكال كيږى چه «**وجوب غسل لكل صلاة**» حكم صرف د امام ابن شهاب زهرى رحمه الله په روايت كښې نه دې بلكه په نورو رواياتوكښې هم د هرمونځ دپاره د غسل كولوحكم راغلې دې اود حكم نسبت هم دحضورپاك ﷺ طرف ته دې. چنانچه امام ابوداؤد رحمه الله اويحيى بن ابى كثير عن ابى سلمة عن زينب بنت ابى سلمة په طريق سره روايت كوى چه «.....**فأمرها أن تغتسل عند كل صلاة**»(٥)

نوجواب دادې چه اوس په داسې صورت كښې دزينب بنت ابى سلمه حديث او دعكرمه رحمه الله حديث (په كوم كښې چه صراحت دې چه د يوځل نه پس به د هرمانځه دپاره اودس كوى) په دواړوكښې به د تطبيق لار راويستلې شى. دكوم صورت چه دادې په حديث زينب كښې حكم په امرمندوب اومستحب كيدو باندې محمول كولې شى دې دپاره چه دواړه روايتونه جمع شى.(٦)

**فائده:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه علامه خطابى رحمه الله دا روايات په دې باندې محمول كړى دى چه حضرت ام حبيبه رضي الله عنها مستحاضه متحيره وه په دې وجه هغې ته د هرمونځ دپاره دغسل كولو حكم وركړې شو خودا جواب صحيح نه دې ځكه چه د حديث عكرمه رحمه الله الفاظ: «**أنه أمرها أن تنتظر أيام أقرائها**» اود امام مسلم رحمه الله د روايت الفاظ «**امكثى قدر ما كانت تحبسك حيضتك**» په دې باندې دلالت كوى چه حضرت ام حبيبه رضي الله عنها متحيره نه وه ځكه چه متحيره دخپل عادت ايام هيركړې شوې وى.(٧)

---

(١) شرح ابن بطال: ٤٥٨/١ فتح البارى: ٤٢٧/١.

(٢) سنن أبى داؤد كتاب الطهارة باب ماروى أن المستحاضة تغتسل لكل صلاة رقم الحديث: ٢٩٢.

(٣) فتح البارى: ٤٢٧/١ فتح البارى لابن رجب: ١٦٥/٢ إرشادالسارى: ٣٦٣/١.

(٤) فتح البارى لابن رجب: ١٦٦/٢.

(٥) سنن أبى داؤد كتاب الطهارة باب ماروى أن المستحاضة تغتسل لكل صلاة رقم الحديث: ٢٩٣.

(٦) فتح البارى: ٤٢٧/١ إرشادالسارى: ٣٦٣/١.

(٧) فتح البارى: ٤٢٧/١.

لیکن زما «راقم» خیال دادې چه دحافظ ابن حجر رحمه الله داخبره په ظاهره صحیح نه ده ځکه چه علامه خطابی رحمه الله خو «وجوب غسل لکل صلاة» په مستحاضه متحیره باندې محمول کړې دې. هغوی دا نه دی فرمائیلی چه حضرت ام حبیبه رضي الله عنها مستحاضه متحیره وه. دعلامه خطابی د کلام حاصل دادې چه په مذکوره روایت کښې اختصاردې. په دې کښې دحضرت ام حبیبه رضي الله عنها دمکمل حال بیان نشته دې. او په هره مستحاضه باندې دهرمونځ دپاره غسل کول هم واجب نه وی بلکه دهرمونځ دپاره دغسل وجوب صرف مستحاضه متحیره سره مختص دې چاته چه نه خودخپل عادت ایام یادوی اونه هغه دوینو په مینځ کښې فرق کولې شی. صرف د داسې صفت والا په مستحاضه باندې دهر مونځ دپاره غسل واجب دې. ځکه چه دداسې صفت والا مستحاضه په حق کښې په هروخت کښې داامکان موجود دې چه هغه به هم دغه وخت کښې دحیض نه پاکه شوې وی لهذا غسل واجب شو.(۱)

**دعلامه ابن بطال رحمه الله تحقیق:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چا چه په حدیث ام حبیبه کښې «امرغسل لکل صلاة» ذکر کړې دې نودا زیاتې په هغه حضراتو باندې حجت نه دې چه ددغه زیاتی باره کښې خاموش دی ځکه چه د ابن شهاب زهری رحمه الله اثبات تلامذه دا زیاتې نه دې ذکرکړې اوبیا غسل واجب ګرځول د فرائض نه دی اوهیڅ یو فرض بغیرد یقین نه نه ثابتیږی. اودلته خو نه په دې مسئله کښې مضبوط دلیل نه دهرمونځ دپاره د غسل واجب کیدل ثابت دی اونه په دلیل داجماع سره، بلکه اجماع صرف دحیض په ختمیدوباندې دغسل په واجب کیدو ده.(۲)

**د امام طحاوی رحمه الله تحقیق:** امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه حدیث ام حبیبه رضي الله عنها، حدیث فاطمه بنت ابی جیش(په کوم کښې چه دهرمونځ دپاره داودس کولوحکم دې نه چه دغسل کولو) دوجې نه منسوخ دې. ځکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها حدیث فاطمه واخستو اود حدیث ام حبیبه مخالفت کولوسره کومه فتوی جاری کړې وه هغه د وفات نبوی نه پس وه. اوحضرت عائشه رضي الله عنها بنه پوهیدله چه هغه د حضور پاك په اقوال کښې د چا مخالفت کوی اودچا موافقت، اودا ممکن نه ده چه هغه ناسخ پریږدی او په منسوخ باندې فتوی ورکړی بلکه هغه به یقیناً هم ناسخ اخستوسره فتوی ورکوی.(۳)

دکلام حاصل دا راوځی چه یاخود «وجوب غسل لکل صلاة» حکم حضورپاك نه دې ورکړې بلکه دا د روات دخپل طرف نه اضافه ده یا سره ددې چه زیاتوالې ثابت دې نوبیا دهرمونځ دپاره دغسل حکم په امرمندوب اومستحب کیدو باندې محمول دې اویابیا حدیث ام حبیبه په حدیث فاطمه بنت ابی جیش سره منسوخ دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په ځائی د یوحدیث ناسخ او بل حدیث ته منسوخ ونیلو نه اولی اوبهتر دادی چه دواړه روایتونه جمع کړې شی.(۴)

**قوله: فکانت تغتسل لکل صلاة:** بعض حضرات فرمائی چه داد راوی خپل قول دې دحدیث جز نه دې اوددې معنی داده چه حضرت ام حبیبه رضي الله عنها به هغه وینځلو کوم چه په شرمګاه سره لګیدلو

---

(۱) أعلام الحدیث للخطابی: ۱/۳۲۸-۳۲۷.

(۲) شرح ابن بطال: ۱/۴۵۹-۴۵۸.

(۳) شرح معانی الآثار: ۱/۸۲المکتبة الحقانیة، فتح الباری: ۱/۴۲۸شرح ابن بطال: ۱/۴۵۹عمدة القاری:۳/۴۶۲.

(۴) فتح الباری: ۱/۴۲۸.

ځکه چه د حضرت عائشه رضی الله عنها مشهور قول دادې چه په مستحاضه باندې دهر مونځ دپاره غسل کول واجب نه دی.[۱]

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حدیث اوترجمة الباب کښې مناسبت بالکل واضح دې چه دواړو کښې د دم استحاضه په دم عرق کیدو باندې تذکره ده.

## ۲۷- باب: اَلْمَرْأَةُ تَحِيضُ بَعْدَ الْاِفَاضَةِ.

**ماقبل سره ربط:** د باب سابق سره مناسبت دادې چه باب سابق کښې دمستحاضه ښځې حکم بیان کړې شوې وو او اوس په دې باب کښې د حائضه ښځې سره متعلق یوبل حکم بیانولې شی او استحاضه او حیض دواړه هم د یوقبیل نه دی.[۲]

**د ترجمة الباب مقصد:** دامام بخاری رحمه الله مقصد داخودل دی چه د طواف افاضه کولونه پس کوم چه د حج لوئی رکن دې چرته حیض شروع شی نودطواف وداع دپاره حصاریدل ضروری نه دی خپل کورته واپس کیدې شی. (ځکه چه شریع داد حائضه ښځې په حق کښې ساقط کړې دې) هم طواف افاضه طواف رکن اوطواف زیارت ته (اوطواف یوم النحر) ونیلی شی.[۳]

**ایا حائضه د طواف وداع کولونه بغیر واپس کیدې شی:** په شروع کښې په دې مسئله کښې د اصحاب په مینځ کښې اختلاف وو که په ښځه باندې په داسې حالت کښې حیض شروع شی کوم وخت چه هغه دارکان حج نه فارغ شی اوصرف طواف وداع باقی پاتې شی نوآیا ښځې له به دعذر ختمیدو انتظار کول وی یا د طواف وداع نه بغیرهم د مکې نه واپس کیدې شی؟ دمذکوره روایت نه معلومه شوه چه په داسې صورت کښې حائضه ښځه د طواف وداع کولونه بغیر دمکې نه واپس کیدې شی په داسې حالت کښې به دښځې نه طواف وداع ساقط شی اوهم دغه د جمهور علماؤ مذهب دې اوهم په دې کښې ائمه اربعه هم داخل دی. دمذکوره روایت نه د استدلال طریق دادې چه کوم وخت حضورپاک ته د حرت صفیه بنت حیی باره کښې خبر ورکړې شو چه هغه حائضه شوې ده. نو حضورپاک اوفرمائیل ((أحابستنا هی؟)) یعنی ښکاری چه هغه به مونږ مکې ته د واپس کیدو نه منع کوی. لیکن بیا چه خبر ورکړې شو چه هغې طواف زیارت اداکړې دې نوحضورپاک اوفرمائیل چه بیا خو په واپس کیدوکښې هیڅ حرج نشته دې. ددې نه معلومه شوه چه د حائضه نه طواف وداع ساقط دې. البته د اصحاب یوجماعت ددې اختلاف کړې دې. دهغوی وینا ده چه دچا دپاره هم د مکې نه بغیرد طواف وداع واپسی جائز اوحلال نه ده تردې چه دحائضه دپاره هم.[۴]

ابن المنذر رحمه الله فرمائی چه دادعدم جوازقول دحضرت عمر، حضرت عبدالله بن عمر او حضرت زید بن ثابت رضی الله عنهم نه نقل دې. دا حضرات فر مائی که یوې ښځې د حج ټول ارکان ادا کړې وی اوصرف طواف وداع باقی وی نوبیا به هم دغه حائضه ښځه د طواف وداع دپاره دعذر ختمیدو انتظارکوی

---

[۱]) شرح ابن بطال: ٤٥٨/١عمدة القاری: ٤٦٢/٣.

[۲]) عمدة القاری:٤٦٣/٣.

[۳]) عمدة القاری: ٤٦٣/٣.

[۴]) عمدة القاری: ١٣٦/١٠شرح ابن بطال: ٤٢٦/٤فتح الباری: ٣/٥٨٧شرح الزرقانی علی الموطا: ٥٠٢/٢مرقاة المفاتیح: ٣١١/٩-٣١٠.

لکه چه د دوی په نيز ځنګه طواف افاضه په دې واجب ده هغه شان طواف وداع هم په دې واجب ده.
ابن المنذر رحمه الله داحکم دحضرت عمر نه په صحيح سندسره عن نافع عن ابن عمر په طريق سره روايت کړې دې د روايت الفاظ دادی ((عن ابن عمر قال: طافت امرأة بالبيت يوم النحر ثم حاضت، فأمر عمر بحبسها بمكة بعد أن ينفر الناس، حتى تطهر وتطوف بالبيت)) يعنی ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی يوځل داسې اوشو چه په يوه ښځه باندې په لسم ذی الحجه (يوم النحر) طواف (زيارت) کولونه پس حيض شروع شو، نوحضرت عمر رضي الله عنه هغې ته هم په مکه کښې دحصاريدو حکم ورکړو ترهغه وخته پورې چه هغه دحيض نه پاکه شی اوطواف (وداع) اوکړی.
دې نه پس ابن المنذر رحمه الله فرمائی چه حضرت ابن عمر او حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنهم نه خو ددې خپل قول نه رجوع ثابته ده. پاتې شوه خبره د حضرت عمر رضي الله عنه، نود دې په جواب کښې دثبوت په توګه مونږ سره د حضرت عائشه رضي الله عنها حديث باب دې. دغه شان دحديث باب دمعنې نورو رواياتونه هم د حضرت عمر رضي الله عنه دمذهب مخالفت کيږی.[1]

چنانچه ابن ابی شيبه رحمه الله د قاسم بن محمد په طريق سره روايت کوی: ((كان الصحابة يقولون: إذا أفاضت المرأة قبل أن تحيض، فقد فرغت إلا عمر رضى الله عنه، فإنه كان يقول: آخر عهدها بالبيت))[2] يعنی حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم به فرمائيل که چرې ښځه دحيض شروع کيدونه وړاندې طواف زيارت اوکړی نوهغه دحج نه فارغ کيږی، بغيرد حضرت عمر رضي الله عنه د وينانه، ځکه چه هغوی به فرمائيل چه ددې آخری عمل طواف (وداع) دې.

بل دحضرت عمر رضي الله عنه په موافقت کښې دحضورپاک نه نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم هم دا مسئله روايت کړې ده. چنانچه امام احمد رحمه الله امام ابوداؤد رحمه الله اوامام طحاوی رحمه الله د ((وليد بن عبد الرحمن عن الحارث بن عبد الله بن أوس الثقفى)) په طريق سره روايت کوی: ((أتيت عمر رضى الله عنه، فسألته عن المرأة تطوف بالبيت يوم النحر، ثم تحيض؟ قال: ليكن آخر عهدها بالبيت، فقال الحارث: كذلك أفتانى رسول الله صلى الله عليه وسلم. فقال عمر: أربت عن يديك! سألتنى عن شیء سألت عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم، لكيما أخالفه......!)) يعنی حارث بن عبدالله بن اوس ثقفی رضي الله عنه فرمائی زه حضرت عمر رضي الله عنه له راغلم اودهغوی نه مې دهغه ښځې باره کښې سوال اوکړو چاته چه د يوم النحر د طواف زيارت نه پس حيض راغلې وی؟ نوحضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل د دغه ښځې آخری عمل طواف (وداع) کيدل پکاردی. په دې باندې حارث بن عبدالله رضي الله عنه اوفرمائيل ماته رسو الله صلى الله عليه وسلم په دې مسئله کښې په دې باندې فتوی راکړې وه نوحضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل ستا لاسونه دې مات شی تامانه د يوداسې څيز باره کښې سوال اوکړودکوم چه تاد حضورپاک نه هم تپوس کړې، دې دپاره چه مادهغوی مخالفت کړې وې. دا الفاظ د امام ابوداؤد رحمه الله د روايت دی.[3]

---

[1]) عمدة القاري: ۱۳۶/۱۰شرح ابن بطال: ۴۲۶/۴فتح البارى: ۵۸۷/۳شرح الزرقانی علی المؤطا: ۵۰۲/۲ مرقاة المفاتيح: ۹/۳۱۱-۳۱۰.
[2]) مصنف ابن أبی شيبة: ۱۴۰/۸رقم الحديث: ۱۳۳۴۰.
[3]) سنن أبی داؤد کتاب المناسک باب الحائض تخرج بعدالإفاضة رقم الحديث: ۲۰۰۴مسند الإمام أحمد، مسند حارث بن عبدالله بن عوف: ۱۷۵/۲۴رقم الحديث: ۱۵۴۴ شرح معانی الآثار کتاب المناسک باب المرأة تحيض بعد ما طافت للزيارة رقم الحديث:۳۷۴۷.

امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه حدیث حضرت عمر رضی الله عنه او نور احادیث دحضرت عائشه رضی الله عنها د روایت باب اوحدیث ابن عباس رضی الله عنهما دوجې نه منسوخ دی. دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت امام طحاوی رحمه الله په دې سندسره ذکر کړې دې: «حدثنا يونس قال حدثنا سفيان عن ابن طاؤوس عن أبيه عن ابن عباس: أمر الناس أن يكون آخر عهدهم بالبيت إلا أنه قد خفف عن المرأة الحائض»[1] يعنی خلقوته به حکم ورکولې شو چه حج کولووخت کښې دهغوی آخری عمل دې د بیت الله طواف وی، البته حائضه ښځه باندې په دې معامله کښې تخفیف کړې شوې دې.

دا روایت امام مسلم رحمه الله هم روایت کړې دې.[2] لیکن په دې باندې اشکال کیدې شی چه دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه په دې مسئله کښې مطلق روایت هم نقل دې په کوم کښې چه دحائضه استثنٰی نشته دې اود هغه روایت تخریج امام طحاوی رحمه الله کړې دې. د روایت الفاظ دادی: «حدثنا يونس قال حدثنا سفيان عن سليمان وهو ابن أبي مسلم الأحول عن طاؤوس عن ابن عباس: قال: كان الناس ينفرون من كل وجه، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا ينفرن أحد حتى يكون آخر عهده الطواف بالبيت»[3] یعنی حضورپاك صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه څوك دې هم د طواف وداع نه بغیرواپس نه څی. چنانچه دا روایت دچانه هم په طواف وداع ساقط کیدو باندې دلالت نه کوی.[4]

## الحديث الأول

[٣٢٢]-حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ قَدْ حَاضَتْ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَعَلَّهَا تَحْبِسُنَا أَلَمْ تَكُنْ طَافَتْ مَعَكُنَّ»، فَقَالُوا: بَلَى، قَالَ: «فَاخْرُجِي»[5] [١٧٤٦، ١٧٧٠، ١٧٧٣، ١٧٨٢، ٤١٤٠، ٥٠١٩، ٥٨٠٥]

**ترجمه:** حضرت عائشه رضی الله عنها دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې عرض اوکړواې د الله تعالی رسول صلی الله علیه وسلم! په صفیه بنت حیی باندې حیض شروع شوې دې. حضورپاك اوفرمائیل ښکاری چه هغه به مونږ دتلو نه منع کړی، آیا هغې تا سره طواف زیارت کړې وو؟ عرض ئی اوکړو اوجی. حضورپاك اوفرمائیل بیا خوځئی چه څو.

---

[1] شرح معانی الآثار كتاب المناسک باب المرأة تحيض بعد ما طافت للزيارة رقم الحديث:٢/٢٣٥-٢٣٣ رقم الحديث: ٣٧٥.

[2] صحيح مسلم كتاب الحج باب وجوب طواف الوداع وسقوطه عن الحائض رقم الحديث: ٣٢٢.

[3] شرح معانی الآثار كتاب المناسک باب المرأة تحيض بعد ما طافت للزيارة رقم الحديث:٣٧٣٩.

[4] عمدة القاري: ١٠/١٣٧.

[5] قوله: عائشة: الحديث، أخرجه الإمام البخاري أيضاً في الحج باب الزيارة يوم النحر رقم الحديث: ١٧٣٣ وكذا في المغازي باب حجة الوداع رقم الحديث: ٤٤٠١ والإمام مسلم في الحج باب وجوب طواف الوداع وسقوطه عن الحائض رقم الحديث: ٩٤٢ والإمام أبوداؤد في المناسك باب الحائض تخرج بعد الحديث: ٢٠٠٣ والنسائي في كتاب الحيض باب المرأة تحيض بعد الإفاضة رقم الحديث: ٣٩١ والإمام ابن ماجه في المناسك باب الحائض تنفر قبل أن تودع رقم الحديث: ٣٠٧٣-٣٠٧٢ وجامع الأصول في أحاديث الرسول صلى الله عليه وسلم: ٣/٢٠٤ رقم الحديث: ١٤٨٨.

## تراجم رجال

**عبدالله بن یوسف**: دا مشهور امام اومحدث ابومحمد عبدالله بن یوسف تنیسی کلاعی دمشقی رحمه الله دي. ددوی مختصرحالات بدءالوحي د دویم حدیث لاندې (۱) اوتفصیلی حالات کتاب العلم باب لیبلغ العلم الشاهدالغائب د ړومبی حدیث لاندې تیرشوی دی. (۲)

**مالك**: دا امام دارالهجره عالم المدینه امام مالك بن انس بن مالك بن ابی عامر بن عمرو الاصبحی المدنی رحمه الله دي. ددوی کنیت ابوعبدالله دي. د دوی مختصر حالات بدءالوحی دویم حدیث لاندې (۳) اوتفصیلی حالات کتاب الإیمان باب من الدین الفرارمن الفتن د وړاندې حدیث لاندې ذکرکولې شي. (۴)

**عبدالله بن أبي بكر**: داعبدالله بن ابی بکر مدنی انصاری رحمه الله دي. امام احمدبن جنبل رحمه الله فرمائی ((حدیثه شفاء)) ددوی حالات کتاب الوضوء باب الوضوء مرتین مرتین لاندې تیرشوی دی.

**أبوبكربن محمدبن عمرو بن حزم**: دا ابوبکر بن محمدبن عمرو بن حزم انصاری خزرجی نجاری مدنی رحمه الله دي. ابوبکرد دوی نوم دي اوبعض حضراتودوی کنیت ابومحمد ذکرکړې دي. ددوی حالات کتاب العلم باب کیف یقبض العلم لاندې تیرشوی دی. (۵)

**عمرة بنت عبدالرحمن**: دامشهوره تابعیه ابوالرجال محمدبن عبدالرحمن مور حضرت عمره بنت عبدالرحمن بن سعیدیا سعد بن زراره انصاریه مدنیه رحمهاالله ده. داحضرت عائشه رضي الله عنها په لاس کښې لویه شوې ده. (۶) د حضرت عائشه رضي الله عنها احادیث دټولو نه زیات پیژندونکې ده. (۷)

**عائشة**: دا ام المؤمنین حضرت سیده عائشه بنت ابی بکر صدیق رضي الله عنها ده. ددوی حالات ((بدءالوحی)) ددویم حدیث لاندې تفصیلاً تیرشوی دی. (۸)

## شرح حدیث

**قوله:: إن صفية بنت حيي**: صفية (بفتح المهملة وكسر الفاء وتشديد التحتانية) بنت حيي (بضم المهملة وبالتحتانيتين، الأول مفتوحة والثانية مشددة) ابن أخطب (بفتح الهمزة والخاء المعجمة وإهمال الطاء) النضرية (بفتح النون وسكون الضاد المعجمة).

**د حضرت صفیه بنت حیی تعارف**: دحضرت صفیه بنت حیی بن اخطب رضي الله عنها نسب د حضرت موسی علیه السلام رور حضرت هارون علیه السلام سره ملاویږی. د فتح خیبر په موقع باندې د مال غنیمت په توګه

---

(۱) کشف الباری: ۲۸۹/۱.
(۲) کشف الباری: ۱۱۳/۴.
(۳) کشف الباری: ۲۹۰/۱.
(۴) کشف الباری: ۸۰/۲.
(۵) کشف الباری: ۶۹/۴.
(۶) الکاشف: ۵۱۴/۲ تهذیب الکمال: ۲۴۱/۳۵ تهذیب التهذیب: ۳۸۹/۱۲.
(۷) کتاب الثقات لابن حبان: ۲۸۸/۵.
(۸) کشف الباری: ۲۹۱/۱.

دحضورپاك لاس ته راغله حضورپاك هغه آزاده كړه اوورسره ئې نكاح اوكړه اودهغې آزادي ئې دهغې حق مهر مقرر كړو. دې نه لس احاديث نقل دي په كوم كښې چه يوحديث امام بخاري رحمه الله روايت كړې دې. علامه واقدي رحمه الله فرمائي چه ددې انتقال د حضرت معاويه رضي الله عنه په دور خلافت كښې ۳۶هجري كښې شوې.(۱)

**قوله: لعلها تحبسنا:** دلته لعل دترجي دپاره نه دې بلكه يا خود استفهام په معنى كښې دې چه آيا اوس به هغه مونږ دتلو نه منع كوي؟ يا بيا دتردد پيدا كولو په معنى كښې دې اويا بيا ظن اوګمان، يا هم ددې په شان معنى كښې دې. يعنى ښكاري چه هغه به مونږ منع كړي، يازما ګمان دې چه هغه به مونږ منع كوي.(۲)

اوددې جملې مطلب دادې حضورپاك ته چه كله دصفيه بنت حيي رضي الله عنها دحيض متعلق خبر وركړې شو نو حضورپاك د استفهام يا دتردد اوګمان په توګه دا اووئيل چه ښكاري اوس به هغه مونږ دمكې نه مديني طرف ته د واپس تلو نه منع كوي. ځكه چه طواف ركن (افاضه اوزيارت) فرض دې اوتركوې چه هغه پاكه شوې نه وي اوطواف زيارت ئې نه وي كړې مونږ به هم هغې سره حصاريږو. خو چه بيا كله رسول الله صلى الله عليه وسلم د طواف زيارت متعلق تپوس اوكړو نوحضورپاك ته اوخودلې شو چه او جي هغوى طواف زيارت ادا كړې دې نوبيا حضورپاك اوفرمائيل چه كله فرائض اداشوى دي نو اوس په واپسئ كښې هيڅ حرج نشته دې.(۳)

**قوله: طافت:** دلته دطواف نه مراد طواف زيارت دې او بعض نسخوكښې دطاقت په ځائې د أفاضت لفظ استعمال شوې دې يعنى هغې تاسو ښځوسره طواف افاضه ادا نه كړو؟ طواف ته طواف افاضه طواف ركن او طواف زيارت هم وائي.(۴)

**قوله: فقالوا:** يعنى دې ښځو اودوى سره چه ددوى محرم خپلوان وو هغوى اووئيل خودا توجيه صحيح نه ده ځكه چه په دې كښې مؤنث په مذكر باندې غالب كول دي.(۵)

علامه كرماني رحمه الله فرمائي «فقالوا: أي: قال الناس» يعنى خلقو اووئيل ګني د سياق كلام تقاضاداده چه دلته فقلن د جمع مؤنث صيغه يا بيا فقلنا د جمع متكلم صيغه كيدل پكاردي.(۶)

علامه عيني رحمه الله فرمائي چه بهتر توجيه داده چه د "قالوا" معنى "قال الحاضرون هناك" سره اوكړې شي اوبنكاره شان خبره ده چه دې حاضرين كښې سړي هم وو او ښځې هم.(۷)

**قوله: فاخرجي:** اكثر روات هم دغه شان مفرد مؤنث مخاطب په صيغه سره روايت كړې دې. دمستملي رحمه الله اوكشميهني رحمه الله په روايت كښې "فاخرجن" د جمع مؤنث مخاطب صيغه ده.(۱)

---

۱) شرح الكرماني: ۲۰۳/۳عمدة القاري: ۴۶۳/۳إرشادالساري: ۳۶۳/۱.

۲) شرح الكرماني: ۲۰۳/۳عمدة القاري: ۴۶۳/۳منحة الباري: ۶۶۰/۱.

۳) حواله بالا.

۴) شرح الكرماني: ۲۰۳/۳عمدة القاري: ۴۶۳/۳منحة الباري: ۶۶۰/۱.

۵) عمدة القاري: ۴۶۴/۳.

۶) شرح الكرماني: ۲۰۳/۳ منحة الباري: ۶۶۰/۱.

۷) عمدة القاري: ۴۶۳/۳إرشادالساري: ۳۶۳/۱.

**د فاخرجي مخاطب څوک دی؟**: فاخرجی دمفرد مؤنث مخاطب صیغه کیدو په صورت کښې به توجیه داشی چه حضورپاك دغائب نه دحاضر طرف ته التفات فرمائیلی دی اوحضرت صفیه بنت حیی رضي الله عنها ئی حاضره ګڼرلوسره هغې ته د روانیدو حکم ورکړی دی. یا بیا دلته خطاب هم حضرت عائشه رضي الله عنها ته دی ځکه چه دحضرت صفیه بنت حیی رضي الله عنها باره کښې خبر ورکونکې هم حضرت عائشه رضي الله عنها وه. په دی وجه حضورپاك خطاب هم هغې ته اوفرمائیلو چه ځنې دمکې نه دمدینې طرف ته روانیږئی. ځکه چه کله تاسو خروج اوکړئی نو ښکاره خبره ده چه بیا به دصفیه بنت حیی رضي الله عنها دپاره هم دلته حصاریدل تیك نه وی ځکه چه فرض خوهغې هم اداکړی دی لهذا ستاسو په روانیدو به هغه هم روانه شی. دې نه علاوه یوه بله توجیه هم بیان کړې شوې ده اوهغه داده چه دلته کلام مقدر دې اوتقدیری عبارت داسې دې: «قال النبی صلی الله علیه وسلم لعائشة: قولي لها: اخرجی» (٢)او دویم صورت "فاخرجن" سیاق موافق دې. (٣)علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دلفظ "فاخرجن" په شروع کښې موجود فاء کښې درې احتماله دی. رومبې احتمال دادې چه دا فاء د أما مقدره په جواب کښې دې اوتقدیری عبارت داسې دې: «أما أنت فاخرجی کما یخرج غیرك» دویم احتمال دادې چه دا فاء زائده ده اودریم احتمال دادې چه ددې جملې عطف په جمله محذوفه باندې دې دکوم تقدیری عبارت چه دادې: «اعلمی أن ما علیك التأخر، فاخرجی»(٤)

**د حدیث باب نه مستفاد امور**: شراح کرامو ددې حدیث لاندې لیکلی دی چه په دې حدیث کښې دا لاندینو دریو امورو باندې دلیل دې ① دحائضه نه طواف وداع ساقط دې ② طواف افاضه رکن دې د کوم اداکول چه ضروری دی ③ طواف افاضه د چانه هم ساقط نه دې نه د حائضه نه اَونه د بل چانه. (٥) لهذا که په یوه ښځه باندې د طواف افاضه د اداکولونه وړاندې حیض راغلو نوهم به هم هلته انتظارکوی تردې چه هغه پاکه شی اوبیا طواف افاضه اداکړی اوکه چرې څوك حائضه د طواف زیارت نه وړاندې خپل وطن ته واپس شوه نود طواف زیارت نه کولو په وجه نه به هغه هم محرمه پاتې وی ترکومې چه هغه طواف زیارت ادانه کړی. (٦)

بل په صحیح مسلم کښې دی: «قالت صفیة: ما أرانی إلا حابستکم. قال: عقری حلقی أو ما کنت طفت یوم النحر؟ قالت: بلی، قال: لابأس، انفري» ددې په شرح کښې علامه نووی رحمه الله فرمائی چه کله حضرت صفیه بنت حیی رضي الله عنها ته د طواف وداع نه وړاندې حیض راغلو نوحضرت صفیه رضي الله عنها اوفرمائیل چه اوس زما دپاره طواف کول ممکن نه دی ځکه چه دهغې ګمان دا وو چه د حائضه نه هم طواف وداع ساقط نه

---

(١) عمدة القاری: ٤٦٣/٣ شرح الکرمانی: ٢٠٣/٣ إرشادالساری: ٣٦٣/١ منحة الباری: ٦٦٠/١

(٢) عمدة القاری: ٤٦٤/٣ شرح الکرمانی: ٢٠٣/٣ إرشادالساری: ٣٦٣/١.

(٣) حواله بالا.

(٤) عمدة القاری: ٤٦٤/٣.

(٥) شرح الکرمانی: ٢٠٣/٣عمدة القاری: ٤٦٤/٣ منحة الباری: ٦٦٠/١فتح الباری لابن رجب: ١٧٢/٢ شرح النووی علی صحیح الإمام مسلم: ٨١/٩-٨٠.

(٦) شرح الکرمانی: ٢٠٣/٣عمدة القاری: ٤٦٤/٣ منحة الباری: ٦٦٠/١فتح الباری لابن رجب: ١٧٢/٢ شرح النووی علی صحیح الإمام مسلم: ٨١/٩-٨٠.

دي. ليکن چه کله حضورپاك ته خبر اوشو اوحضورپاك دهغې نه د يوم النحرد طواف تپوس اوکړو نوحضرت صفيه رضي الله عنها په اثبات کښې جواب ورکړو په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل «يکفيك ذلك» يعنې بس بياخودا طواف رکن ستاد پاره کافي دې. ځکه چه طواف رکن خو حضرت صفيه رضي الله عنها ادا کړې وو. لهذا هغه ئې اوس په ذمه باقي پاتې نه شو اوطواف وداع د حيض په وجه ساقط شو.[1]

د دې روايت نه داهم معلومه شوه چه حديث: «لاينفرن أحد حتى يكون آخر عهده بالبيت» نه دحائضه مسئله مستثنى ده ځکه چه په حائضه باندې طواف وداع نشته دې اوداهم معلومه شوه چه د محرم دپاره بغيرد طواف زيارت نه دمکې نه وتل جائزنه دی. لهذا که څوك بغيرد اداکولونه اوځي نوحلال کيږي به هم نه ترکومې چه واپس رانه شي او طواف زيارت ادانه کړي.[2]

علامه عيني رحمه الله فرمائي چه که ښځه د طواف زيارت کولونه وړاندې دمکې نه لاړه نوهميشه به محرمه پاتې وي ترکومې پورې چه طواف نه کوي. دهغې خاوند دې سره جماع هم نه شي کولې. البته د جماع نه علاوه به په نوروامورو کښې هغه محرمه نه شميرلې کيږي.[3]

**حديث اوترجمة الباب کښې مناسبت:** حديث اوترجمة الباب کښې مناسبت واضح دې اوهغه داسې چه په ترجمة الباب کښې د طواف افاضه نه پس دښځې حائضه کيدو عنوان قائم کړې شو اوبيائې په حديث کښې دحضرت صفيه رضي الله عنها واقعه ذکرکړه چه هغې ته هم د طواف افاضه نه پس حيض راغلې وو يعنې په ترجمة الباب اوحديث دواړو کښې دطواف افاضه نه پس دښځې د حائضه کيدو ذکر دې.[4]

## الحديث الثاني

[۳۲۳]- حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: «رُخِّصَ لِلْحَائِضِ أَنْ تَنْفِرَ إِذَا حَاضَتْ»

۳۳۰- وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ: "فِي أَوَّلِ أَمْرِهِ إِنَّهَا لاَ تَنْفِرُ، ثُمَّ سَمِعْتُهُ يَقُولُ: «تَنْفِرُ، إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ لَهُنَّ»"[5] [۱۲۲۸، ۱۷۷۱، ۱۷۷۲]

**ترجمه:** حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه دحائضه دپاره (چه هغې طواف زيارت اداکړې وي) رخصت دې که چرې هغه حائضه شوې ده نوهغه دې کورته ځي. حضرت ابن عمر رضي الله عنهما به په شروع

---

[1]) شرح النووى على صحيح الإمام مسلم: ۱۵۳/۸شرح الكرماني: ۲۰۳/۳منحة الباري: ۱/۶۶۰ فتح الباري لابن رجب: ۱۷۲/۲عمدة القاري: ۴۶۴/۳.

[2]) أعلام الحديث للخطابي: ۳۳۱/۱-۳۳۰شرح الكرماني: ۲۰۳/۳ فتح الباري لابن رجب: ۱۷۲/۲ عمدة القاري: ۴۶۴/۳ .

[3]) عمدة القاري: ۴۶۴/۳

[4]) عمدة القاري: ۴۶۳/۳.

[5]) قوله: عن ابن عباس: الحديث رواه البخاري ى الحج أيضاً باب إذا حاضت المرأة بعد ما أفاضت، رقم الحديث: ۱۷۶۱-۱۷۶۰ومسلم فى الحج باب وجوب طواف الوداع وسقوطه عن الحائض رقم الحديث: ۳۲۲۰وجامع الأصول فى أحاديث الرسول الكتاب الأول فى الحج والعمرة الباب الرابع فى الطواف والسعي، الفصل الثاني، الحكم الخامس فى طواف الوداع: ۲۰۳/۳رقم الحديث: ۱۴۸۷.

کښې په دې مسئله کښې دافرمائيل چه هغې له نه دی تلل پکار. بيا ما هغه داسې ونيلوسره واؤريدو چه ځی دې ځکه چه رسول الله ﷺ هغې ته رخصت ورکړې دې.

## تراجم رجال

**معلی بن أسد**: دا ابوالاسود بهزاسد کشر رور الحافظ الحجة ابوالهيثم معلی بن اسد العمی بصری رحمه الله دې.[1]

هغوی د عثمان بن بزيع، سلام بن ابي مطيع، سلام ابی المنذر القاري، ابوزياد شبيب بن مهران القسملی، عبدالله بن المثنی، وهيب بن خالد، يزيدبن زريع، حماد بن زيد او عبدالعزيز بن المختار رحمهم الله وغيره نه حديث روايت کړی.

اوددوی نه امام بخاری، امام مسلم، امام ترمذی، امام نسائی امام ابن ماجه، حجاج، احمدبن يوسف السلمی، سليمان بن معبد، حفص بن عمرسنجه، ابومحمددازمی، عثمان دارمی، هلال بن العلاء، علي بن عبدالعزيزبغوی اواحمدبن الحسن ترمذی رحمهم الله وغيره حديث روايت کوی.[2]

ابوحاتم رحمه الله فرمائی ثقة. نور فرمائی چه ما سواد يوحديث نه په بل يوحديث کښې د دوی نه څه غلطی نه ده ليدلې.[3] امام عجلی رحمه الله فرمائی: «**شيخ بصري ثقة كيس وكان معلماً**»[4] علامه ذهبی رحمه الله فرمائی «**كان من الأئمة الأثبات**»[5] مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائی ثقة.[6] مسعود بن الحکم رحمه الله فرمائی «**ثقة مأمون**»[7]. ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دی.[8]

ابن حبان رحمه الله دهغوی تاريخ وفات ۲۱۸ هجری ذکرکړې دې.[9] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د ابن حبان رحمه الله نه علاوه ابن قانع اوقراب هم دغه تاريخ وفات خودلې دې. خو خليفه رحمه الله ددوی تاريخ وفات ۲۱۹ هجری خودلې دې.[10]

**وهيب**: دا وهيب بن خالد بن عجلان بصری باهلی رحمه الله دې. ددوی حالات **كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال** لاندې تيرشوی دی.[11]

**عبدالله بن طاؤوس**: دا ابومحمد عبدالله بن طاؤوس بن کيسان بن اليمان الابناوی رحمه الله دې.[12]

---

[1]) سير أعلام النبلاء: ۶۲۶/۱۰ تهذيب التهذيب ۲۸۲/۲۸ الكاشف فی معرفة من له الرواية فی الكتب الستة: ۲۸۱/۲ دار القبلة.

[2]) تلامذه اوشيوخ دپاره اوګورئی تهذيب الكمال: ۲۸۳/۲۸-۲۸۲ تهذيب التهذيب: ۲۳۶/۱۰.

[3]) الجرح والتعديل: ۳۳۵/۸.

[4]) معرفة الثقات للعجلی: ۲۸۹/۲.

[5]) سير أعلام النبلاء: ۶۲۶/۱۰

[6]) تهذيب التهذيب: ۲۳۶/۱۰.

[7]) حواله بالا

[8]) ۱۸۲/۹.

[9]) حواله بالا.

[10]) تهذيب التهذيب: ۲۳۷/۱۰.

[11]) کشف الباری: ۱۱۸/۲.

[12]) تهذيب الكمال: ۱۳۰/۱۵ تهذيب التهذيب: ۲۶۷/۵ سير أعلام النبلاء: ۱۰۳/۶ الجرح والتعديل: ۱۰۵/۵.

هغوی د خپل پلار طاؤوس بن کیسان،عطاء بن ابی رباح،عکرمه بن خالد مخزومی،عکرمه مولی ابن عباس،عمرو بن شعیب، علی بن عبدالله بن عباس،محمدبن ابراهیم بن الحارث،وهب بن منبه، ابوبکربن محمدبن عمروبن حزم اوسمان بن یزید رحمهم الله د حدیث روایت کړې دې.
اوددوی ابراهیم بن میمون صنعانی،ابراهیم بن نافع مکی، ایوب سختیانی، حماد بن زید ،روح بن القاسم،محمدبن اسحاق بن یسار،دهغوی دواړه خامن طاؤوس بن عبدالله بن طاؤوس اومحمدبن عبدالله بن طاؤوس،عبدالملك بن جریج،معمربن راشد، سفیان ثوری او سفیان بن عیینه رحمهم الله دحدیث روایت کوی.[1] امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی ثقة.[2] امام نسائی رحمه الله فرمائی ثقة.[3] معمر رحمه الله فرمائی: «**ما رأیت ابن فقیه مثل ابن طاؤوس**»[4] نورفرمائی: «**کان من أعلم الناس بالعربیة وأحسنهم خلقاً**»[5] ابن حبان رحمه الله د دوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[6] امام عجلی رحمه الله فرمائی ثقة.[7] علامه ذهبی رحمه الله دهغوی دپاره «**الإمام المحدث الثقة**»غوندې کلمات استعمال کړی دی.[8]
ابن حبان رحمه الله فرمائی چه ددوی انتقال دایوب سختیانی رحمه الله نه یو کال پس شوې دې. اودې دالله تعالی د ډیر صاحب فضل او عبادت ګذارو بندیګانونه وو[9] هیثم بن عدی فرمائی چه ددوی انتقال دابوالعباس په دورکښې شوې دې اوابن عیینه فرمائی ددوی انتقال ۱۳۲هجری کښې شوې[10]

**طاؤوس بن کیسان**: دا طاؤوس بن کیسان الیمانی الحمیری رحمه الله دې. دې د ابناء فارس نه دې. ددوی باره کښې عمرو بن دینار رحمه الله فرمائی«**لا تحسبن أحد أصدق لهجة منه**»[11] ددوی انتقال ۱۰۶هجری کښې شوې اوبعض حضرات فرمائی چه د ۱۰۶ هجری نه پس نی انتقال شوې.[12] د دوی حالات **کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء إلا من المخرجین** لاندې تیرشوی دی.

**ابن عباس**: دا ترجمان القرآن د رسول الله ﷺ د تره خونی حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دې. ددوی مختصر حالات د **بدء الوحی** څلورم حدیث لاندې او تفصیلی حالات **کتاب الإیمان باب کفران العشیر** لاندې تیر شوی دی.[13]

## شرح حدیث

[1]) تلامذه اوشیوخ ذپاره اوګورئی تهذیب الکمال:۱۳۱/۱۵تهذیب التهذیب:۲۶۷/۵.
[2]) الجرح والتعدیل: ۱۰۶/۵.
[3]) تهذیب الکمال:۱۳۱/۱۵تهذیب التهذیب:۲۶۷/۵.
[4]) تهذیب الکمال:۱۳۱/۱۵تهذیب التهذیب: ۲۶۷/۵سیر أعلام النبلاء: ۱۰۳/۶عمدة القاری:۴۶۴/۳.
[5]) حواله بالا.
[6]) ۴/۷.
[7]) معرفة الثقات للعجلی:۳۸/۲.
[8]) سیر أعلام النبلاء: ۱۰۳/۶.
[9]) کتاب الثقات لابن حبان: ۴/۷.
[10]) تهذیب الکمال: ۱۳۱/۱۵ تهذیب التهذیب:۲۶۷/۵.
[11]) تهذیب الکمال: ۳۵۹/۱۳-۳۵۷تهذیب التهذیب:۸/۵
[12]) تهذیب الکمال: ۳۷۴/۱۳تهذیب التهذیب:۱۰/۵-۹ تقریب التهذیب: ۲۸۱/۱.
[13]) کشف الباری: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دلته د حضرت ابن عباس او حضرت ابن عمر رضی الله عنهم آثار د حدیث باب معنی او مراد دنورو واضحه کولوپه غرض سره نقل کړی دی.(۱)

**قوله:: أن تنفر**: تنفر" بكسر الفاء وضمها، دواړه شان لوستلې شی لیکن ډیر فصیح په کسره سره دې. (۲)

او أن مصدریه دې چه د رفع په محل کښې واقع دې اوتقدیری عبارت داسې دې: ((أي: رخص لهن النفور)) یعنی حائضه ښځې د طواف وداع نه بغیر خپل وطن ته د واپس تلو رخصت او اجازت دې. (۳)

**قوله:: رخص**: په صیغه مجهول، شراح حدیث فرمائی چه رخصت د شریعت هغه حکم دې چه د عذر د وجې نه خلاف دلیل ثابت دې، اود بعض وینا ده رخصت هغه امرمشروع دې دکوم مشروع کیدل چه د څه عذر دوجې نه کیږی اودهغې محرم هم قائم او باقی وی. که چرې عذر نه وې نو هغه امر به مشروع هم نه وې.(۴) اوعذر یوداسې وصف دې چه په مکلف باندې جاری کیدوسره دهغه دپاره په حکم کښې د آسانتیا سبب جوړیږی.(۵)

**قوله: وكان ابن عمر يقول**: داد طاؤوس بن کیسان کلام دې اوپه سندمذکوره کښې داخل دې. (۶)

**قوله:: في أول أمره**: یعنی ترکومې چه عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته داحدیث نه وو رسیدلې هغه به په خپل اجتهاد سره د هر یو د پاره دعدم جواز د رجوع قائل وو چه څوك به هم د طواف وداع نه بغیر د مکې نه نه شی واپس کیدې. (۷)

**قوله:: ثم سمعته يقول**: یعنی طاؤوس بن کیسان رحمه الله فرمائی چه بیاما حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما داسې وینا کولوسره واؤریدو چه که حائضه طواف رکن کړې وی نودمکې نه خپل وطن ته واپس تلې شی.مقصد داخودل دی چه عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دخپلې سابقه فتوې نه رجوع کړې وه. (۸)

**قوله:: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم**: داد حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دکلام حصه ده او په دې کښې د سابقه فتوی نه د رجوع علت بیا کړې شوې دې. دکوم مفهوم چه دادې ترکومې پورې چه عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته روایت نه وو رسیدلې هغوی په خپل اجتهاد سره فتوی ورکړه خوچه کله حدیث رسول صلی الله علیه وسلم ورواورسیدو اوهغه دده اجتهاد سره ټکرو خوړلو نوهغه د خپلې فتوې نه رجوع

---

(۱) عمدة القاری: ۴۶۴/۳.
(۲) عمدة القاری: ۴۶۵/۳،شرح الکرمانی:۲۰۴/۳،ارشادالساری:۳۶۳/۱.
(۳) عمدة القاری: ۴۶۵/۳،شرح الکرمانی:۲۰۴/۳،ارشادالساری:۳۶۳/۱.
(۴) عمدة القاری: ۴۶۵/۳،شرح الکرمانی:۲۰۴/۳.
(۵) عمدة القاری: ۴۶۵/۳،شرح الکرمانی:۲۰۴/۳.
(۶) عمدة القاری: ۴۶۵/۳،فتح الباری: ۴۲۷/۱،شرح الکرمانی:۲۰۴/۳.
(۷) عمدة القاری: ۴۶۵/۳،فتح الباری: ۴۲۷/۱،شرح الکرمانی:۲۰۴/۳.
(۸) عمدة القاری: ۴۶۵/۳،فتح الباری: ۴۲۷/۱،شرح الکرمانی:۲۰۴/۳.

اوکړه. اويا بيا حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما چرته بل يوصحابي د حضورپاك نه د حائضه باره کښې رخصت اواجازت بيانولوسره واوريدو نوبيائې د خپلې فتوې نه رجوع اوکړه. (۱)

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حديث اوترجمة الباب کښې مناسبت واضح دې چه په دواړو کښې دحائضه دپاره د طواف وداع نه وړاندې دمکې نه دواپس تلو رخصت اواجازت ذکر دې. (۲)

# ۲۸ - باب: إِذَا رَأَتِ الْمُسْتَحَاضَةُ الطُّهْرَ.

**ماقبل سره ربط:** ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه باب سابق کښې دحيض سره متعلق احکام بيان کړې شوی او اوس په دې باب کښې د مستحاضه سره متعلق احکام بيانولې شی. (۳)

## د ترجمة الباب مقصد:

**دعلامه تيمی رحمه الله وغيره رائې:** شراح حضرات دترجمة الباب مقصدسره متعلق مختلف اغراض بيان کړی دی. چنانچه علامه تيمی رحمه الله فرمائی په دې ترجمة الباب سره دامام بخاری رحمه الله مقصددا خودل دی که چرې ښځه په دم حيض اودم تمييزکښې فرق کولې شی نوچه څنګه هغه دم استحاضه وينی نوغسل به کوی اوخپل مونځ به کوی. امام بخاری رحمه الله استحاضه په طهرسره تعبيرکړې ده څکه چه دم استحاضه ددم حيض په نسبت هم د طهر زمانه دې لکه څنګه چه حکم د طهردې هم هه شان حکم د استحاضه هم دې. هم دا قول علامه کرمانی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله هم اختيارکړې دی. (۴)

**په ذکرشوې رائې باندې دعلامه عينی رحمه الله نقد:** ليکن علامه عينی رحمه الله ددې رائې نه اختلاف کړې دې اودائې مخدوش ګرځولې ده. دکوم وړومبې وجه ئې چه داخودلې ده، ترجمة الباب دطهر په حق کښې منصوص دې دکوم حقيقت چه انقطاع دم دې. خود دغه پوته ذکر شوی قول او رائې نه معلوميږی چه ددغه ښځې وينه جاری ده مګر دا چه هغه ښځه په دې باندې قادر ده چه دم حيض اودم استحاضه کښې فرق اوکړې شی اوښکاره خبره ده چه دا مراد د طهرد حقيقت خلاف دې.

دويمه وجه ئې داخودلې چه دې حضراتو طهر استحاضه ګرځولې ده کوم چه مجاز دې اوحقيقت دادې چه دلته د مجاز اختستو هيڅ داعيه نشته دې اونه ددې څه فائده شته.

دريمه وجه داده چه هغوی خپله رائې د سياق په اوفق يعنی زياته موافق ونيلې ده خوددوی رائې د بخاری رحمه الله د مقصد برعکس ده.

**دعلامه عينی رحمه الله رائې:** بلکه اوفق للسياق دادې چه دلته د امام بخاری رحمه الله مقصد داخودل دی که چرې مستحاضه دا اووينی چه دهغې وينه بنده شوې ده (سره ددې چه دا بنديدل اود وينې منقطع کيدل دساعة يعنی يو ساعت دپاره وی)، نوهغه به غسل کوی اومونځ به کوی. د امام بخاری رحمه الله مقصد هم دامعنی بيانول دی او هم په دې باندې د دليل په توګه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول او اثر پيش کړې دې کوم چه دترجمة الباب عين موافق دې. (۵)

---

(۱) عمدة القاری: ۴۶۵/۳ شرح الکرمانی: ۲۰۵-۲۰۴/۳ منحة الباری: ۶۶۱/۱ فتح الباری: ۴۲۷/۱.

(۲) هذا من يستفاد من عمدة القاری: ۴۶۵/۳.

(۳) عمدة القاری: ۴۶۵/۳.

(۴) شرح الکرمانی: ۲۰۵/۳ فتح الباری: ۴۲۹/۱ الکنزالمتواری: ۳۰۲/۳ شرح ابن بطال: ۴۶۱/۱.

(۵) عمدة القاری: ۴۶۵/۳.

**د شيخ الحديث زكريا رحمه الله بيان كړي شوي درې احتمالات:** شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائي چه زما په نيز په دې ترجمة الباب كښې درې احتمالات دي اودريواړه احتماله هم په خائې مراد كيدې شي ځكه چه په دې كښې هيڅ شك نشته دې چه امام بخاري رحمه الله په خپل تراجم كښې ډير لطائق اودقائق بيان كړې دي. رومبې احتمال دادې چه د امام بخاري رحمه الله مقصد د اقل طهر په مسئله كښې دائمه د اختلاف طرف ته اشاره كول دي اود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د اثردسياق اوسباق نه معلوميږي چه د امام بخاري رحمه الله خيال په دې مسئله كښې دعدم تحديدطرف ته دې چه د اقل طهر څه حدنشته دې هغه يوساعت هم كيدې شي.(۱)

**د اقل طهر مسئله:** چنانچه علامه كرماني رحمه الله اوعلامه عيني رحمه الله فرمائي چه د اقل طهر مسئله مختلف فيه ده اوددې اثرابن عباس رضي الله عنهما نه معلوميږي چه د ابن عباس رضي الله عنهما په نيزطهر يوساعت هم كيدې شي. خو ائمه ثلاثه امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نيز دراجح قول په اعتبار اقل طهردپنځلسو ورځو دې اود امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز اقل طهر ديارلس ورځې دي.(۲)

امام ابوثور رحمه الله محاملي رحمه الله اوقاضي ابوالطيب رحمه الله اقل طهر د پنځلسو ورځوكيدوباندې اجماع نقل كړې ده. ليكن علامه نووي رحمه الله فرمائي چه د اجماع قول صحيح نه دې ځكه چه دامام احمدبن حنبل رحمه الله په دې كښې اختلاف مشهوردې اوبيا دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په نيزهم اقل طهر يوساعت دې.(۳) حضرت شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائي چه ددې رومبې توجيه طرف ته د ابن عباس رضي الله عنهما د اثر الفاظ "ولوساعة" سره اشاره كيږي. (۴)

دويمه توجيه داده چه په دې ترجمة الباب سره دامام بخاري رحمه الله مقصد دمسئله استظهار په حواله سره په مالكيه باندې ردكول دي. مسئله د استظهار دمالكيه په نيز يوه مشهوره مسئله ده. دكوم تفصيل چه دادې د مالكيه په نيز دعادت اعتبارنشته بلكه دتمييز بالون اعتباردې. اوس كه يوه ښځه داسې وي چه د رنګونو په ذريعه فرق نه شي كولې نودهغې دپاره حكم دادې چه دغه ښځه به دمعتاد ايام نه پس درې ورځې انتظاركوي (په دې شرط چه د وينې بنديدل پنځلسوورځو نه زيات نه شي) كه په دريو ورځوكښې دننه وينه راغله نودا به د شاته وينې يوه حصه شميرلوسره په حيض كښې داخل ګڼړي اوكه چرې وينه د دريو ورځونه پس راغله نوبيا به هغه دغه وخت مستحاضه ګڼړلې شي.

دامام مالك رحمه الله نه علاوه دباقي ائمه ثلاثه په نيزدمسئله استظهار هيڅ اعتبار نشته اودائمه ثلاثه مذهب داحاديث مرفوع نه ثابت دې. خومسئله داستظهار په احاديث مرفوعه سره ثابته نه ده بلكه ددې د ثبوت دپاره صرف يو اثر دې اوهغه هم ضعيف دې.(۵) چنانچه ابن رشد مالكي رحمه الله فرمائي:

---

(۱) الكنزالمتواري:۳/۳۰۲الأبواب والتراجم:۶۷

(۲) شرح الكرماني: ۳/۲۰۵عمدة القاري:۳/۴۶۶ الكنزالمتواري: ۳/۳۰۳-۳۰۲الأبواب والتراجم: ۶۷

(۳) المجموع شرح المهذب: ۲/۴۰۵ عمدة القاري:۳/۴۶۶ الكنزالمتواري: ۳/۳۰۳-۳۰۲الأبواب والتراجم: ۶۷

(۴) الكنزالمتواري: ۳/۳۰۳الأبواب والتراجم: ۶۷

(۵) حواله بالا.

((وأما الاستظهار الذي قال به مالك بثلاثة أيام، فهو شيء انفرد به مالك وأصحابه وخالفهم في ذلك جمهور فقهاء الأمصار، ماعدا الأوزاعي، إذ لم يكن لذلك ذكر في الأحاديث الثابتة وقد روي في ذلك أثر ضعيف)).[1]

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائي چه ددې دویمې توجیه طرف ته د ترجمة الباب الفاظ ((إذا رأت الطهر)) سره اشاره ملاویږي د کوم مطلب چه دادې د طهر لیدلونه پس به نوردځه ځیز انتظارنه کوی بلکه (داثر نه ثابتیږي چه) غسل به کوی اومونځ به کوی.[2]

دریمه توجیه داده چه دامام بخاری رحمه الله په هغه حضراتو باندې ردکول دي چه مستحاضه سره جماع کولو ته ممنوع وائي او ددې توجیه طرفته دابن عباس رضي الله عنهما داثر الفاظ (یأتیها زوجها) سره اشاره ملاویږي.[3]

**مستحاضه سره د جماع کولوحکم:** دا مسئله هم یوه مشهوره اختلافي مسئله ده. ابن رشد رحمه الله فرمائي په دې مسئله کښې درې اقوال دي.① بعض حضرات مستحاضه سره جماع کول جائز ګرځوي اوهم دا دمشهور فقهاؤ مذهب دې. اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه علاوه د تابعینو د یولوئي جماعت نه هم د جواز قول نقل دې.

② بعض حضرات ئې مطلقاً منع کوي اوعدم جوازدا قول دحضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل دې اوابراهیم نخعي رحمه الله او امام حکم رحمه الله هم ددې قائل دی.

③ د دریم جماعت مذهب دې چه مستحاضه سره جماع کول خو جائزنه دی لیکن که استحاضه اوږده شي (اوداخاوند په فتنه کښې داختنه کیدو خطره وي) نوبیا جائز ده.[4]

امام بیهقي رحمه الله فرمائي چه د حضرت عائشه رضي الله عنها نه د عدم جواز قول صحیح نه دې بلکه په حقیقت کښې داد امام شعبي رحمه الله قول دې کوم چه بعض راویانو دحضرت عائشه رضي الله عنها دحدیث لاتدې داخل کړې. چنانچه علامه نووي رحمه الله فرمائي: ((ذکر البیهقي وغیره: أن نقل المنع عن عائشة رضي الله عنها لیس بصحیح عنها، بل هو قول الشعبي، أدرجه بعض الرواة في حدیثها)).[5] یعني امام بیهقي رحمه الله وغیره ذکرکړي دی چه دعدم جواز دقول نسبت دحضرت عائشه طرف ته صحیح نه دې، بلکه دا دامام شعبي رحمه الله قول دې کوم چه بعض روات دحضرت عائشه رضي الله عنها په حدیث کښې درج کړې دې.

علامه عیني رحمه الله فرمائي چه مستحاضه سره جماع کول چه وینه جاري وي جائز ده. هم دغه د جمهور علماؤ مذهب دې اوابن المنذر رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما، تابعین یو لوئي جماعت او امام اوزاعي، امام ثوري، امام مالك، امام اسحاق، امام ابوحنیفه او امام شافعي رحمه الله نه هم دغه قول حکایت کړې دې اودلیل د سنن ابي داود روایت کوم چه جید سندسره نقل دې: ((أن حمنة کانت مستحاضة وکان زوجها یأتیها)) یعني حضرت حمنه رضي الله عنها مستحاضه وه اودهغې خاوند به په دې حالت کښې (هم) جماع کوله.

لیکن حضرت عائشه رضي الله عنها دعدم جواز قائل ده هغه فرمائي ((لا یأتیها)) اوهم دغه قول دامام نخعي، امام حکم، امام زهري، امام شعبي رحمهم الله اختیارکړې دې. ابن سیرین رحمه الله مستحاضه سره جماع کولوته مکروه وئیلي دي. امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دعدم جواز قائل دې مګر دوو شرطونوسره، اول

[1]) بدایة المجتهد: ۵۱/۱ مطبعة مصطفی البابي الحلبي وأولاده، مصر، موقع مکتبة المدینة الرقمیة.
[2]) الأبواب والتراجم: ۶۷ الکنز المتواري: ۳۰۳/۳.
[3]) الکنز المتواري: ۳۰۳/۳ الأبواب والتراجم: ۶۷
[4]) بدایة المجتهد: ۶۳/۱ المجموع شرح المهذب: ۴۰۰/۲-۳۹۹.
[5]) المجموع شرح المهذب: ۴۰۰/۲.

شرط دادې چه استحاضه اوږده نه وی اودویم شرط دا چه دخاوند په فتنه کښې اخته کیدو خطره نه وی ګنی جماع کولې شی.(۱) البته امام موفق رحمه الله دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه مطلقاً د اباحت او جواز روایت نقل کړې دې. (۲)

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی زما په نیز د دې دریو احتمالاتو اوتوجیهاتو نه آخری توجیه ډیره بهتردې اوددې وجه دا ده امام په ترجمة الباب کښې هیڅ یوحکم نه دې ذکر کړې .......... نی صرف "إذا" سره ذکرکړو اوبیانی د دې په جواب کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما اثر پیش کړو او بیانی ددغه اثر د تائیددپاره "الصلاة أعظم" اوفرمائیل. لکه چه امام بخاری رحمه الله دمستحاضه دپاره دمونځ کولوجواز اخستل دمستحاضه سره د جماع کولو جواز ثابتول غواړی. چه کله دمونځ په شان د عظیم څیز مستحاضه ته اجازت دې نوکوم چه ددې نه کمتردې یعنی جماع کول نوهغه خو به په طریق اولی جائز وی. اوهم دغه وجه ده چه د ابن عباس رضی الله عنهما د اثر نه پس دحضرت عائشه رضی الله عنها روایت پیش کړو په کوم کښې چه د فاطمه رضی الله عنها قصه ذکرده او په دې کښې هغې ته د مونځ کولو حکم ورکړې شوې دې. اود امام بخاری رحمه الله داصول تراجم په حواله دا معروف اومشهور دی چه هغه بعض وخت تراجم د اولیت په طریقه باندې ثابتول کوی. (۳)

**د شیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله بیان کړې شوې یوبله توجیه:** شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه یوه بل توجیه هم ممکن ده اوهغه دا چه امام بخاری رحمه الله د یوې مشهورې اختلافی مسئلې طرف ته اشاره کول غواړی کومه چه طهر متخلل سره متعلق ده. امام بیهقی رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنهما په دغه پورته ذکرشوی اثرباندې: «باب المرأة تحيض يوماً وتطهر يوماً» ترجمه او عنوان قائم کړې دې. ددې په شرح کښې ابن الترکمانی رحمه الله فرمائی د اصح قول مطابق دامام شافعی رحمه الله په دې مسئله کښې مذهب دادې که چرې وینه په یوڅو ورځو یا ددې نه په کمه موده کښې بنده شی نو ټول په ټول به حیض شمیرلې شی. (۴) علامه نووی رحمه الله دامام شافعی رحمه الله نه په دې مسئله کښې دوه اقوال نقل کړی دی یوقول خو هم دغه دې کوم چه د ابن الترکمانی رحمه الله په حواله سره ذکرشو او دویم قول دادې چه په کومو ورځوکښې حیض راغلو هغه به په حیض کښې شمیرلې شی او په کومو ورځوکښې چه پاکه پاتې شوه هغه به طهر شمیرلې کیږی لیکن اکثر اصحاب د ړومبی روایت تصحیح کړې ده اوهم هغه د امام شافعی رحمه الله سره منصوص دی.

ددې دواړو اقوالونه ړومبی قول قول السحب سره تعبیرکړې شوې دې او دویم قول قول التلفیق سره تعبیرکړې شوې دې. امام نووی رحمه الله فرمائی چه قول التلفیق امام مالک رحمه الله اوامام احمد رحمه الله اختیارکړې دې او قول سحب امام ابوحنیفه رحمه الله او امام شافعی رحمه الله اختیارکړې دې.(۵)

ابن قدامه رحمه الله د تلفیق په قول باندې د ابن عباس رضی الله عنهما د اثر (مذکورالباب) نه استدلال کړې دې. د شوافع او احناف دلیل دادې چه وینه هروخت جاری نه وی بلکه کله جاری وی اوکه منقطع وی. په دې

---

(۱) عمدة القاری: ۴۶۶/۳المجموع شرح المهذب: ۴۰۰/۲-۳۹۹.

(۲) المغنی لابن قدامة: ۳۸۷/۱.

(۳) الکنزالمتواری: ۳۰۴/۳-۳۰۳الأبواب والتراجم:۶۷.

(۴) الکنزالمتواری: ۳۰۴/۳الأبواب والتراجم:۶۷ السنن الکبری وفی ذیله الجوهر النقی: ۳۴۰/۱.

(۵) المجموع شرح المهذب: ۴۱۵/۲، ۴۱۷، ۴۱۸ مکتبة الإرشاد الأبواب والتراجم: ۶۷ الکنزالمتواری: ۳۰۴/۳.

وجه داونیل چه په کومو ورځو کښې وینه راغله هغه د حیض ورځې او په کومو ورځوکښې چه وینه رانغله هغه د طهر ورځې دی، صحیح نه دی. [1] او په ظاهره دامام بخاری رحمه الله خیال هم په دې مسئله کښې د تلفیق والاقول طرف ته معلومیږی په کوم چه د ابن عباس رضي الله عنهما د اثر نه علاوه د حدیث الباب نه هم استدلال واضح دې ځکه چه اقبال دم او ادبار دم دواړه هرحال ته شامل دی که د اقبال دم په صورت کښې دم قلیل وی ، حائضه مونځ نه شی کولې اوکه دادبار دم په صورت کښې انقطاع دم قلیل وی یا کثیر غسل به کوی او مونځ به کوی. [2]

**دعلامه رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله رائې:** علامه رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه د ټولونه بهتر توجیه داده «المستحاضة إذا طهرت» نه مراد دادې چه کله دحیض موده تیره شی نوبیا ښځه د دغه مودې تیریدونه پس به نور د څه ځیز انتظار نه کوی بلکه غسل به کوی اومونځ به کوی. که هر وخت په ورځ کښې یا په شپه کښې هغه موده پوره شوې وی یا که دورځې په آخری ساعت کښې نوده پوره شوې وی نوبیابه هم هغه د بل څه ځیز انتظارنه کوی. لیکن که ظاهری مطلب مراد واخستې شی چه په ایام حیض کښې کله هم اوکوم وخت هم هغه پاکه شی یعنی وینه بنده شی هغه به غسل کوی اومونځ به کوی. نودا مفهوم دابن عباس رضي الله عنهما د شان عالی نه ډیر نه لرې دې چه هغه به په ایام حیض کښې د لږ ساعت دپاره وینه بندیدو باندې دغه ښځې ته د مونځ کولو حکم ورکړی. علامه رشید احمد ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه د ایام حیض خبره ځکه اوکړې شوه ځکه چه په ایام استحاضه کښې د یوساعت دپاره د وینې په اودریدو غسل کول او بیامونځ کولو حکم ورکول نه صرف بعید دی بلکه ابعددی. ځکه چه ایام استحاضه کښې خو مونځ په طهر او انقطاع دم باندې موقوف نه دې بلکه په ایام استحاضه کښې خو سره ددې چه وینه جاری وی نوبیا هم نه د مونځ نه منع والې شته اونه د روژې نه. [3]

**قَالَ: ابْنُ عَبَّاسٍ: تَغْتَسِلُ وَتُصَلِّي وَلَوْسَاعَةً، وَيَأْتِيهَا زَوْجُهَا إِذَا صَلَّتْ، اَلصَّلَاةُ أَعْظَمُ.**

یعنی ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه غسل دې کوی اومونځ دې کوی سره ددې چه دا پاکوالې د یوساعت دپاره وی اوکله چه هغه مونځ کولې شی نود هغې خاوند په درجه اولی هغې له راتلې شی.

**د تعلیق مقصد:** د پورته ذکرشوی تعلیق نه دامام بخاری رحمه الله مقصد هم هغه دې اومرادنی هم هغه دې دکوم تفصیل سره چه د ترجمة الباب مقصد د عنوان لاندې بیان کړې شوې دی.

**تخریج:** دا تعلیق محدث ابوبکر اب ابی شیبه رحمه الله خپل مصنف کښې «**إسماعيل بن علية عن خالد عن أنس بن سيرين**» په طریق سره د ابن عباس رضي الله عنهما نه موصولاً روایت کړې دی. د روایت الفاظ دادی: «**عن أنس بن سيرين قال: استحيضت امرأة من آل أنس، فأمروني، فسألت ابن عباس؟ فقال: أما مارأت الدم البحراني، فلاتصلي، وإذارأت الطهر ولوساعة من النهار، فلتغتسل ولتصلي**»

یعنی انس بن سیرین رحمه الله فرمائی چه د آل انس یوې ښځې ته استحاضه اوشوه، نوهغې ماته ددې مسئله د حکم معلومولودپاره اووئیل، چنانچه ما د ابن عباس رضي الله عنهما نه دمسئلې تپوس اوکړو. نوهغوی اوفرمائیل: ترکومې چه هغه د پوخ رنګ وینه اووینی نومونځ دې نه کوی اوکله چه طهر اووینی سره ددې چه د ورځې د یوساعت دپاره وی نوغسل دې کوی اومونځ دې اوکړی.

---

[1] المغنی لابن قدامة: ۳۹۹/۱الأبواب والتراجم ص: ۶۷الکنزالمتواری: ۳۰۴/۳.

[2] الکنزالمتواری: ۳۰۴/۳الأبواب والتراجم:۶۷

[3] لامع الدراری: ۲۸۸/۲-۲۸۶الکنزالمتواری: ۳۰۶/۳-۳۰۵.

## دتعليق شرح

**قوله:: وياتيها زوجها**: دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل شوي دويم اثر دې اودا محدث عبدالرزاق رحمه الله په خپل سندسره دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه موصولاً نقل کړې دې. روايت دادې: «عبدالرزاق عن ابن المبارك عن الأجلح عن عكرمة عن ابن عباس قال: لا بأس أن يجامعها زوجها» يعنى ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه په دې خبره کښې هيڅ حرج نشته چه مستحاضه سره خاوند جماع اوکړى.

مجوزين جماع (مع المستحاضه) فرمائى چه دم استحاضه د دم حيض په شان "أذى" (تکليف) نه دې لکه څنګه چه الله تعالى حيض د وصف "أذي" سره متصف کړې دې اونه دا د روژې او مونځ نه مانع دې نوبيا د وطى اوجماع نه هم مانع نه دې.(1)

**قوله:: إذا صلت**: علامه عينى رحمه الله فرمائى چه ددې جملې تعلق «ويأتيها زوجها» سره نه دې بلکه دا يوه خان له اومستقل جمله ده اوددې په جواب کښې دوه قوله دى: رومبې قول د کوفيين د مذهب په اعتبار سره دې اوهغه دادې چه د "إذا صلت" جواب شاته جمله يعنى «تغتسل وتصلى» ده اود کوفيانو دې مذهب په اعتبار سره به تقديرى عبارت داسې شى: «المستحاضة إذا صلت، يعني يئت: إذا أرادت الصلاة تغتسل وتصلى» اودويم قول د بصريين دمذهب په اعتبارسره دې اوهغه دادې چه ددې جواب محذوف دې دکوم چه تقديرى عبارت داسې دې: «إذا صلت تغتسل وتصلى».(2)

**قوله:: الصلاة أعظم**: دا د مبتدا او خبر ملاويدوسره جوړه شوې جمله ده چه د يومقدر سوال جواب معلوميږى. سوال دادې چه مستحاضه سره دهغې خاوند جماع کولې شى؟ نوجواب ورکړې شو "الصلاة أعظم" يعنى مونځ د جماع نه لوئى اوعظيم تر دې اوچه کله دمستحاضه دپاره د مانځه اجازت دې نود جماع اجازت به په طريقه اولى وى.(3)

**مستحاضه سره د جماع جواز د لزوم په طريقه**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه "الصلاة أعظم" په ظاهره دا بحث د امام بخارى رحمه الله د طرف نه دهاومقصدنى جماع دلزوم په ذريعه ثابتول دى چه کله مونځ د استحاضه دپاره اداکول جائز دى نولازماً به جماع کول هم جائز وى. ځکه چه دمونځ معامله دجماع دمعامله نه لويه ده. او هم په دې وجه امام بخارى رحمه الله دې پسې فوراً حديث عائشه رضي الله عنها پيش کړو په کوم کښې چه فاطمه بنت جيش رضي الله عنها (چه مستحاضه وه)، ته د مونځ کولوحکم ورکړې شوې دې.(4) البته د بعض شراح حضراتووينا ده چه "الصلاة أعظم" هم د ابن عباس رضي الله عنهما دتيرشوى کلام حصه ده اوداد ابن ابى شيبه رحمه الله د تخريج طرف ته منسوب کړې شوې ده ليکن په مصنف ابن ابى شيبه کښې د ابن عباس رضي الله عنهما په حواله سره ددې خبرې تذکره موجودنه ده.(5) او البته په مصنف عبدالرزاق

---

1) التوضيح: ١٤١/٥عمدة القارى: ٤٦٦/٣شرح الكرمانى: ٢٠٥/٣إرشادالسارى: ٣٦٣/١شرح ابن بطال: ٤٦١/١.

2) عمدة القارى: ٤٦٦/٣.

3) عمدة القارى: ٤٦٦/٣.

4) فتح البارى: ٤٢٩/١.

5) حواله بالا

کښې د سعیدبن جبیر رحمه الله نه یوروایت نقل دې په کوم کښې چه ددې مسئلې ذکردې اوهغه روایت دادې «عبدالرزاق عن الثوري عن سالم الأفطس عن سعيد بن جبير أنه سأله عن المستحاضة، أتجامع؟ الصلاة أعظم من الجماع» (۱)

**دمذکوره اثر ترجمة الباب سره مناسبت:** دابن عباس رضي الله عنهما ددې اثر ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې چه ترجمة الباب کښې سوال ذکرکړې شوې دې چه کله مستحاضه طهر اووینی نوڅه به کوی او په دې اثرکښې د سوال جواب ورکړې شوې دې چه غسل دې کوی اومونځ دې کوی. (۲)

# الحديث الأول

[۳۲۳]- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، عَنْ زُهَيْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا أَقْبَلَتِ الحَيْضَةُ، فَدَعِي الصَّلاَةَ، وَإِذَا أَدْبَرَتْ، فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ وَصَلِّي» (۳).[ر ۲۲۶]

**ترجمه:** دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلې دې چه کله دحیض ورځې راشی نومونځ پریږدئی اوکله چه د حیض ورځې تیرې شی نود ځان نه وینه پاکه کړئی اومونځ کوئی.

## تراجم رجال

**أحمدبن یونس:** دا احمدبن عبدالله بن یونس بن عبدالله بن قیس تمیمی یربوعی کوفی رحمه الله دې. ابوعبدالله ددوی کنیت دې د دوی د پلار نوم عبدالله دې لیکن دنیکه طرف ته په نسبت سره یعنی احمدبن یونس سره مشهوردې. ددوی حالات كتاب الإيمان باب من قال أن الإيمان هو العمل لاندې تیرشوی دی. (۴)

**زهیر:** دا زهیر بن معاویه بن حدیج (بضم الحاء المهملة والفتح الدال المهملة وبالجيم) بن الرحيل (بضم الراء المهملة وفتح الحاء المهملة) بن زهیر بن خیثمه جعفی کوفی رحمه الله دې. ددوی کنیت ابوخیثمه دې. ددوی حالات كتاب الإيمان باب الصلاة من الإيمان لاندې تیرشوی دی. (۵)

**هشام:** داهشام بن عروة بن الزبیر بن قرشی مدنی اسدی رحمه الله دې. دده کنیت ابوالمنذر دې. او بعض حضراتو ددوی کنیت ابوعبدالله ذکرکړې دې. د دوی مختصر حالات بدءالوحي دویم حدیث لاندې (۱) اوتفصیلی حالات كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تیرشوی دی. (۲)

---

(۱) مصنف عبدالرزاق کتاب الحیض باب المستحاضة هل یصیبها زوجها... الخ: ۳۱۰/۱ رقم الحدیث: ۱۱۸۷ فتح الباری: ۴۲۹/۱.

(۲) التوضیح: ۱۴۱/۵ وفتح الباری: ۴۲۹/۱ وعمدة القاری: ۴۶۶/۳ وهوالمفهوم مماذکرت تحت غرض الإمام البخاری من ترجمة الباب ملخصاً من شروح البخاری.

(۳) مرتخریجه فی نفس الکتاب، فی باب الاستحاضة.

(۴) کشف الباری: ۱۵۹/۲.

(۵) کشف الباری: ۳۶۷/۲.

**عائشة**: دا ام المؤمنين سيده عائشه بنت ابی بکر الصديق رضي الله عنها ده. د دوی حالات بدء الوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی. (٣)

**شرح حديث**

دا حدیث د حضرت فاطمه بنت ابی جیش رضي الله عنها دهغه اوږد حدیث اختصاردې په کوم کښې چه د مستحاضه دپاره امر صلاة یعنی دمونځ کولو د حکم تصریح ده.(٤) داحدیث دباب استحاضه لاندې تیرشوې دې اوددې ټول مباحث هم ماقبل کښې تیرشوی دی.

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه په ترجمة الباب کښې ذکر کلمه "إذا" یا خو ظرف دې اویا بیا شرط دې. که چرې ظرف وی نوددې دپاره بیا دعامل ضرورت دې اوکه چرته شرط وی نو بیا د جزاء ضرورت دې. او دلته نه عامل موجود دې اونه جزا موجود ده. نوبیا په حدیث باندې ترجمة الباب سره څنګه دلالت ممکن دې؟ بیائی هم پخپله جواب ورکولوسره اوفرمائیل چه "إذا" د ظرفیت په معنی کښې دې اومطلب دادې چه دا باب د مستحاضه دحکم په بیان کښې دې کوم وخت چه هغه طهر اووینی او په حدیث کښې دداسې صورت حکم ذکر شوې دې چه څنګه حیض ختم شی اوطهر اووینی نو په دې باندې مونځ کول واجب کیږی. (٥)

## ٢٩ - باب: الصَّلَاةِ عَلَى النُّفَسَاءِ وَسُنَّتِهَا.

**ماقبل سره ربط**: علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د دې باب سابقه باب سره هیڅ مناسبت نشته دې بلکه امام بخاری رحمه الله داباب په کتاب الحیض کښې بغیرد څه مناسبت نه ذکر کړې دې. د دې باب مناسبت په حقیقت کښې کتاب الجنائز سره دې. (٦)

**د ترجمة الباب مقصد**: شراح حضراتو لیکلی دی چه ددې ترجمة الباب نه دامام بخاری رحمه الله مقصد دوه خبرې خودل دی. یوه خبره داده چه که چرته د یوې ښځې انتقال د نفاس په حالت کښې اوشی نوبیا به هم دهغې د جنازې مونځ کولې شی او بله خبره په هغې باندې د جنازې کولو طریقه خودلې ده. دلته حدیث الباب سره ددې چه دترجمة الباب مطابق دې مګر سوال دادې چه په کتاب الحیض کښې د جنازې دمونځ وغیره بیان څه موقع ده؟

**دعلامه عینی رحمه الله رائې**: چنانچه علامه عینی رحمه الله خو په دې باره کښې دا فیصله کړې ده چه دا ترجمة الباب بې محل راوړلې شوې دې. اوددې صحیح موقع کتاب الجنائز وه. او دویمه خبره دا ده چه ددې باب سابقه باب سره هم څه مناسبت نشته دې. حالانکه په ابواب کښې د خپل مینځمی مناسبت تعلق مطلوب وی. (٧)

---

(١) کشف الباری: ٢٩١/١.
(٢) کشف الباری: ٤٣٢/٢.
(٣) کشف الباری: ٢٩١/١.
(٤) عمدة القاری: ٤٦٧/٣ فتح الباری: ٤٢٩/١ إرشاد الساری: ٣٦٤/١.
(٥) شرح الکرمانی: ٢٠٦/٣-٢٠٥ عمدة القاری: ٤٦٧/٣.
(٦) عمدة القاری: ٤٦٧/٣.
(٧) عمدة القاری: ٤٦٧/٣ الکنز المتواری: ٣٠٨/٣.

**دعلامه ابن بطال رحمه الله رائې:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائي چه د امام بخاری رحمه الله مقصد ددې ترجمة الباب نه دادې چونکه د نفاس والا ښځه مونځ وغیره نه شي کولې په دې وجه عین ممکن دی چه د چاذا خیال راشي چه بیا خو به ددې جنازه هم کوې شي. نوامام بخاری رحمه الله ددې خیال د لرې کولودپاره په دې ترجمة لباب اوحدیث باب کښې دا اوخودل چه په دې مسئله کښې د نفاس والاښځې حکم دنورو پاکو ښځو په شان دې چه د ټولو طهارت عین اوذات سره متصف دې یعنې د ذات په اعتبارسره د نفاس والاښځه هم دپاکو ښځو په شان ده او نجاست خو صرف عارضي او حکمي دې. په دې وجه حضورپاك د نفاس په حالت کښې د وفات شوې ښځې جنازه اوکړه.

بل په دې سره ددې خبرې هم رد اوشو مؤمن سره ددې چه په ذاتي اعتبار سره پاك وی مګر هر بنیادم د مرګ راتلو سره ناپاك شي ځکه چه که چرې داسې خبره وې نو حضورپاك به دنفاس والاښځې جنازه څنګه کوله؟ نجاست دم خود اول نه وو بیا دې سره د مرګ نجاست هم جمع شو اومرګ نجاست دم نور هم مستقر اوبوخ کړو. نوچه کله حضورپاك د داسې مړې جنازه کړې ده اوداسې ئې دهغې د طاهرکیدو حکم اولګولو نودداسې مړې جنازه چاسره چه نور څه نجاست دم وغیره نهوی په درجه اولی جائز شوه او په هغه باندې به په طریقه اولی د طاهر کیدو حکم لګولې شی. (۱)

**دعلامه رشیداحمدګنګوهی رحمه الله رائې:** علامه رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله فرمائي چه دامام بخاری رحمه الله مقصد دا وهم لرې کول دی چونکه د نفاس والاښځه نجس وی ځکه چه شریعت په دې باندې حکم لګولې دې چه نه به هغه مونځ کوی نه به هغه روژې نیسی اونه هغه جمات ته داخلیدې شی اود جنازې دمونځ شرائطوکښې دی چه مړې دې پاك وی، په دې وجه به دهغې جنازه نه شی کولې. امام بخاری رحمه الله دا وهم رد کړو اووئې فرمائیل چه دداسې ښځې به هم جنازه کولې شی ځکه چه دحضورپاك نه په داسې ښځه باندې جنازه کول ثابت دی. (۲)

**د ابن منیر رحمه الله د ابن بطال رحمه الله په توجیه باندې نقد:** دعلامه ابن بطال رحمه الله په دې توجیه باندې نقد کولوسره ابن منیر رحمه الله وائي چه دا توجیه د امام بخاری رحمه الله مقصد سره تعلق نه لری بلکه دامام بخاری رحمه الله مقصد په دې ترجمة الباب سره دادې چه په حدیث کښې راغلی دی چه د نفاس په حالت کښې مړه کیدونکې ښځه شهیده وی نو عین ممکن دی چه د چا دګمان پیداشی چه بیا خو به ددې هم د شهیدپه شان جنازه نه شی کولې. نوامام بخاری رحمه الله دا وهم اوګمان رد کولوسره په دې باندې تنبیه اوکړه چه سره ددې چه د نفاس په حالت کښې مړه کیدونکې ښځه د شهداء نه ده مګر د دې باوجود به په داسې ښځه باندې جنازه کولې شي. ځکه چه د رسول الله ﷺ نه د نفاس په حالت کښې په مړه شوې ښځه باندې جنازه کول ثابت دی. (۳)

**د ابن رشید رحمه الله د ابن منیر رحمه الله په توجیه باندې نقد:** لیکن دابن منیر رحمه الله په ذکرکړې شوی توجیه باندې ابن رشید رحمه الله نقد کړې دې اوهغه دادې چه دابن منیر رحمه الله ذکر کړې شوې توجیه هم د ابن بطال رحمه الله د توجیه په شان د ابواب الحیض سره مناسبت نه لری بلکه دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه هغه د مونځ ذکرکولو سره د مونځ د لوازماتو نه یو لازم ثابتول غواړی اوهغه لازم دادې چه مونځ ددې خبرې تقاضا کوی چه په مانځه کښې مخې ته کیخودې شوې یا موجود څیز هم پاك وی چنانچه

---

(۱) شرح ابن بطال: ۱/٤٦٢-٤٦١عمدة القاری: ۳/٤٦٧فتح الباری: ۱/٤٣٠الکنزالمتواری: ۳/۳۰۸.
(۲) لامع الدراری: ۲/۲۹۰-۲۸۹.
(۳) فتح الباری: ٤٣٠/۱عمدة القاری: ٤٦٧/۳ الکنز المتواری: ۳۰۸/۳الأبواب والتراجم: ٦٧.

حضورپاك په دغه ښخه باندې اودهغې طرف ته چه كله مونځ اوكړو نو په دې سره ددې مړې (د نفاس په حالت كښې مړه كيدونكې ښځه) طاهر لعينها كيدل لازم راغله اوبيا د امام بخارى رحمه الله د ميمونه رضي الله عنها حديث په دې باره كښې ذكركول (لكه څنګه چه داصيلي په روايت كښې دى) هم ددې خبرې دليل دې چه دامام بخارى رحمه الله مقصد يولازم صلاة ذكركول دى. (١)

**د علامه عينى رحمه الله په دغه پورته ټولو توجيهاتو باندې نقد:** علامه عينى رحمه الله دغه ټول توجيهات غير صحيح ګرځولى دى. چنانچه د ابن بطال رحمه الله په توجيه باندې نقل كولوسره فرمائى چه داخبره په خپل ځائى باندې مسلم ده چه ذات او د بدن په طاهركيدو كښې دنفاس والا ښځه هم د نورو پاكو ښځو په شان ده څكه چه رسول الله ﷺ په داسې ښځه باندې مونځ كړې دې. ليكن مسئله داده چه ددې مقصد ابوالحيض سره څه مناسبت نشته دې. (٢)

د ابن منير رحمه الله په توجيه باندې نقد كولوسره اوفرمائيل چه دا توجيه د ابن بطال رحمه الله د پيش كړې شوې توجيه نه هم ډيره بعيد ده. څكه چه په مذكوره ګمان باندې چرته دتنبيه ضرورت هم پيښ شى نو په باب الشهيد كښې به راځى دلته په باب الحيض كښې ددې دذكركولو څه موقع نه ده. (٣)

او د ابن رشيد رحمه الله توجيه ئى د ټولو نه زياته بعيد توجيه اوګرځوله څكه چه په دې توجيه كښې د يوڅو غيرمناسب امورو ارتكاب شوې دې. رومبې امر دادې چه ابن رشيد رحمه الله مستقبل فى الصلاة يعنى په مانځه كښې مخې ته د موجود څيز طاهر كيدل شرط ګرځولې دې. ليكن سوال دادې چه آيا دا فرض دې يا واجب دى يا سنت دى اويا بيا مستحب دى؟ اودويم نامناسب كار دادې چه بغيرد ضرورت نه ئى لازم مراد اخستې دې يعنى دمونځ ذكركولوسره ئى لازم الصلاة مراد اخستې دې. او دريم غيرمناسب امر داشوې چه د ملازمت دعوى ئى كړې يعنى د يوڅيز دپاره ئى د بل څيز د لازم اوملزوم دعوى كړې ده كومه چه صحيح نه ده. (٤) لهذا ټول توجيهات بې محل دى اوحق خبره هم دغه ده چه دا باب كتاب الحيض كښې راوړل بې محل دى ددې اصل ځائى هم كتاب الجنائز دې. (٥)

**دشيخ الحديث زكريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرملئى چه بيشكه د ابن رشيد رحمه الله توجيه بعيد ده څكه چه په مانځه د يوڅيز طرف ته رخ كول اوتوجه كولوسره د هغه څيز پاك اوطاهركيدل لازم نه دى اوهم دغه شان دابن المنير رحمه الله توجيه اګرچه فى نفسه قابل د التفات ده مګر كتاب الحيض ددې محل نه دې. بلكه د هغې محل كتاب الجهاد يا كتاب الجنائز دې. كيدې شى چه هم په دې وجه امام بخارى رحمه الله دا ترجمة الباب په كتاب الجنائزكښې دوباره راواپس كړې دې ليكن ددې ټولو باوجود دعلامه عينى رحمه الله دا فرمائيل چه دا ترجمه بې محل راوړلې شوې ده د امام بخارى رحمه الله د جلالت شان خلاف دى. نو اوجه يعنى زياته مناسب توجيه هم دغه ده كومه چه علامه ابن بطال رحمه الله اوعلامه رشيداحمد ګنګوهى رحمه الله بيان كړې ده. البته په دې باندې دتكرار ترجمه اشكال كيدې شى مګر ددې جواب دادې چه دلته په كتاب الحيض كښې د مذكوره ترجمه ذكركولو مقصد دنفاس په حالت كښې په مړه كيدونكې ښځه باندې د جنازې مونځ كول ثابتول دى. څكه چه دا وهم كيدې شو

---

(١) فتح البارى: ١/٤٣٠ عمدة القارى: ٣/٤٦٧ الكنز المتوارى: ٣/٣٠٨ الأبواب والتراجم: ٦٧

(٢) عمدة القارى: ٣/٤٦٧ الكنز المتوارى: ٣/٣٠٨ الأبواب والتراجم: ٦٧

(٣) عمدة القارى: ٣/٤٦٧ الكنز المتوارى: ٣/٣٠٨ الأبواب والتراجم: ٦٧

(٤) حواله بالا.

(٥) حواله بالا.

چه د نفاس والا ښځه په نجاست حکمیه کښې مبتلا وی په دې وجه به ددې د جنازې مونځ نه شی کولې. نوامام بخاری رحمه الله د حضورپاك په عمل سره دا ثابت کړل چه هغه طاهرلعینها ده اونجاست حکمیه په مرګ سره ختم شوې دې. او په كتاب الجنائز کښې د جنازې مونځ کول ثابتولو مقصد هغه وهم لرې کول دی چه هغه خود شهداء نه ده لهذا ددې د جنازې مونځ به نه شی کولې ځکه چه د نفاس په حالت کښې مرګ شهادت حکمیه دې نوامام بخاری رحمه الله د حضورپاك په عمل سره اوخودل سره ددې چه هغه شهید حکمی ده مګر د جنازې په حق کښې هغه د غیرشهداء په شان ده. (۱)

**د ترجمة الباب دویم جز:** د ترجمة الباب په دویم جز کښې دنفاس والا ښځه باندې د جنازې دمونځ کولو مسنون طریقه بیان کړې شوې ده. شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه په دې دویم جز او مسئله باندې د ړومبی جز اوړومبئ مسئلې په نسبت زیات اشکال کیږی. ځکه چه ددې موقع اومحل هم كتاب الجنائز دې او په كتاب الجنائز کښې امام بخاری رحمه الله ددې دپاره باب راوړلې دې: «باب أين يقوم من المرأة والرجل» اوهم دغه حدیث حضرت سمره رضي الله عنه ذکر کړې دې لهذا دلته په كتاب الحيض کښې ددې مسئلې ذکر محض تکرار هم دې او بې محل هم. البته ددې اعتراض نه خلاصیدل په دې جواب سره ممکن دی چه امام بخاری رحمه الله دلته په دې امر باندې تنبیه کړې ده چه د جنازې مونځ ورکولو وخت کښې د نفاس والا ښځو او نورو ښځو څه فرق نشته تولې برابر دی. اوچه کله په خپل ځائې كتاب الجنائز کښې دا باب راشی نوهلته به د ښځو او سړو د جنازې سره متعلق مسئله قیام هم بیانیږی کومه چه دائمه په مینځ کښې یوه اختلافی مسئله ده. (۲)

## الحديث الأول

[۳۲۵]- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا شَبَابَةُ، قَالَ: أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ حُسَيْنٍ المُعَلِّمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ: «أَنَّ امْرَأَةً مَاتَتْ فِي بَطْنٍ، فَصَلَّى عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ وَسَطَهَا» (۳) [۱۲۲٦، ۱۲۲۷]

**ترجمه:** حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه نه روایت دې د یوې ښځې د خیټې د تکلیف د وجې نه د بچی پیدا په ایام کښې انتقال اوشو. حضورپاك ﷺ دهغې د جنازې مونځ اوکړو اود مانځه دپاره د مړی مینځ کښې اودریدو.

۱) الکنز المتواری: ۳۰۹/۳ الأبواب والتراجم: ٦۷ لامع الدراری: ۲۹۰/۲-۲۸۹.

۲) الکنز المتواری: ۳۰۹/۳ الأبواب والتراجم: ٦۷ لامع الدراری: ۲۹۰/۲-۲۸۹.

۳) قوله: سمرة بن جندب: الحديث رواه البخاری فی الجنائز أيضاً فی باب الصلاة على النفساء إذا ماتت فی نفاسها، رقم الحديث: ۳۳۱ وفی باب أين يقوم من المرأة والرجل رقم الحديث: ۱۳۳۲ ورواه الإمام مسلم فی الجنائز باب أين يقوم الإمام من الميت للصلاة عليه، رقم الحديث: ۳۱۹۵ والترمذی فی أبواب الجنائز باب ماجاء أين يقوم الإمام من الرجل والمرأة رقم الحديث: ۱۰۳۵ والنسائی فی الحيض باب الصلاة على النفساء رقم الحديث: ۳۹۳ وفی كتاب الجنائز باب الصلاة على الجنائز قائماً، رقم الحديث: ۱۹۷۸ وباب اجتماع جنائز الرجال والنساء رقم الحديث: ۱۹۸۱ وابن ماجه فی كتاب الجنائز باب ماجاء فی أين يقوم الإمام إذا صلى على الجنازة رقم الحديث: ۱٤۹۳.

## تراجم رجال

**احمدبن ابي سريج**: دا احمدبن الصباح النهشلي، ابوجعفر بن ابى سريج الرازى المقرى رحمه الله دي. بعض حضراتو ددوى نسب داسې بيان كړې دې: احمدبن عمر بن ابى سريج. د ابوسريج نوم الصباح دې اوداد خزيمه بن حازم آزادكړې شوې غلام دې. اوبعض فرمائى چه دا د آل جرير بن حازم آزادكړې غلام دې. د هغوى شمير په اهل بغداد كښې كيږي.[1]

هغوى د اسماعيل بن عليه، شبابه بن سوار، وكيع، مروان بن معاويه، يزيدبن هارون، يحيى بن سعيد، مكى بن ابراهيم بلخى اوعبدالله بن الجهم رحمهم الله نه د حديث روايت كړې او ددوى نه امام بخارى، امام ابوداود، امام نسائى، ابوالعباس احمدبن جعفر بن نصر الجمال الرازى، ابوالعلاء احمدبن صالح بن محمد، اسحاق بن احمدالفارسى، امام ابوزرعه او امام ابوحاتم رحمهم الله وغيره روايت كوى.[2]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى **صدوق**.[3] امام نسائى رحمه الله فرمائى **ثقة**.[4] ابن حبان رحمه الله دهغوى ذكر كتاب الثقات كښې كړې دې.[5] يعقوب بن شيبه سدوسى رحمه الله فرمائى: «**ابن أبى سريج: هذا أحد أصحاب الحديث...وكان ثقة ثبتاً**»[6] خطيب بغدادى رحمه الله فرمائى چه احمدبن الصباح النهشلى رحمه الله دمشهورقراء نه وو.هغوى دامام على بن حمزه الكسائى رحمه الله نه علم حاصل كړې. د بغداد علاقې مخرم اوسيدونكې وو. بيا مقام "رى" طرف ته منتقل شو او هلته د علم حديث په نشر اواشاعت كښې مصروف شو او بيا هم هلته دهغوى انتقال هم اوشو[7] ابوعبدالرحمن رحمه الله فرمائى«**أحمدبن الصباح الرازي ثقة**»[8] ابن خلفون رحمه الله فرمائى«**كان ثقة**»[9] مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائى«**موثقة**»[10] علامه مغلطائى رحمه الله فرمائى چه ابن خزيمه اوامام حاكم رحمهما الله دهغوى داحاديثو خپل صحيحين كښې تخريج كړې دې.[11]

ددوى انتقال د امام بخارى رحمه الله نه لږه موده پس شوې[12] علامه ذهبى رحمه الله فرمائى ددوى انتقال ۲۴۰ هجرى نه پس شوې.[1]

---

[1] تهذيب الكمال: ۳۵۶/۱-۳۵۵ تهذيب التهذيب: ٤٤/١.
[2] دتلامذه اومشائخ دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال: ۳۵۶/۱.
[3] الجرح والتعديل: ۱۶/۲.
[4] تهذيب الكمال: ۳۵۷/۱ تهذيب التهذيب: ٤٤/١.
[5] ۳۵/۸
[6] تهذيب الكمال: ۳۵۸/۱ تهذيب التهذيب: ٤٤/١.
[7] تاريخ بغداد: ۳۳۵/۵ رقم الحديث: ۲۱۶٤ دارالغرب الإسلامي.
[8] تاريخ بغداد: ۳۳۵/۵ رقم الحديث: ۲۱۶٤ دارالغرب الإسلامي.
[9] إكمال تهذيب الكمال: ۶۲/۱.
[10] حواله بالا.
[11] حواله بالا.
[12] تهذيب التهذيب: ٤٤/١ إكمال تهذيب الكمال: ۶۲/۱ تاريخ بغداد: ۳۳۵/۵ رقم الحديث: ۲۱۶٤ دارالغرب الإسلامي.

**شبابه بن سوار:** داابوعمرو شبابه بن سوار الفزاري المدائنی رحمه الله دې. دا اصلاً د خراسان اوسیدونکې وو بیا مدائن ته راغلو. هغوی په مدائن اوبغداد کښې درس حدیث ورکولو اوددوی اصل نوم مروان دې (۲) ابن عدی رحمه الله فرمائی چه شبابه ئی لقب دې اواصل نوم ئی مروان دې مګر لقب چونکه په اصل نوم باندې غالب وو په دې وجه هغوی په خپل لقب شبابه باندې مشهورروو.(۳)

هغوی د شعبه بن الحجاج، اسرائیل بن یونس بن ابی اسحاق السبیعی، حریز بن عثمان الرجي، خارجه بن مصعب خراسانی، شعیب بن میمون، عاصم بن محمدالعمری، عبدالله بن العلاء بن زبر، عمر بن میمون، مغیره بن مسلم السراج، نعیم بن حکیم مدائنی، ورقاء بن عمر یشکری اویحیی بن اسماعیل بن سالم کوفی رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کوی.

اوددوی نه امام احمدبن حنبل، احمدبن سنان القطان، ابراهیم بن سعیدجوهری، ابراهیم بن یعقوب جوزجانی، احمد بن ابراهیم دورقی، احمدبن الحسن بن خراش، احمدبن ابی سریج رازی، احمدبن عبدالله بن صالح عجلی، احمد بن الفرات رازی، اسحاق بن راهویه، حسن بن محمد بن الصباح زعفرانی، زکریا بن یحیی بن ایوب مدائنی، عباس بن محمدالدوری، عبدالله بن روح مدائنی، ابوبکر عبدالله بن محمد بن ابی شیبه، عبدالرحمن بن محمد بن سلام طرسوسی، عثمان بن محمدبن ابی شیبه، محمد بن عاصم اصبهانی، یحیی بن بشر بلخی، یحیی بن معین اویعقوب سدوسی رحمهم الله وغیره دحدیث روایت کوی. (۴)

ابن معین رحمه الله فرمائی ثقة. (۵) عثمان دارمی رحمه الله فرمائی چه ما دابن معین رحمه الله د شبابه عن شعبه باره تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائیل ثقة، بیا ما د شاذان باره تپوس اوکړو نوابن معین رحمه الله اوفرمائیل چه: «لابأس به» بیا ما دا سوال اوکړو چه په دواړو کښې ستاسو په نیز کوم یو زیات خوښ کړې شوې دې؟ نوئی فرمائیل: شبابة.(۶) ابن جنید رحمه الله فرمائی چه ماد یحیی بن معین رحمه الله نه تپوس اوکړو چه تاسو تفسیر ورقاء د چانه لیکلې دې؟ هغوی اوفرمائیل ما د شبابه بن سوار اوعلی بن حفص نه لیکلې او دواړه ثقه دی.(۷)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی: «صدوق یکتب حدیثه ولا یحتج به»(۸) امام علی المدینی رحمه الله فرمائی ثقة. (۹) عثمان بن ابی شیبه رحمه الله فرمائی: «صدوق، حسن العقل، ثقة» (۱) امام عجلی رحمه الله فرمائی: «کان یحفظ الحدیث» (۲) البته دهغوی باره کښې مشهور دی چه دوی د عقیدۀ ارجاء قائل وو چنانچه ابن سعد رحمه الله

---

(۱) سیرأعلام النبلاء: ۵۵۲/۱۱رقم الترجمة: ۱۶۴مؤسسة الرسالة.

(۲) تهذیب التهذیب: ۱۶۷/۲ تهذیب الکمال: ۳۴۴/۱۲-۳۴۳تاریخ بغداد: ۴۰۱/۱ رقم الحدیث: ۴۷۹۲سیرأعلام النبلاء: ۱۳/۹مؤسسة الرسالة.

(۳) الکامل فی ضعفاء الرجال: ۷۱/۵میزان الاعتدال: ۲۶۰/۲.

(۴) دتلامذه اومشائخ د پاره اوګورئی تهذیب الکمال: ۳۴۵/۱۲ تهذیب التهذیب: ۱۴۸/۲ تاریخ بغداد: ۴۰۱/۱۰.

(۵) تهذیب الکمال: ۳۴۶/۱۲ تهذیب التهذیب: ۱۴۸/۲ الکامل فی ضعفاء الرجال: ۷۱/۵.

(۶) حواله بالا.

(۷) تهذیب الکمال: ۳۴۶/۱۲ تهذیب التهذیب: ۱۴۸/۲ تاریخ بغداد: ۴۰۵/۱۰.

(۸) الجرح والتعدیل: ۳۹۲/۴.

(۹) الجرح والتعدیل: ۳۹۲/۴هدی الساری: ۵۸۰.

سعد رحمه الله د هغوی دپاره تعريفي كلمات استعمالولو نه پس داهم وئيلى دى چه دي دعقيدهٔ ارجاء قائل وو. هغه فرمائى: «كان ثقة، صالح الأمر في الحديث وكان مرجئاً» [3] امام عجلى رحمه الله فرمائى: «كان يرئ الارجاء» [4]

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى «تركته، لم أكتب عنه للإرجاء» يعنى ما د هغه د عقيدهٔ ارجاء د وجې نه دهغه نه دحديث كتابت پريخودې وو. دامام احمد رحمه الله نه تپوس اوكړې شو چه د ابومعاويه باره كښې دې څه رائې ده هغه خو هم د عقيدهٔ ارجاء قائل دې؟ نوهغوى اوفرمائيل چه شبابه بن سواربه د خپلې عقيدې طرف ته دعوت هم وركولو. [5]

ابن خراش رحمه الله فرمائى «كان أحمد لا يرضاه وهوصدوق في الحديث» [6] زكريا الساجى رحمه الله فرمائى «شبابة بن سوار صدوق، يدعو إلى رأي الإرجاء» [7] خو بل طرف ته ائمه حديث د دوى نه روايات اخستې هم دى اوددوى نه ئې دليل هم نيولې دې. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: «احتج به الجماعة» [8] اوعلامه ذهبى رحمه الله فرمائى: «يحتج به في كتب الإسلام، ثقة» [9] ابن عدى رحمه الله فرمائى چه درې روايات داسې دى دكوم په وجه چه په شبابه بن سوار باندې نكيراوكړې شو. په هغې كښې يومبې حديث دادې: «روى شبابة بن سوار عن شعبة عن بكير بن عطاء عن عبدالرحمن بن يعمر أن النبي صلى الله عليه وسلم نهي عن الدباء والمزفت» يعنى عبدالرحمن بن يعمر رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د كدو د لوښى نه اود تاركولو ملاؤ شوى د لوښى نه منع فرمائيلې ده. (ځكه چه په دې لوښو كښې شراب جوړيدل).

په دې حديث باندې اشكال دادې چه دې مسئله (حرمت دباء) په دغه پورتنى سندسره بغيرد شبابه بن سوار رحمه الله نه چاهم حديث نه دې روايت كړې بلكه په دې سندسره صرف د حج باب كښې يو روايت دې. چنانچه دابن عدى رحمه الله شيخ فرمائى: «ولا أعلم رواه عن شعبة في الدباء غير شبابة، وإنما روى شعبة بهذا الإسناد عن بكير بن عطاء عن عبدالرحمن بن يعمر في ذكر الحج» [10] يعنى ماته پته نه ده چه د حديث د شبابه بن سوار نه علاوه بل چا هم د امام شعبه رحمه الله نه روايت كړې دې، بلكه په حقيقت كښې امام شعبه رحمه الله "عن بكير بن عطاء عن عبدالرحمن بن يعمر" په سندسره صرف د حج په باب كښې يو حديث روايت كړې دې.

ابن رجب رحمه الله شرح العلل كښې فرمائى: «حديث شبابة عن بكير بن عطاء عن عبدالرحمن بن يعمر عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه نهي عن الدباء، والمزفت، فإن نهي النبي صلى الله عليه وسلم عن الانتباذ في الدباء والمزفت صحيح

---

[1] تهذيب التهذيب:١٤٨/٢ اهدى السارى: ٥٨٠.

[2] تهذيب التهذيب:١٤٨/٢.

[3] الطبقات الكبرى لابن سعد، آخر البصريين: ٣٢٠/٧ تاريخ بغداد ٤٠٦/١٠.

[4] معرفة الثقات للعجلى: ٤٤٧/١.

[5] تهذيب التهذيب: ١٤٨/٢ تهذيب الكمال: ٣٤٦/١٢ سير أعلام النبلاء:٥١٤/٩ ميزان الاعتدال:٢٦٠/٢.

[6] تهذيب الكمال: ٣٤٦/١٢ تهذيب التهذيب: ١٤٨/٢ تاريخ بغداد:٤٠٥/١٠.

[7] تاريخ بغداد: ٤٠٥/١٠.

[8] هدى السارى:٥٨٠.

[9] ميزان الاعتدال: ٢/٢٦١.

[10] الكامل فى ضعفاء الرجال:٥/٧٢-٧١.

ثابت عنه، رواه عنه جماعة كثيرون من أصحابه، وأما رواية عبدالرحمن بن يعمر عنه، فغريبة جداً، ولا يعرف إلا بهذا الإسناد، فردبها شبابة عن شعبة عن بكير بن عطاء عنه، وعند شعبة بهذا الإسناد عن عبدالرحمن بن يعمر عن النبي صلى الله عليه وسلم وأنه قال: "الحج عرفة" في حديث ذكره، فهذا المتن هو الذي يعرف بهذا الإسناد، وأما حديث النهي عن الدباء والمزفت، فهو بهذا الإسناد غريب جداً، وقد أنكره على شبابة جماعة من الأئمة، منهم الإمام أحمد والبخاري وأبوحاتم وابن عدي، وأما ابن المديني، فإنه سئل عنه، فقال: لا ينكر لمن سمع من شعبة..... يعني: حديثاً كثيراً.... أن ينفرد بحديث غريب».([1])

دابن رجب رحمه الله د كلام حاصل دادې چه دحضورپاك نه دكدو په لوښى كښې اوتاركول ملاؤشوى لوښى كښې د شرابو جوړولو ممانعت صحيح اوثابت دې. لكه چه داصحاب رسول ﷺ يولونى جماعت روايت كړې دې. ليكن دعبدالرحمن بن يعمر رضي الله عنه دحضورپاك نه دا حديث روايت كول ډير غريب دى كوم چه صرف «شبابة عن شعبة عن بيكر عن عبدالرحمن بن يعمر عن النبي صلى الله عليه وسلم» په سندسره معروف دې. يعنى شبابه بن سوار رحمه الله دې سند سره ددې په روايت كولوكښې منفرد دې. ځكه چه امام شعبه رحمه الله بكير عن عبدالرحمن بن يعمر په سندسره صرف حديث "الحج عرفة" روايت كړې دې. په دې سندسره صرف هم دغه يوحديث پيژندلې شى. په دې وجه د دباء اومزفت نه د ممانعت حديث په دې سند «شبابة عن شعبة عن بكيرعن عبدالرحمن بن يعمر» سره ډير غريب دې اوهم په دې وجه د ائمه رجال يولونى جماعت د شبابه بن سوار رحمه الله دا روايت منكرګرځولې دې. په كوم چه امام احمد، امام بخارى، امام ابوحاتم، او امام ابن عدى رحمهم الله وغيره شامل دى. البته د امام ابن المدينى رحمه الله نه چه كله د شبابه بن سوار رحمه الله ددې سندباره كښې تپوس اوكړو نوهغوى اوفرمائيل كوم سړى چه دامام شعبه رحمه الله نه ډير زيات احاديث روايت كړى دى په داسې سړى باندې به صرف په دې وجه انكار نه شى كولې چه هغه يوغريب حديث سره متفرددې.

چنانچه كله دا حديث پورتنى سندسره امام على المدينى رحمه الله مخې ته پيش كړې شو نوهغوى اوفرمائيل: «شبابة كان شيخاً صدوقاً إلا أنه كان يقول بالإرجاء ولا تنكر لرجل سمع من رجل ألفاً أو ألفين أن يجيئ بحديث غريب»

يعنى شبابه بن سوار رحمه الله علم حديث كښې د شيخ په مرتبه دې اوصدوق دې مګردا چه هغه دعقيدهٔ ارجاء قائل وو اومونږ په يوداسې راوى باندې چاچه دخپل استاذ نه زر دوه زره احاديث روايت كړې وى. په دې وجه نكير نه شوكولې چه هغه يو نيم غريب حديث روايت كړې دې. «د كوم په نقل كولوكښې چه هغه منفرددې».([2])

دويم حديث دادې: «أخبرنا أبويعلى، حدثنا أحمد الدورقي، حدثنا شبابة، حدثنا شعبة عن قتادة عن الحسن عن أنس أن النبي صلى الله عليه وسلم أتي برجل قد شرب الخمر، فضربه بجريدتين نحواً من أربعين» يعنى دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه حضورپاك له يو سړې راوستلې شو چاچه شراب ځكلې وو. نوحضورپاك هغه په دوو لختو سره څلويښتو نه نيزدې ګذاره اووهلو.

[1]) تعليقات على سيرأعلام النبلاء: ۹/۵۱۶-۵۱۵.

[2]) الكامل فى ضعفاء الرجال: ۵/۷۲.

پدې حديث باندې اشكال دادې چه ددې په سند كښې دحسن اضافه ده خود امام شعبه نورو شاګردانو ددې راوى د واسطې نه بغير نيغ په نيغه قتادة عن أنس په طريق سره حديث روايت كړې دې.[1]
د شرابو څكلو په سلسله كښې كورو لګولوسره متعلق داحديث شعبة عن قتادة عن أنس په طريق سره امام بخارى رحمه الله «كتاب الحدود، باب ماجاء فى ضرب شارب الخمر» كښې (۶۷۷۳) امام مسلم رحمه الله هم «كتاب الحدود، باب حدالخمر» كښې (۴۴۵۲) اودغه شان امام ترمذى رحمه الله هم «كتاب الحدود، باب ماجاء فى حدالسكران» كښې (۱۴۴۳) لاندې ذكر كړې دې.
حافظ ابن حجر رحمه الله دحديث دې سند سره متعلق په كوم كښې چه امام قتاده رحمه الله اودحضرت انس رضي الله عنه په مينځ كښې دراوى حسن اضافه كړې ده فرمائى: «إنه من المزيد فى متصل الأسانيد» يعنى داسند دهغه اسانيدونه دې په كوم كښې چه د راوى اضافه ده.[2]
دريم حديث دادې: «أخبرنا الحسن بن سفيان، حدثنا أحمد الدورقى، حدثنا شبابة، حدثنا شعبة عن عبدالله بن دينار عن ابن عمر أن النبى صلى الله عليه وسلم نهىٰ عن القزع» يعنى حضورپاك د قزع نه منع فرمائيلې ده. دقزع مطلب دادې چه د ماشوم د سرد بعض حصې نه ويښته پريكول او په بعض حصه باندې باقى پريخودل، نوحضورپاك ددې عمل نه منع فرمائيلې ده.
په دې حديث باندې هم دغه اشكال دې چه دا د امام شعبه رحمه الله نه شبابه بن سوار رحمه الله نه علاوه بل چانه دې روايت كړې. ددې رواياتود ذكركولونه پس په آخره كښې ابن عدى رحمه الله فيصله كولوسره فرمائى: «وشبابة عندي إنما ذمه الناس للإرجاء الذي كان فيه وأما فى الحديث فإنه لابأس به، كما قال على بن المدينى»[3] بل د امام ابوزرعه رحمه الله نه نقل دى چه شبابه بن سوار رحمه الله سره ددې چه دعقيدهٔ ارجاء قائل وو مګر هغه ددې خپلې عقيدې نه رجوع كړې وه.[4] اوس كه چرې دهغه رجوع دعقيدهٔ ارجاء نه ثابته ده نوبيا خودڅه قسم اشكال باقى نه پاتې كيږى اوكه چرې رجوع ثابته اونه منلې شى نوبيا هم شبابه بن سوار رحمه الله ته په حديث باب كښې تقريباً ټول ائمه حديث ثقه اوصدوق تسليم كړې دې. (كمامر)[5]
چنانچه ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[6] اوهغه ئې مستقيم الحديث ګرځولې دې.[7] علامه ذهبى رحمه الله فرمائى چه دهغه پيدائش ۱۳۰هجرى كښې شوې دې او انتقال په ۲۰۶ هجرى كښې شوې.[8] ابن حبان رحمه الله او امام بخارى رحمه الله دهغوى د وفات كال ۲۰۴ او ۲۰۵هجرى نقل كړې دې.[9]

---

[1] الكامل فى ضعفاء الرجال:۷۲/۵.
[2] الكامل فى ضعفاء الرجال:۷۲/۵.
[3] الكامل فى ضعفاء الرجال:۷۲/۵.
[4] ميزان الاعتدال: ۲۶۱/۲تاريخ بغداد: ۴۰۶/۱۰تهذيب التهذيب: ۱۴۸/۲تهذيب الكمال: ۳۴۸/۱۲هدى السارى: ۵۸۰ سيرأعلام النبلاء: ۵۱۴/۹.
[5] الرواة الثقات المتكلم فيهم بما لايوجب ردهم، ص: ۱۰۷ دارالبشائر الإسلامية.
[6] ۳۱۲/۸.
[7] حواله بالا.
[8] سير أعلام النبلاء: ۵۱۵/۹.
[9] كتاب الثقات لابن حبان: ۳۱۲/۸التاريخ الكبير: ۲۷۰/۴.

**شعبة:** دا امیرالمؤمنین شعبة بن الحجاج بن الوردعتکی واسطی بصری رحمه الله دي. ابوبسطام د دوی کنیت دي اوددوی په جلالت شان او امامت باندې دټولو اتفاق دي. ددوی حالات كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تیر شوی دی.[1]

**حسين المعلم:** دا حسين بن ذكوان مكتب معلم بصری رحمه الله دي ددوی حالات كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه لاندې تیرشوی دی.[2]

**عبدالله بن یزید:** دامشهور تابعی عبدالله بن بریده (بضم الباء الموحدة وفتح الراء وسكون الياء آخر الحروف وبالدال المهملة) ابن الحصيب (بضم الحاء وفتح لاصاد المهملتين وسكون الياء آخر الحروف وفى آخره باء مؤحدة) الاسلمی المروزی رحمه الله دي. ددوی کنیت ابوسهل دي د "مرو" قاضي پاتې دي. اودې اودده رور سلیمان بن بریده دواړه غبرگونی وو.[3]

دوی د خپل پلار بریده، ابن عباس، ابن عمر، ابن مسعود، عبدالله بن مغفل، ابوموسی اشعری، ابوهریره، حضرت عائشه، حضرت سمره بن جندب، عمران بن الحصین، حضرت معاویه، مغیره بن شعبه، بشیر بن کعب، حمیدبن عبدالرحمن حمیری، ابوالاسودالدئلی، حنظله بن علی الاسلمی، ابن المسیب بن یعمر رضی الله عنهم ورحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کړې.

اوددوی نه بشیر بن المهاجر، سهل بن بشیر، ثواب بن عتبه، حسین ذکوان، حسین بن واقد المروزی، داؤد بن ابی الفرات، دواړو ځامنو سهل بن عبدالله بن بریده اوصخر بن عبدالله بن بریده، عامر شعبی، عامراحول، عبدالله بن عطاء المکی، عبدالکریم بن سلیط بصری، عثنان بن غیاث، مالك بن مغول، مطر الوراق اوقتاده رحمهم الله وغیره حدیث روایت کوی.[4]

ابوبکر الاثرم رحمه الله فرمائی چه ما دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه د بریده د دواړو ځامنو عبدالله اوسلیمان باره کښې تپوس اوکړو نوامام احمدبن حنبل رحمه الله اوفرمائیل چه دسلیمان بن بریده باره کښې زما په زړه کښې هیڅ خبره نشته دي. (یعنی هیڅ د عیب څه خبره یا قابل تنقید څه خبره په هغه کښې نشته) اوترکومې چه تعلق دې د عبدالله بن بریده نو (د څه خاموشئی نه پس) وکیع رحمه الله فرمائی چه ائمه حدیث د عبدالله بن بریده په نسبت د سلیمان بن بریده زیات تعریف کولو.[5] او په یوروایت کښې دی چه وکیع رحمه الله اوفرمائیل «كان سليمان أصحهما حديثاً».[6]

امام عجلی رحمه الله فرمائی ثقة.[7] امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی «عبدالله بن بريدة الذي روىٰ عنه حسن بن واقد ما أنكرها»[8] ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې.[1] ابن معین رحمه الله او امام حاتم رحمه الله فرمائی ثقة.[2]

---

[1]) كشف الباري: ۶۷۸/۱.

[2]) كشف الباري: ۴/۲.

[3]) عمدة القاري: ۴۶۸/۳ تهذيب الكمال: ۳۳۱/۱۴ تهذيب التهذيب: ۱۵۷/۵ سير أعلام النبلاء: ۵۰/۵.

[4]) دتلامذه اوشيوخ دپاره اوگورئی تهذيب الكمال: ۳۳۰/۱۴-۳۲۹.

[5]) تهذيب الكمال: ۳۳۱/۱۴ تهذيب التهذيب: ۱۵۷/۵ سير أعلام النبلاء: ۵۱/۵.

[6]) تهذيب الكمال: ۱۳۳/۱۴ تهذيب التهذيب: ۱۵۷/۵.

[7]) معرفة الثقات للعجلي: ۲۲/۲.

[8]) حواله بالا.

ليکن امام بغوي رحمه الله د محمد بن علي جوزجاني رحمه الله په حواله سره امام احمد بن حنبل رحمه الله نه د عبدالله بن بريده په هغه رواياتو کښې کوم چه دې د خپل پلار بريده نه روايت کوي تضعيف نقل کړې دې.(٣)
هم دغه شان ابراهيم حربي رحمه الله فرمائي: ((عبدالله أشهر من سليمان ولم يسمعا من أبيهما وفيما روى عبدالله بن بريدة عن أبيه أحاديث منكرة وسليمان أصح حديثاً)) يعنې عبدالله بن بريده د خپل رور سليمان بن بريده نه د زيات مشهور دې. خو د دواړو رونړو د خپل پلار بريده نه سماع ثابته نه ده او بيا هغه روايات کوم چه عبدالله د خپل پلار نه روايت کوي منکر روايات دي او د حديث په معامله کښې د عبدالله په مقابله کښې سليمان بن بريده اصح دې. د دې اقوالو نه معلوميږي چه د دوی د خپل پلار نه سماع ثابته نه ده او کوم روايات چه هغوی د خپل پلار نه نقل کوی هغه منکر روايات دی.(٤)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه (سره د دې د عبدالله بن بريده د خپل پلار نه سماع ثابته نه ده او کوم روايات چه هغه د خپل پلار نه کوی هغه منکر روايات دی مگر دا خبره هم مسلم ده چه) د عبدالله بن بريده په صحيح بخاري کښې د خپل پلار بريده نه صرف يو روايت دې. (باقي روايات او واسطو سره نقل دی. په هغې کښې د بريده واسطه نشته) او د دغه يو روايت په تخريج بندې امام مسلم رحمه الله هم د امام بخاري رحمه الله موافقت کړې دې.(٥) عبدالله بن بريده د خپل پيدائش د کال په حواله سره فرمائي چه زما پيدائش د عمر رضي الله عنه په دور خلافت کښې د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت نه درې کاله پس شوې.(٦)
احمد بن سيار المروزي رحمه الله فرمائي چه د عبدالله بن بريده انتقال د "مرو" يو کلي جاورسه کښې شوې او د سليمان بن بريده انتقال هم د "مرو" په لوکلي قنين بنې شوې او د دواړو د مرگ په مينځ کښې لس کاله فاصله ده. يعنې د سليمان بن بريده انتقال د عبدالله بن بريده نه لس کاله وړاندې شوې.(٧)
د عبدالله بن بريده انتقال د اسد بن عبدالله د ولايت په زمانه کښې شوې دغه وخت هغه د قضاء په عهده باندې وو.(٨)
ابن حبان رحمه الله فرمائي عبدالله بن بريده او سليمان بن بريده دواړه غبرگوني رونړه وو. د دوی پيدائش د حضرت عمر رضي الله عنه د دور خلافت په دريم کال کښې ١٥ هجري کښې شوې. د سليمان بن بريده انتقال په "مرو" کښې ١٠٥ هجري کښې شوې هغه د قضاء په عهده باندې فائز وو د هغوی نه پس په دغه عهده باندې د هغوی رور عبدالله بن بريده اولگيدو تردې چه د هغوی انتقال هم په دغه عهده باندې ١١٥ هجري کښې اوشو. او کوم حضرات چه دا وائي د دواړو رونړو انتقال په يوورځ شوې دې د دې هيڅ ثبوت نشته دې او فضول خبره ده.(٩)

---

(١) ١٦/٥.
(٢) تهذيب الكمال: ٣٣١/١٤ تهذيب التهذيب: ١٥٧/٥ سير أعلام النبلاء: ٥١/٥.
(٣) إكمال تهذيب الكمال: ٢٥٧/٧ تهذيب التهذيب: ١٥٨/٥.
(٤) حواله بالا.
(٥) هدى الساري: ٥٨٥.
(٦) تهذيب الكمال: ٣٣١/١٤ تهذيب التهذيب: ١٥٧/٥ سير أعلام النبلاء: ٥١/٥.
(٧) حواله بالا.
(٨) حواله بالا.
(٩) سير أعلام النبلاء: ٥٢/٥ تهذيب الكمال: ٣٣٢/١٤ تهذيب التهذيب: ١٥٧/٥ - ١٥٨ كتاب الثقات لابن حبان: ١٦/٥

**سمرة بن جندب:** دا مشهور صحابی رسول حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه دي. ابن اسحاق رحمه الله فرمائي هغوی د انصار حليف وو.(١) د دوی نسب سليمان بن سيف رحمه الله داسې بيان کړې دی: «**سمرة بن جندب (بضم الجيم وفتح الدال وضمها) بن هلال بن حريج (كذا في الاستيعاب، وفي تهذيب الكمال، وتهذيب التهذيب: حديج، أي: بضم الحاء وفتح الدال، وفي تهذيب الأسماء: حريج، أي: بحاء مهملة مفتوحة ثم راء مكسورة) بن مرة بن حزن بن عمرو بن جابر ذي الرياستين الفزاري**» ابن اسحاق او نورو نسابين وئيلي دی چه دهغوی رضي الله عنه تعلق بني فزاره بن ذبيان بن بغيض بن ديث بن غطفان الفزاری سره دې.(٢) ددوی کنيت ابوسعيد دې خو بعض حضراتو ددوی کنيت ابوعبدالله اوبعض ابوعبدالرحمن او بعض ابومحمد اوبعض ابوسليمان ذکرکړې دې.(٣)

حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه وړوکې شاتن وو چه د هغوی د والد جندب انتقال شوې وو. دحضرت سمره بن جندب رضي الله عنه مور هغه ځان سره مدينې ته راوستلو. دلته هغې ته د ډيرو خلقو د طرف نه دنکاح پيغامات ملاؤشو مګر هغې دا شرط کيخودې وو چه هغه به صرف داسې سړی سره واده کوی چه دهغې د خوئي سمره د هغه د بالغ کيدو پورې کفالت هم کوی. د دې شرط په منلوسره دانصار يوسړی هغې سره واده اوکړو اوبيا هغوی خپلې مور سره هم په انصار کښې اوسيدلو.(٤)

حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه ته دحضورپاك د طرف نه د غزوه احدپه موقع په جنګ کښې د شرکت کولواجازت ملاؤشوې وو اوبيا هغوی په نورو ډيرو غزواتوکښې د حضورپاك سره د شرکت سعادت حاصل کړو.(٥) دې نه پس هغوی رضي الله عنه په بصره کښې سکونت اختيارکړې وو. زياد چه په کله د بصره نه دکوفې طرف ته تللو نوشاته به ئې ځان پسې سمره بن جندب رضي الله عنه خپل نائب مقررکولوسره تللو اوکله چه به دکوفې نه بصره طرف ته تللو نوهغه به ئې دکوفې نګران مقررکولوسره تللو. دغه شان به حضرت سمره رضي الله عنه شپږ مياشتې د کوفې نګران وو او شپږ مياشتې به د بصره نګران وو. بيا چه کله دانتقال وخت شو نو بيا هم حضرت امير معاويه رضي الله عنه هغوی تقريباً يوکال پورې د بصره نګران اوساتلو اوبيائی دې معزول کړو.(٦)

حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه د حروريه سخت مخالف وو اوکله چه به هم هغوی له د حروريه څوك سړې راوستې شو نوهغوی به هغه له موقع ورکولونه بغير قتل کولو. هغوی به فرمائيل «**شر قتلى تحت أديم السماء، يكفرون المسلمين ويسفكون الدماء**» يعنې داخلق په مخ دزمکې باندې بدترين مقتول دی داخلق دمسلمانانوتکفيرکوی او دهغوی وينې توئيه وی. هم دغه وجه ده چه حروريه او کوم خلق چه هغوی سره په عقيده کښې نيزدې نيزدې دی په حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه باندې سخت طعن کوی

---

(١) تهذيب التهذيب: ١١٦/٢ الاستيعاب فی معرفة الأصحاب: ص: ٣٠٠ تهذيب الکمال: ١٣١/١٢.

(٢) الاستيعاب فی معرفة الأصحاب باب سمرة ص: ٣٣٠ رقم الترجمة: ٩٩٦ تهذيب الأسماء واللغات: ٢٣٥/١ تهذيب الکمال: ١٣٠/١٢.

(٣) الاستيعاب فی معرفة الأصحاب باب سمرة ص: ٣٣٠ رقم الترجمة: ٩٩٦ تهذيب الأسماء واللغات: ٢٣٥/١ تهذيب الکمال: ١٣٠/١٢.

(٤) الابستيعاب فی معرفة الأصحاب باب سمرة ص: ٣٠١ تهذيب الکمال: ١٣٤/١٢.

(٥) الاستيعاب فی معرفة الأصحاب باب سمرة ص: ٣٠١ تهذيب الأسماء واللغات: ٢٣٥/١ تهذيب الکمال: ١٣٤/١٢.

(٦) الاستيعاب فی معرفة الأصحاب باب سمرة ص: ٣٠١ تهذيب الأسماء واللغات: ٢٣٦-٢٣٥/١ تهذيب الکمال: ١٣٢/١٢ تهذيب التهذيب: ١١٦/٢.

اوبدي ردي وريسي واني.[1]
ابن سيرين رحمه الله امام حسن رحمه الله اود بصره اکابرعلماء اوفضلاء به دهغوی ډیر تعریف کولو.[2]. ابن سيرين رحمه الله به فرمائيل: «في رسالة سمرة إلى بنيه علم كثير»[3] يعنى دحضر سمره بن جندب رضي الله عنه دخپلو ځامنوطرف ته ليګلې شوى خط كښې ډيرې علمى خبرې دى. دې نه علاوه به ابن سيرين رحمه الله فرمائيل: «كان عظيم الأمانة، صدوق الحديث، يحب الإسلام وأهله»[4]
حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه د حفاظ صحابه كرام رضي الله عنهم نه وو اوهغوى په كثرت سره دحضورپاك نه احاديث روايت كړى دى.[5]
يوځل دهغوى او عمران بن حصين رضي الله عنه په مينځ كښې خبرې اترې روانې وې چه په دې دوران كښې حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه اووئيل چه ما دحضورپاك نه داخبره محفوظ كړې ده چه حضورپاك به په مانځه كښې دوه سكتې كولې. يوه دتكبيرتحريمه نه پس او دويمه سكته به ئې د ولاالضالين نه فارغ كيدو نه پس كوله. حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه داخبره اونه منله چه حضورپاك به دوه سكتې فرمائيلې. دا اختلاف مدينې ته د ابى بن كعب رضي الله عنه طرف ته يوړلې شو نوهغوى جواب وركړو چه «أن سمرة قد صدق وحفظ» يعنى حضرت سمره رضي الله عنه ټيك وئيلى دى اوهغه دا خبره محفوظ كړې ده.[6]
حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه ۱۲۳ احاديث روايت كړى دى په كوم كښې چه دوه احاديث داسې دى دكوم په تخريج چه د شيخين اتفاق دې يعنى دا دواړه احاديث امام بخارى رحمه الله اوامام مسلم رحمه الله دواړو په خپل خپل صحيح كښې روايت كړى دى. دې نه علاوه دوه احاديث داسې دى كوم چه صرف امام بخارى تخريج كړى دى اوڅلور داسې دى چه امام مسلم تخريج كړى دى[7]
حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اد ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه نه احاديث اوريدلى دى اودهغوى نه د هغوى دواړو ځامنو سليمان اوسعد عبدالله بن بريده، زيد بن عقبه، ربيع بنعميله، هلال بن سياف، ابورجاء العطارى، عبدالرحمن بن ابى ليلى، ابونضره العبدى، ثعلبه بن عباد او حسن بصرى رحمهم الله وغيره داحاديث روايت كړى دى.[8]
امام بخارى رحمه الله فرمائى چه دهغوى انتقال د ابوهريره رضي الله عنه نه پس شوې اودحضرت ابوهريره رضي الله عنه انتقال ۵۸هجرى كښې شوې.[9]

---

[1] الاستيعاب فى معرفة الأصحاب باب سمرة ص: ۳۰۱ تهذيب الأسماء واللغات:۲۳۶-۲۳۵/۱ تهذيب الكمال ۱۳۲/۱٤: تهذيب التهذيب:۱۱۶/۲.

[2] حواله بالا

[3] حواله بالا.

[4] الاستيعاب فى معرفة الأصحاب باب سمرة ص: ۳۰۱ تهذيب الأسماء واللغات:۲۳۶-۲۳۵/۱ تهذيب الكمال ۱۳۲/۱۲: تهذيب التهذيب:۱۱۶/۲.

[5] الاستيعاب فى معرفة الأصحاب ص: ۳۰۰.

[6] الاستيعاب فى معرفة الأصحاب ص: ۳۰۰رقم الترجمة: ۹۹۶ تهذيب الكمال:۱۳۲/۱۲.

[7] تهذيب الأسماء واللغات:۲۳۶/۱ عمدة القارى:۴۶۸/۳.

[8] دتلامذه اوشيوخ دپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۱۳۱/۱۲.

[9] التاريخ الكبير: ۱۷۶/٤.

ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه دحضرت سمره بن جندب رضي الله عنه انتقال بصره کښې ۵۸هجری کښې شوې دې اودهغوی دمرګ سبب دا شوې وو چه هغوی کزاز نومې یوبیمارئی (چه زیاته یخنی یا د زیاتې وتلونه رچ شروع کیدو په صورت کښې کیږی) راګیرکړې وو. ددې د علاج د پاره هغوی حکم ورکړو په یولوئی دیګچی کښې اوبه اوخوټکونې. په یولوئی دیګچی کښې اوبه اوخوټکولې شوې او په هغې دپاسه ئې یودناستې ځائې جوړکړو کوم ته چه به لوګې رسیدې شو. هغوی په دغه ځائې ناستې سره ګرمائش حاصلولو چه ناڅاپې هغوی په دغه ګرمو اوبوکښې ورپريوتل او وفات شو. لکه چه دحضورپاك ددې ارشاد تصدیق وو ((آخركم موتاً في النار)) یعنی تاسو صحابه کرامو کښې به داخیر خلقو مرګ د اور په سبب کیږی. د آخری صحابه کرام رضي الله عنهم نه حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه حضرت ابوهریره اوحضرت ابومحذوره رضي الله عنهم انتقال هم دغه شان د اور په سبب اوشو.(۱)دهغوی رضي الله عنه د وفات د کال سره متعلق یوقول داهم دې چه دهغوی انتقال ۵۹هجری په آخرکښې یا د ۶۰هجری په شروع کښې شوې.(۲)

## شرح حدیث

**قوله:: أن امرأة**: امرأة نه مراد حضرت ام کعب انصاریه رضي الله عنها ده. امام مسلم رحمه الله عبدالوارث عن حسن المعلم په طریق سره ددې دنوم صراحت کړې دې.(۳)

**قوله:: ماتت في بطن**::

**یواشکال اودهغې جواب**: سوال دا پیداکیږی چه خیته د مرګ سبب نه جوړیږی بیا دلته د ظرفیت څه توجیه ده؟ جواب دادې چه دلته في د ظرفیت په معنی کښې نه ده بلکه تعلیلیه او سببیه ده اومعنی داده چه د دغه ښځې انتقال د خیټې د بیمارئی د وجې نه شوې وو. لکه چه په حدیث کښې راځی: ((**في النفس المؤمنة مائة إبل**)) أي: بسبب قتل النفس المؤمنة منة تجب مائة إبل. دغه شان د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارك دې: ((**إن امرأة دخلت النار في الهرة**)) یعنی: **لأجل الهرة، أوبسبب الهرة**. دغه شان په قرآن کریم کښې هم في د سبب اوعلت په معنی کښې استعمال شوې ده لکه چه د الله تعالی ارشاد مبارك دې: ﴿**فَذَٰلِكُنَّ الَّذِي لُمْتُنَّنِي فِيهِ**﴾ أي: لأجله.(۴)

د بعض حضراتو وینا ده چه امام بخاری رحمه الله ته دلته وهم شوې دې اوهغه وهم دادې چه هغه د ((**ماتت في بطن**)) مطلب دا ګنړلې چه ددې ښځې انتقال د ولادت د وجې نه شوې وو اوپه دې وجه ئې ترجمة الباب داسې قائم کړو. ((**باب الصلاة على النفساء**)). جواب دادې چه امام بخاری ته وهم نه دې شوې (بلکه

---

(۱) تهذیب التهذیب: ۱۱۶/۲تهذیب الکمال: ۱۳۳/۱۲ الاستیعاب في معرفة الأصحاب ص: ۳۰۱.

(۲) الثقات لابن حبان: ۱۷۴/۳ التاریخ الکبیر: ۱۷۷/۴تهذیب الأسماء واللغات: ۱/۲۳۶ تهذیب الکمال:۱۳۴/۱۲ تهذیب التهذیب:۱۱۶/۲.

(۳) فتح الباری: ۴۲۹/۱عمدة القاری: ۴۶۸/۳ صحیح الإمام مسلم کتاب الجنائز باتب أین یقوم الإمام من المیت للصلاة علیها رقم الحدیث: ۲۲۳۵.

(۴) عمدة القاری:۴۶۸/۳شرح الکرمانی۲۰۶/۳.

اعتراض کونکي پخپله په وهم کښې راګیرشوي دې، ځکه چه کتاب الجنائزکښې ((باب الصلاة على النفساء)) او ((باب أين يقوم الإمام من المرأة)) لاندې حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دې: ((صليت وراء النبي صلى الله عليه وسلم على امرأة في نفاسها، فقام عليها وسطها)) چنانچه په روايت کښې تصريح شته چه دام کعب انصاريه رضي الله عنها انتقال د خيتې د بيمارئي يعنى نفاس د وجې نه شوې وو.[1]

## قوله: فقام وسطها:

**دجنازې مونځ دامام دپاره د اودريدوځائې:** امام د جنازې مونځ کولوو خت کښې به دمړي د کوم اندام په محاذاتو کښې اودريږي؟ نودا د ائمه اربعه په مينځ کښې يوه ا ختلافي مسئله ده.

**د مالکيه مذهب:** په دې سلسله کښې د امام مالك رحمه الله مذهب دادې: ((وصفة الموقوف المندوب في صلاة الجنازة أن يقف الإمام ومثله المنفرد في الصلاة على الرجل عند وسطه، وفي الصلاة على المرأة عند منكبيها))

اصحاب مالك رحمهم الله فرمائي چه د ښځې د اوږو په محاذات کښې د اودريدو حکم په دې وجه کړې شوې دې ځکه چه په وسط کښې (مينځ، عجيزه، سرين) محاذات کښې اودريدوکښې دخيالاتو ګډوډ کيدو انديښنه ده اوداکوم چه په حديث سمره بن جندب رضي الله عنه کښې د حضورپاك عمل نقل دې چه حضورپاك د ښځې د مړې جنازه کولووخت کښې دمړي مينځ محاذات کښې ولاړ وو نوچونکه دحضورپاك ذات مبارك او پاك خيالات د ګډوډ کيدونه محفوظ او معصوم دې په دې وجه ددې حديث نه اشکال نه دى کيدل پکار.

**دشوافع مذهب:** دامام شافعي رحمه الله نه په دې مسئله کښې هيڅ نص نه دې نقل. البته اصحاب امام شافعي رحمهم الله فرمائي د ښځې د جنازې مونځ کښې مسنون عمل دادې چه امام دهغې سرين (وسط) محاذات کښې اودريږي ځکه چه دحضرت انس رضي الله عنه نه ثابت دى چه هغه به د ښځې د جنازې په مونځ کښې دمړي مينځ يعنى سرين په محاذات کښې اودريدو او د مړي د جنازې دپاره دهغه د سر په محاذات کښې اودريدو. بيا چه کله علاء بن زياد رحمه الله دهغوى نه سوال اوکړو چه آيا حضورپاك به هم د ښځې په حق کښې سرين محاذات کښې اود سړي په حق کښې د سر محاذات کښې اودريدو؟ نوحضرت انس رضي الله عنه اوفرمائيل اوجى.[2]

اودسړي د جنازې په معامله کښې د شوافع نه دوه قسمه قول نقل دې. امام ابوعلي طبري، امام الحرمين، امام غزالي او امام صيدلاني رحمهم الله فرمائي چه امام دې په جنازه کښې د سړي د سينې محاذات کښې اودريږي. خو د جمهور متقدمين اصحاب امام شافعي رحمهم الله په دې باندې اتفاق دې چه امام دې د سړي په جنازه کښې د مړي د سر محاذات کښې اودريږي. ددې دليل هم د حضرت انس رضي الله عنه هم دغه پورته ذکرشوې روايت دې. بل ددې حضراتو استدلال د حديث الباب (حديث سمره بن جندب رضي الله عنه) نه هم دې. حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه فرمائي چه ما د حضورپاك په اقتداء کښې د يو داسې ښځې د جنازې مونځ کړې د کومې انتقال چه د بچى پيداکيدود وجې نه شوې وو حضورپاك

---

[1] شرح الکرماني: ۲۰۶/۳عمدة القاري: ۴۶۸/۳فتح الباري: ۴۲۹/۱.

[2] سنن أبي داؤد کتاب الجنائز باب أين يقوم الإمام من الميت إذا صلى عليه رقم الحديث: ۳۱۹۴جامع الترمذي کتاب الجنائز باب ماجاء أين يقوم الإمام من الرجل والمرأة رقم الحديث: ۱۰۳۴سنن ابن ماجه کتاب الجنائز باب ماجاء في أين يقوم الإمام إذاد صلى على الجنازة رقم الحديث: ۱۴۹۴.

دهغه ښځې وسط (محاذات) کښې ولاړ وو.

علامه نووي رحمه الله فرمائي: «السنة أن يقف الإمام عند عجيزة المرأة بلا خلاف للحديث، ولأنه أبلغ في صيانتها عن الباقين، وفي الرجل وجهان: الصحيح باتفاق المصنفين، وقطع به كثيرون وهو قول جمهور أصحابنا المتقدمين أنه يقف عند رأسه. والثاني:...... قاله أبوعلي الطبري.... عند صدره، وهذا اختيار إمام الحرمين والغزالي، وقطع به السرخسي. قال الصيدلاني: وهو اختيار أئمتنا، وقال الماوردي: قال أصحابنا البصريون: عند صدره والبغداديون عند رأسه، والصواب ما قدمته عن الجمهور، وهو عند رأسه»[1]

**د حنابله مذهب:** دامام احمدبن حنبل رحمه الله مذهب دادې چه د ښځې دجنازې د مونځ دپاره به امام د هغې په وسط يعنى عجيزه (سرين) محاذات کښې اودرېږي اودسړي په حق کښې به دهغه د سينې محاذات کښې اودرېږي. علامه زرکشي رحمه الله فرمائي چه دا روايت دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه د هغه اصحاب (شاګردانو) روايت کړې دې اوهم دغه د جمهور اصحاب امام احمدبن حنبل رحمهم الله مذهب دې. دې نه علاوه هم دوه نور روايتونه نقل دى. د اثرم رحمه الله په روايت کښې دى چه دسړي د اوږو په محاذاتو کښې به اودرېږي او په يو روايت کښې دى چه د سړي د سر محاذت کښې به اودرېږي لکه چه په حديث د حضرت انس رضي الله عنه کښې ذکردی.

اصحاب امام احمد بن حنبل رحمهم الله فرمائي چه د سر په محاذات کښې اودريدل يا د اوږدو په محاذات کښې اودريدل يا د سينې په محاذات کښې اودريدل دا ټول نيزدې نيزدې دى. بس په دې کښې په يومقام کښې اودريدونکې سړې د قرب مکان د وجې نه بل ځائي ولاړ محسوس کيږي.

چنانچه زرکشي رحمه الله فرمائي: «والإمام يقوم عند صدر الرجل وعند وسط المرأة، نص أحمد على هذا في رواية عشرة من أصحابه، وعليه عامة أصحابه، وروي عنه أنه يقف عند رأس الرجل وهو الذي قاله أبو محمد في المقنع، والكافي، وهو المشهور في حديث أنس. قا أبوبركات: والقولان متقاربان، فإن الواقف عند أحدهما يمكن أن يكون عند الآخر، لتقاربهما، فالظهر أنه وقف بينهما، وقد قال أحمد في رواية الأثرم: يقف من الرجل عند منكبيه».[2]

لکه چه دامام شافعي رحمه الله او امام احمد په مذهب کښې څه خاص فرق نشته دې. بلکه دواړه مذهبونه نيزدې نيزدې دى اوبيا د دواړو مذاهبو استدلال هم د حديث حضرت انس رضي الله عنه او حديث سمره بن جندب رضي الله عنه نه دې. هم دغه وجه ده چه علامه قدامه رحمه الله فرمائي: «فأما قول من قال: يقف عند رأس الرجل، فغير مخالف لقول من قال بالوقوف عند الصدر، لأنهما متقاربان، فالواقف عند أحدهما واقف عند الآخر».[3]

**د احناف مذهب:** د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله نه په دې سلسله کښې مختلف اقوال نقل دى. رومبې روايت دادې چه امام د جنازې په مونځ کښې دمړي د سينې په محاذات کښې اودرېږي که مړې سړې وى اوکه ښځه. دا داحناف په نيز راجح او قول مختاردې.[4]

دويم روايت دادې چه امام به په جنازه کښې د سړي د سر محاذات کښې اود ښځې د سرين محاذات کښې اوديږي. علامه عيني رحمه الله فرمائي چه د ابن ابى ليلى رحمه الله او ابراهيم نخعي رحمه الله هم دغه قول

---

[1]) المجموع شرح المهذب: ١٨٣/٥ مكتبة الإرشاد، العزيز شرح الوجيز المعروف بالشرح الكبير: ٤٣٢/٢ الحاوى فى فقه الإمام الشافعي: ٥٠/٣ دار الكتب العلمية.

[2]) المغنى لابن قدامة: ٤٥٣/٣-٤٥٢ دار عالم، شرح الزركشي: ٣٣٠/٣-٣٢٩ مكتبة العبيكان.

[3]) المغنى لابن قدامة: ٤٥٣/٣.

[4]) البناية شرح الهداية: ٢٢٥/٣-٢٢٤ بدائع الصنائع: ٣٣٩/٢ شرح فتح القدير: ١٣٠/٢ رشيديه.

دي. (او هم دا د شوافع حضراتو مذهب هم دی). دریم روایت دادې چه امام دې په جنازه کښې د سړي د سرین محاذات کښې اود ښځې د سینې محاذات کښې اودریږی.(١)
دامام ابویوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله مذهب دادې چه امام دې په جنازه کې دښځې په حق کښې دهغې سرین محاذات کښې اود سړي په حق کښې د دهغه د سر محاذات کښې اودریږی. هم دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دویم روایت دې.(٢) بل فقهاؤ د ابن ابی لیلی رحمه الله نه هم مختلف اقوال نقل کړی دی. چنانچه علامه کاسانی رحمه الله فرمائی چه د ابن ابی لیلی رحمه الله په نیز مذهب دادې چه امام دې په جنازه کښې د سړي د سرین محاذات کښې اود ښځې د سینې محاذات کښې اودریږی.(٣) دویم قول دادې چه امام دې د سړي د سر په محاذات کښې اود ښځې سرین په محاذات کښې اودریږی لکه چه د امام ابوحنیفه رحمه الله دویم روایت دی. (٤)اودریم قول دادې چه دسړي دسینې محاذات اوذ ښځې سرین محاذات کښې دې اودریږی.(٥)
حاصل دا چه په دې مسئله کښې د ائمه احناف اقوال ډیر زیات اومختلف دی. البته راجح مشهور اوقول مختار هم دغه دې چه د احنافو په نیز امام د جنازې مونځ کښې د مړی د سینې محاذات کښې اودریږی که هغه مړې د سړي وی اوکه د ښځې وی اوهم دغه د روایت نه هم ښکاره دی. چنانچه علامه سرخسی رحمه الله فرمائی: «وأحسن مواقف الإمام من الميت في الصلاة عليه بحذاء الصدر» (٦)یعنی د جنازې د مونځ کولووخت کښې د امام د اودریدودپاره خوښ کړې شوې ځائی دادې چه هغه دې د مړی د سینې محاذات کښې ولاړوی که مړې د سړي وی اوکه د ښځې.
اوعلامه عینی رحمه الله فرمائی: «وفي "التحفة" و"المفيد": المشهور من الروايات عن أصحابنا في الأصل وغيره أن يقوم من الرجل والمرأة بحذاء الصدر» (٧) یعنی داصحاب نه نقل شوی روایاتو کښې مشهور روایت هم دغه دې چه امام دې دمړی د سینې محاذات کښې ولاړ وی که مړې د سړي وی اوکه د ښځې.
**داحناف مستدل:** د احنافو استدلال دادې چه (صدر) سینه په ټولو اندامونو کښې لویه ده اشرف الاعضاء ده ځکه چه په سینه کښې زړه وی او زړه د ایمان مرکز اودعلم وحکمت معدن دې. اوچونکه هم د ایمان د وجې نه د چاجنازه کولې شی نود سینې په محاذات کښې اودریدل به دې طرف ته مشیروی چه د ایمان په وجه د دې سړي شفاعت او سفارش کولې شی.(٨)
**د حضرت انس رضي الله عنه د حدیث نه استدلال صحیح نه دې:** دحدیث انس رضي الله عنه نه استدلال په دې وجه صحیح نه دې ځکه چه په دې حدیث کښې اضطراب دې په بعض طرق کښې «عند رأس الرجل او عند وسط المرأة» کلمات دی مګر بعض کښې «حيال صدره» اوبعض کښې «حيال منكبيه» کلمات هم دی.

---

١) البناية شرح الهداية:٣/٢٢٥.
٢) المغنى لابن قدامة:٣/٤٥٢ البناية شرح الهداية:٣/٢٢٥.
٣) بدائع الصنائع:٢/٣٣٩.
٤) البناية شرح الهداية:٣/٢٢٥.
٥) المبسوط للسرخسي:٢/١١٨.
٦) المبسوط للسرخسي:٢/١١٨.
٧) البناية شرح الهداية:٣/٢٢٥.
٨) تبيين الحقائق:١/٢٤٢|علاء السنن: ٨/٢٢٦.

لهذا اوس يو اخستل اودليل نيول به صحيح نه وى. (١)
اوكه چرې حديث انس رضي الله عنه مضطرب اونه منلې شى نوبياهم جواب دادې چه په هغه زمانه كښې به جنازې پوره نه وې پټې شوې. په دې وجه به د ښځې په حق كښې مناسب هم دامعلوميدل چه د ستر په محاذات كښې دې امام ولاړ وى دې دپاره چه امام دمړې او قوم په مينځ كښې حائل شى اودا طريقه به د ښځې دپاره استر يعنى زياته د ستر سبب وه. ليكن اوس خو جنازې منعوش يعنى په مكمل توګه باندې پټې وى په دې وجه اوس د ستر په محاذات كښې د اودريدو څه خاص وجه پاتې نه شوه. لهذا اوس د ايمان مركز يعنى د سينې په محاذات كښې اودريدل زيات مناسب دى. چنانچه هم په دغه حديث انس رضي الله عنه آخر كښې راوى حديث حضرت نافع ابوغالب فرمائى: «فسألت عن صنيع أنس.... رضى الله عنه...... فى قيامة على المرأة عند عجيزتها؟ فحدثونى أنه إنما كان لأنه لم تكن النعوش، فكان يقوم الإمام حيال عجيزتها يسترها من القوم» (٢)
يعنى ما دحضرت انس رضي الله عنه ددې عمل باره كښې تپوس اوكړو چه هغه د ښځې د رين محاذات كښې داودريدو په صورت كښې اختياركړل، نوخلقو ماته دابيان كړل چه داسې دنعوش بندوبست نه كيدود وجې نه وو د كوم د وجې نه چه به امام د ښځې د سرين محاذات كښې اودريدلو دې دپاره چه هغه د قوم او نوروخلقودنظرونونه پټ اوساتى.
**دوه اشكاله اودهغې جواب:** په دې تاويل باندې دوه اشكاله كيږى. رومبې اشكال دادې چه دامام ابوداؤد رحمه الله په طريق سره نقل شوې حديث حضرت انس رضي الله عنه لاندې ددې خبرې تصريح ده چه كله د ښځې جنازه پيش كړې شوه نو په هغې باندې د شين رنګ كپړه پرته وه. چنانچه د روايت په الفاظو كښې «فقربوها وعليها نعش أخضر» لهذا ذكركړې شوې تاويل صحيح نه دې. ځكه چه حضرت انس رضي الله عنه دمنعوش كيدونه باوجود وسط «په محاذات» كښې اودريدو سره مونځ وركړو. او دويم اشكال دادې چه كله وړاندې كړې شوې جنازه منعوش وه نوبيا د ابوغالب رحمه الله نه ددې خبرې د نقل كولو څه مقصددې چه«لأنه إنما لم تكن النعوش؟» اوبيا دابوغالب رحمه الله نه بيان كونكى تول په تول مجهول هم دى.
جواب دادې چه حضرت ابوغالب رحمه الله نه دا ونيلى شوى وو چه حضرت انس رضي الله عنه د خپل اسلاف تقليد اواتباع كړې ده دهغه داسلاف عمل هم دغه وو چه هغوى به د جنازې نه منعوش كيدو په صورت كښې د وسط په محاذات كښې اودريدل. اوس حضرت انس رضي الله عنه د دغه علت رعايت اونه كړو بلكه هغوى هم د اسلاف اتباع كولوسره د وسط په محاذات كښې اودريدو سره د جنازې مونځ وركړو. لهذا اوس مطلب دادې چه بيان كونكو حضرت ابوغالب رحمه الله ته دا اوونيل چه حضرت انس رضي الله عنه د اسلاف اتباع كړې ده اوداسلاف طريقه هم دغه وه ځكه چه په هغه زمانه كښې به جنازې منعوش نه وې.
اوچه تركومې تعلق دى د هغه روات چاچه حضرت ابوغالب رحمه الله ته دا روايت ذكركړې نوسره ددې چه هغوى مجهول دى ليكن دا هم يواصل اوقاعده ده چه د قرون اولى د محدثينو جهالت نقصان وركونكې نه دې. (٣) اوبيا عين ممكن دى چه هغه جنازه منعوش وى كومه چه د حضرت انس رضي الله عنه

(١) تبيين الحقائق: ١/٢٤٢ إعلاء السنن: ٨/٢٢٦.
(٢) حواله بالا، والرواية المذكورة رواها الإمام أبوداؤد فى كتاب الجنائز باب أين يقوم الإمام من الميت إذا صلى عليه رقم الحديث: ٣١٩٤.
(٣) إعلاء السنن: ٨/٢٢٧-٢٢٦.

مخې ته راوړلې شوه خو په دې سره دا نه لازم کیږي چه د کومو ښځو جنازه حضور پاك پخپله کړې وی دهغوی جنازې هم منعوش وې لهذا زمونږ ذکر کړې شوې تاويل صحيح دې.(١)

بل د حديث حضرت انس رضی الله عنه په مقابله کښې مونږ د حديث سمره بن جندب رضی الله عنه نه استدلال کوو ځکه چه په دې روايت کښې رسول الله ﷺ دهغه ښځې جنازه د مرې په وسط کښې اودريدو سره کړې. په دې روايت سره زمونږ د مذهب تائيد کيږي (سره ددې چه شوافع اوحنابله هم ددې روايت نه په خپل مذهب باندې استدلال کوی او لفظ وسط متحرك السين لوستلو سره ددې نه مراد عجيزه اوسرين اخستې دی) اوهغه داسې چه په دې روايت کښې لفظ وسط استعمال شوې دې اودا لفظ دوه شان سره لوستلې شی. د سين په حرکت سره اود سين په سکون سره. په رومبی صورت کښې به دا اسم وی او دې نه مراد به هر هغه څيز شی چه د دوو څيزونو په مينځ کښې په هرځائې کښې چه وی. بل د وسط استعمال په متصل الاجزاء کښې کيږي اود وسط استعمال متفرق الاجزاء کښې کيږي.(٢)

هم دغه وجه ده چه ((جلست وسَط القوم)) ونيل صحيح نه دی ځکه چه دوسط استعمال په متصل الاجزاء کښې کيږئ او قوم متفرق الاجزاء دې. او ((جلست وسَط الدار)) ونيل صحيح دی ځکه چه دار متصل الاجزاء دې او دواړه يعنی وسط او سْط صدر (سينه) جوړيدې شی. د وسط په صورت کښې د بدن مينځمې حصه سينه داسې جوړيږي چه دواړه خپې دواړه لاسونه اوسر په اطراف کښې دی ددې ويستو سره باقی بدن د سرين نه واخله ترڅټ پورې باقی پاتې کيږي اوښکاره خبره ده چه دې کښې صدر (سينه) وسط او بالکل مينځمې حصه جوړيږي. د اطراف د ويستلو ضرورت ځکه پيښ شو ځکه چه د وسط استعمال متصل الاجزاء کښې کيږي په کوم کښې چه تفريق نه وی.(٣) اودوسْط په صورت کښې د سرنه واخله ترخپو مينځمې حصه ټول وسْط دې اوداسې هيڅ يو اشکال هم باقی نه پاتې کيږي. چنانچه: ((السأكن متحرك والمتحرم ساكن)) مشهوره مقوله هم ددې مقتضی ده.(٤)

**دعلامه سرخسی قول**: علامه سرخسی فرمائی چه هم سينه په حقيقت کې وسط دې ځکه چه دې نه پورته سراودواړه لاسونه اودې نه ښکته خيته اودواړه خپې دی اودغه سان صدر (سينه) وسط جوړيږي. (٥) بل دا تاويل هم ممکن دې چه حضورپاك مونځونه هم د صدر محاذات کښې اودريدوسره کړی دی. مګر په يوه موقع درسول الله ﷺ خيال دسر طرف ته او په بله موقع ميلان دعجيزه (سرين) طرف ته شوې. دکوم نه چه راوی دا ګمان کړې چه حضوراکرم د دواړو په مينځ کښې تفريق کړې دې.(٦)

بل د احنافو تائيد دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما د عمل نه هم کيږي ځکه چه هغوی به د ښځو او سړو په جنازو کښې د قيام په اعتبارسره فرق نه کولو بلکه دواړه به ئې برابر ګنړل.(٦)

دغه شان سعيد رحمه الله په خپل سندسره دامام شعبی رحمه الله نه روايت کوی چه کله ام کلثوم بنت علی اودهغې خوئې زيد بن عمر رضی الله عنهما انتقال شو اودهغوی جنازه ئې راوړله نودهغه وخت امير دهغوی

---

(١) البناية شرح الهداية: ٢٢٧/٣.
(٢) النهاية لابن الأثير: ١٨٣/٥تاريخ العروس: ١٧٥/٢٠-١٧٣الفروق اللغوية: ٣٠٨ ارالعلم والثقافة
(٣) بدائع الصنائع: ٣٤٠/٢.
(٤) تاج العروس: ١٧٨/٢ التراث العربي.
(٥) المبسوط للسرخسي: ١١٨/٢شرح فتح القدير: ١٣١/٢تبيين الحقائق: ٢٤٢/١.
(٦) شرح فتح القدير: ١٣١/٢بدائع الصنائع: ٣٤٠/٢.
(٧) مصنف عبدالرزاق كتاب الجنائز باب أين توضع المرأة من الرجل رقم الحديث: ٦٣٤٨

جنازه اوکړه اود دواړو سرونه اوخپې نی برابر کیخودې.(۱)
هم دغه شان داهل مکه اواهل مدینه عمل هم دښځو اوسړو په حق کښې د برابرئی دې. په روایت کښې دی چه کله حضرت سعیدبن جبیر رحمه الله مکې ته تشریف راوړو اوهغه اولیدل چه اهل مکه د ښځې اوسړی په یوځائی جنازه کولو کښې د ښځې اوسړی په مینځ کښې د قیام په اعتبارسره فرق نه کوی نودوی غوښتل چه دا خلق دې دښځې سر دسړی په مینځنۍ حصه د بدن محاذات کښې کړی خواهل مکه دهغه خبره اونه منله. لهذا ددې روایاتونه دا ثابتیږی که چرې د سړی اوښځې په حق د قیام په سنت کښې فرق وې نود حضرت ابن عمر رضی الله عنهما اواهل مکه اواهل مدینه عمل به هم **تسویه بین الرجل والمرأة** نه وې.(۲)
**د علامه رشیداحمدګنګوهی رحمه الله قول:** علامه رشیداحمدګنګوهی رحمه الله فرمائی چه د حائض اونفساء وغیره په حق کښې دامام دپاره سنت قیام دادې چه دکټ په وسط (مینځ) کښې اودریږی دې دپاره چه ستر اوشی ځکه چه په هغه زمانه کښې دنعوش بندوبست نه کیدلو. بیا چه کله ددې نه استغناء اوشوه اودنعوش انتظام شروع شو نوچونکه ((**النساء شقائق الرجل**)) یعنی ښځې د سړو په شان دی په دې وجه ددې انتظام نه پس دهغوی حکم هم په سنت قیام کښې د سړو په شان شو.(۳)
هم ددې مضمون طرف ته حافظ ابن حجر رحمه الله هم ((**کتاب الجنائز باب أین یقوم من المرأة والرجل**)) کښې اشاره کړې ده او په هغه باب کښې هم دغه حدیث سمره بن جندب رضی الله عنه ذکر دې. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په هغې کښې په ښځو باندې د جنازې د مونځ دمشروعیت بیان دې. ځکه چه د ښځې دنفاس والا کیدل غیر معتبروصف دې اود ښځې ښځه کیدل دواړه احتماله لری. ددې خبرې هم احتمال دې چه دادې معتبره اوګنړلې شی اوددې خبرې هم احتمال دې چه غیرمعتبره دې وی. که معتبرئی اوګنړله نود جنازې په مونځ کښې د ښځې مینځ ته اودریدل د ستر په غرض دی اوهم دا د ښځې په حق کښې مطلوب هم دی اوکه چرې غیرمعتبر ده نو په مینځ کښې د اودریدو حکم هغه وخت وو کوم وخت چه د ښځودپاره دنعوش انتظام نه وو. او اوس چه انتظام شوې دې نود مطلوبه ستر حصول شوې دې اوهم په دې وجه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب په سوالیه اندازکښې پیش کړې او اراده ئی دا ده چه د ښځې اوسړی په مینځ کښې دامام د قیام په مسئله کښې هیڅ فرق نشته دې. او داسې نی د حضرت انس رضی الله عنه د روایت د تضعیف طرف ته اشاره اوکړه کوم چه امام ترمذی رحمه الله او امام ابوداؤد رحمه الله تخریج کړې دې. په کوم کښې چه دی حضرت انس رضی الله عنه د سړی په حق کښې اوښځې په حق کښې دقیام په اعتبارسره فرق کړې دې اودائی سنت ګرځولی دی.(۴)
**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت دادې چه په دواړوکښې یو شان مضمون ذکر دی یعنی په دواړوکښې دنفاس په حالت کښې وفات کیدونکې ښځه باندې د جنازې د مونځ کولو ذکر دې. البته داخبره په خپل ځائی تیره شوې ده چه د امام بخاری رحمه الله دا ترجمه

---

۱) مصنف ابن أبی شیبة کتاب الجنائز باب جنائز الرجال والنساء من قال: الرجل مما یلی الإمام والنساء أمامن ذلک، رقم الحدیث: ۱۱۶۸۸.
۲) إعلاء السنن: ۲۲۷/۸المغنی لابن قدامة:۴۵۴/۳-۴۵۳.
۳) لامع الدراری: ۲۹۳/۲-۲۹۱ الکنزالمتواری:۳۱۰/۳-۳۰۹.
۴) فتح الباری: ۲۰۱/۳الکنزالمتواری: ۳۱۰/۳الأبواب والتراجم: ۶۷ لامع الدراری: ۲۹۳/۲-۲۹۲.

كتاب الحيض سره مناسبت نه لري.(١)

**اختلاف نسخ:** په دې مقام دصحيح بخارى په نسخوكښې اختلاف موندلې شى بعض نسخوكښې باب بلاترجمه عنوان دې او بعض نسخوكښې باب عنوان دسره موجود نه دې اوحديث مذكورئى باب سابق لاندې داخل كړې دې. شراح كرامو ليكلى دى چونكه دحديث ميمونه ﷺ حكم په باب سابق كښې موجود دحديث د حكم نه مختلف دې په دې وجه امام بخارى رحمه الله ددواړو په مينځ كښې باب وئيلوسره جدا كړل ليكن ترجمه ئى قائم نه كړه.(٢)

**دباب بلاترجمه حكم:** دابوزر په روايت كښې لفظ باب بلاترجمه موجود دې اودهغوى عادت دې چه هغوى داسې باب بلاترجمه باب سابق دپاره په منزله د فصل گرځوى. دكوم تفصيل چه شاته ذكركړې شوې دې. چونكه په حديث ميمونه ﷺ اوحديث باب سابق كښې د حكم په اعتبارسره اختلاف دې په دې وجه امام بخارى رحمه الله په لفظ باب راوړلوسره د دواړو په مينځ كښې فصل اوكړو.

**د اصيلى د روايت مطابق دحديث ميمونه k باب سابق سره مناسبت:** باقى د اصيلى وغيره په روايت كښې لفظ باب موجود نه دې اوحديث ميمونه ﷺ د باب سابق لاندې داخل دې. په دې صورت كښې به دحديث ميمونه ﷺ د باب سابق سره مناسبت داشى چه په دې حديث كښې په دې خبره باندې تنبيه وركړې شوې ده چه حائضه اونفساء دواړه عين اوظاهرى بدن په اعتبار سره پاكې دى اوددې دليل دادې چه د حضورپاك كپړې د مونځ دوران كښې د حضرت ميمونه ﷺ بدن سره لگيدې حال دادې چه هغه د حيض په حالت كښې وه. ددې نه معلومه شوه چه دحائضه عين او ظاهر پاك دى گنى حضورپاك به خامخا خان ساتلو.(٣)

**د شيخ الحديث زكريا رحمه الله نقداو رائې:** شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى چه حديث ميمونه ﷺ د باب سابق سره كوم مناسبت بيان كړې شوې دې هغه سره ددې چه واضح دې مگر په داسې صورت كښې مسئله «باب الصلاة على النفساء» سره متعلق نه پاتې كيږى. زما په نيز توجيه داده چه د امام بخارى رحمه الله حديث ميمونه ﷺ ذكركولونه پس مقصد په حائضه ښځه باندې د جنازې مونځ جائز كيدل بيانول دى اوهم ددې دپاره نى حديث ميمونه ﷺ فورى راوړلو ليكن چونكه حديث ميمونه ﷺ د جنازې د مونځ په حق كښې منصوص نه وو په دې وجه ددې دپاره امام بخارى رحمه الله دترجمه تصريح اونه كړه بلكه هم دغه ترجمه په حديث سره مستنبط كولوسره ثابته كړه او هغه داسې چه مخې ته ملاسته ښځه د مخې ته كيخودونكې جنازې په شان ده. نوچه څنگه ښځه په حالت د حيض كښې وى اومخې ته ملاسته وى اود مونځ كونكى كپړه هغې سره لگى نو په دې سره هيڅ نقصان لازم نه راځى. هم دغه شان كه چرته د ښځې د حيض په حالت كښې يا دنفاس په حالت كښې انتقال اوشى نودهغې د جنازې مونځ به اداكولې شى په دې سره هم څه نقصان لازم نه راځى.(٤)

په آخره كښې شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى چه هم دغه توجيه د علامه رشيداحمد گنگوهى رحمه الله دكلام نه هم مستنبط كيږى.

---

(١) عمدة القارى:٤٦٧/٣.

(٢) عمدة القارى:٤٧٠/٣فتح البارى: ٤٣٠/١الكنزالمتوارى:٣١١/٣.

(٣) فتح البارى: ٤٣٠/١عمدة القارى:٤٧٠/٣ الكنزالمتوارى: ٣١١/٣ التوضيح:١٤٤/٥.

(٤) الكنزالمتوارى:٣١٢/٣-٣١١لامع الدرارى: ٢٩٤/٢الأبواب والتراجم:٦٧

**د علامه رشيداحمد ګنګوهي** رحمه الله **رائې:** علامه رشيداحمد ګنګوهي رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله داحديث **صلاة على النفساء** په نسبت سره راوړلې دې او په شاته حديث کښې **صلاة على الحائض** ذکروو اود هغې دپاره ترجمة الباب هم قائم کړې شوې وو. په حديث ميمونه رضي الله عنها کښې امام بخاري رحمه الله داخودلې دی چه د حائضه قرب دمونځ د صحت منافي نه دی. لکه چه داحديث د سابقه باب دپاره په منزله د نظير اومثال دې يعني په نفاس والا باندې مونځ کول داسې دی لکه چه څوك مونځ کوي اوحائضه ښځه دهغه مخې ته ملاسته وی نولکه څنګه چه دحائضه مخې ته سملاستل د مونځ د صحت منافي نه دی هم دغه شان په نفساء مړی باندې د جنازې مونځ کول هم صحيح او جائزدی. مګر دواړوکښې څه تفاوت شته. يوخودا چه شاتنی حديث کښې اوحديث ميمونه رضي الله عنها کښې دقرب په اعتبار سره تفاوت دی په دې معنی چه شاتنې حديث کښې قرب او دې حديث ميمونه رضي الله عنها کښې ذکرکړې شوې قرب نه کم دې. لکه چه ددواړو حديثونه بالکل واضح دی.

دويم دا چه په تيرشوی روايت باندې **صلاة على النفساء** ترجمه قائم کړې شوې وه اوحديث ميمونه رضي الله عنها کښې دحائضه ذکر دې.

دريم دا چه شاتنی حديث کښې د امام مخې ته مړې کيدل مقصودی څيز دې خو په حديث ميمونه رضي الله عنها کښې مخې ته سملاستل يواتفاقي امر دې.

څلورم تفاوت دادې چه شاتنی حديث کښې په حقيقت کښې دعاده اوحديث ميمونه رضي الله عنها کښې حقيقي مونځ مراددې. نوچونکه په دواړو حديثوکښې په دغه پورتنو اعتبارات سره فرق دې په دې وجه امام بخاري رحمه الله په دواړو حديثوکښې باب بلا ترجمه راوړلوسره جدائي اوکړه څکه چه باب بلاترجمه دفصل په اراده سره راوړلې شي.[1]

بعض حضراتو د علامه ګنګوهي رحمه الله دا توجيه په يوبل انداز کښې ذکرکړې ده هغوی فرمائي چه «باب الصلاة على النفساء» نه شاته باب کښې د ابن عباس رضي الله عنهما په حواله سره تيرشوی دی چه مستحاضه به د دم حيض په انقطاع باندې فوري غسل کوي اومونځ به کوي دنور څه څيز انتظار به نه کوي اود استحاضه وينه دمونځ نه مانع نه ده. او که دحيض وينه وي نومونځ نه شي کولې. اوس سوال دا پيداکيږي چه که د حيض په زمانه کښې د ښځې انتقال اوشي چه په ناپاکئ کښې انتقال شوې نوآيا دهغې د جنازې مونځ به کولې شي؟ څکه چه د حالت حيض غسل مطهر نه دې اود مونځ دپاره طهارت شرط دې؟ امام بخاري رحمه الله د **صلاة على النفساء** باب کيخودوسره اوخودل چه نفساء وی که حائضه په اصل سره ددواړو بدن پاك دې بيا په غسل سره هغه ظاهری لوث يعنی خرابې هم لرې شو اومرګ ايمان مستحکم کړو کوم چه عين طهارت دې. بيا په دې باندې په مونځ کولوکښې څه تردد دې اوچونکه د صلاة على الحائض باره کښې دامام بخاري رحمه الله د شرط موافق څه روايت نه وو لهذا باب بلاترجمه کيخودو سره دحضرت ميمونه د روايت نه د اشاره په توګه ددې په جواز باندې تنبيه اوکړه چه د حائضه بدن ناپاك نه دې.[2]

[1]) لامع الدراري: ۲/۲۹٤الكنز المتواري:۳/۳۱۲-۳۱۱.

[2]) إيضاح البخاري: ۱۲/۱۵۵مکتبه مجلس قاسم المعارف ديوبند، يوپی.

